بسم الله الرحمن الرحيم

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَـدُوا اللّٰهَ عَلَيْـهِ فَمِـنْهُمْ مَـنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا. [الأحزاب : ٢٣]

# د سپـــين کاروان سـرلاري

## (د اسلامي امارت د پنځوس تنو مخکښو څېرو ژوندليکونه)


مرتـب

قــاري سعــيد



## د کتاب مشخصات


نـــوم: د سپـین کاروان ســـرلاري

لیکــــنه: د اسلامي امـارت بیلابیل لیــکوالان

را ټولــونه: قاري سعید زرمتی

خپرنـدوی: د ا، ا، ا دفرهنګي چاروکمیسیون دتالیف او ترجمې څانګه

چاپ کال: ۱۴۳۸ هـ ق

چاپ شمیر: ۱۰۰۰

چـاپ وار: لومـــړی


## چاپ او کمپیوټر چارې


د فرهنګي چارو دکمیسیون تخنیکي څانګه

ویب: www. Shahamat. info

# لړلیک

## د کتاب په اړه د فرهنګي چارو دکمیسیون یادښت

حامدا و مصلیا و بعد:

درنو لوستونکو!

ستاسو په لاس کې کتاب دافغانستان د اسلامي امارت د مخکښو او مشهورو شخصیتونود هغو ژوندلیکونو ټولګه ده چې له دې وړاندې د اسلامي امارت په بیلابیلو چاپي او آنلاین نشریو کې خپاره شوي دي.

په دې مجموعه کې د پنځوس تنو امارتي مشرانو سوانح راټول شوي دي چې د ژوند له ابتدائي حالاتو، تعلیم، جهاد او په اسلامي امارت کې له خدمتونو بیا د شهادت یا وفات تر وخته د هغوی دژوند په مهمو پیښو رڼا اچوي.په دې مجموعه کې ځکه د ټولو مخکښو او مطرحو شخصیتونو سوانح ځای نه شول چې زموږ په لاس کې فی الحال همدا سوانح بشپړ او د نشر لپاره آماده و، که د نورو نامرتبو سوانحو تر ترتیب پورې مو انتظار کولای شاید د کتاب چاپ ډیر تأخیر شوی وای او ضخامت به یې هم له معمول حد څخه زیات وای.

د فرهنګي کمیسیون د تاریخ څانګه هڅه کوي چې له دې ټولګې څخه د پاته شویو نظامي ، علمي او سیاسي څیرو ژوندلیکونه هم په همدې شکل مرتب او په راتلونکې ټولګه کې یې د نشر لپاره آماده کړي تر څو د اسلامي امارت د فداکارو او مخلصو شخصیتونو کارنامې، چې د تاریخ په یوه سخت پړاو کې یې د اسلامي نظام او مؤمن اولس د خدمت په لاره کې ستري قربانۍ ورکړې د تاریخ حافظې ته وسپارل شي او راتلونکې نسلونو یې له خدمتونو او قربانیو څخه زده کړه وکړي.

د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمیسیون تل هڅه کوي چې د مجاهدینو وروڼو او عامو لوستونکو لپاره ګټور آثار خپاره کړي. له لوستونکو مو هیله

دا ده چې کتاب د ژوند ملګری وګرځي او همیشه د ګټورو کتابونو او مجلو په مطالعه سره خپله علمي ذخیره غني او ادبي تنده خړوبه کړي.

په پای کې د اسلامي امارت له قلمي مجاهدینو ( لیکوالانو) څخه مننه کوو چې د دې کتاب د محتویاتو په لیکلو سره یې ستر جهادي خدمت ترسره کړ، دغه راز د کتاب له مرتب او د سوانحو له راټولوونکي څخه هم مننه کوو چې دغه په بیلابیلو نشریو کې خواره واره ژوندلیکونه یې راټول او په کتابي شکل د نشر۔ لپاره یې آماده کړل.

الله تعالی دې د دوی ټولو سعی قبوله او دغه کتاب دې د دوی لپاره جاري صدقه وګرځوي.

آمین یا رب العلمین

د فرهنګي چارو کمیسیون

# د مرتب خبري

اوسنۍ متعارفه تاريخ نګاري له هغو علومو شميرل کيږي چې مبارک دين اسلام په بشريت پيرزو کړي دي.په اسلام کې د حوادثو ثبتول او د کارنامه سازو علمي،جهادي او سياسي شخصيتونو سوانح ترتيبول او د تاريخ حافظې ته سپارل اوږده سابقه او ځانګړې اهميت لري.

که موږ د اسلامي مبارزو تېر څوارلس سوه کلن بهير وڅارو نو وينو چې د هر دور مسلمانانو دخپل مهال مهم تاريخي وقائع ثبت کړي.د خپل وخت د علماوو،فقهاوو، حفاظو،محدثينو،خلفاوو،فاتحينو او نورو تاثير ګذاره اشخاصو تذکرې يې ليکلي او حتی د هغوی د ژوند ډير جزئي خو مفيد اړخونه يې په پوره امانتدارۍ ثبت کړي چې اوس نه يوازې د اسلامي فرهنګي ذخيرې مهمه پانګه بلل کيږي بلکې د لوستونکو لپاره د عبرت او استفادې منابع هم دي.

د افغانستان اسلامي امارت نه يوازې د افغانستان او سيمې په تاريخ کې بلکې د اسلامي نړۍ په سطحه يوه مهمه پيښه او تاريخي سرآغاز و چې د پيل او څرنګوالي داستان به يې راتلونکو نسلونو ته ډير جالبيت ولري. د اسلامي خلافت له سقوط کلونه وروسته په داسې چاپيريال کې چې (داسلامي نظام قيام) د ځينو علماوو په تعبير د (الفريضة المنسية) لقب خپل کړی و، په افغانستان کې يو شمير د مدرسو طالبان، علماء،مجاهدين او مبارزين راپورته شول او پرته له شعارونو او اوږد مقدماتو يوازې د الله تعالی په مرسته او تکيه يې د اسلامي امارت عملي بيلګه يو ځل بيا نړۍ ته وښودله.

دا خلک چې د اسلامي حاکميت لويدلی بيرغ يې يو ځل بيا راپورته کړ، له خاورو او غباره يې وڅنډه او د آسيا په زړه کې يې ښخ او رپاند کړ، څوک وو؟ څه صفات يې درلودل؟ څنگه مبارزه يې وکړه او څرنگه يې دغه زرينه کارنامه د اسلامي تاريخ سرمشق کړه؟؟ هغه پوښتنې دي چې ځواب ته به يې د را روان نسل تاريخ لوستونکي ډيره تلوسه ولري.

په دې کتاب کې حتی الوسع کوښښ شوی چې د اسلامي امارت د مؤسس اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په ژوندليک سربيره د امارت د يو شمير هغو مشرانو سوانح راټول شي چې تراوسه وفات شوي او له دنيا يې رخصت اخيستی. په ټولگه کې دامارت له تأسيسي شخصيتونو، وزيرانو،نظامي مشرانو او علماء کرامو نيولې بيا تر هغو يو شمير کارنامه سازو مجاهدينو پورې چې په يوه مرحله کې يې مهم کردار اداء کړی وي د پنځوس تنه پيژندل شويو څيرو د ژوند حالات را يوځای شوي دي. دا اشخاص چې له تخار نيولې تر فراه او له بادغيس نيولې تر خوسته له بيلا بيلو سيمو او اقوامو سره تړاو لري. خو د ديني اخوت او جهادي سنگر په اعتبار ټول د يوه کاروان ملگري او د اسلامي امارت د يوې کورنۍ غړي دي چې تر يوه بيرغ لاندې يې د مشترک هدف او آرمان په لاره کې له ژوند سره مخه ښه کړې ده.

په کتاب کې د راغليو سوانحو ترتيب (تقديم او تأخير) د هغوی د شهادت يا وفات د نيټو په اعتبار شوی دی. يعنی کوم شخص چې مخکې وفات شوی سوانح يې هم مخکې راغلي او ورپسې د هغه تن سوانح راغلي چې ورپسې وفات شوی دی همداسې تر پايه. يوازې د اسلامي امارت د څلورو تنو هغو مشرانو چې يا خو بالفعله زعماء وو او يا په يوه وجه د زعامت نسبت ورته کيده سوانح يې له نورو مخکې راغلي. چې په دې ډول د مرحوم اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد، شهيد اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور، مرحوم رئيس الوزراء ملا محمد رباني او د اسلامي امارت د مرستيال شهيد ملا عبيدالله اخند ( رحمهم الله) سوانح د کتاب په سر کې راغلي دي.

په کتاب کې به ضرور کمۍ او نیمګړتیاوې موجودې وي. د نیمګړتیا یو عامل یې شاید دا هم وي چې دغه کتاب له پیله اصلا د کتاب په شکل نه دی لیکل شوی، بلکې دغه سوانح په تیرو څو کلونو کې د میاشتنیو لیکنو په حیث ترتیبدل او د یوې لړۍ په ډول د اسلامي امارت په میاشتنیو مجلو کې نشریدل. د مجلو لپاره میاشت په میاشت د سوانحو د ترتیب دنده زما په غاړه اچول شوې وه خو د غیرحاضرۍ یا عدم رسیدګۍ له امله نورو لیکوالو ملګرو هم راسره همیشه مرسته کوله چې په دې لړ کې یوه برخه سوانح د نورو قدرمنو لیکوالانو لکه ښاغلیو شاهد غزنیوال، ملا خبیر احمد مجاهد، ملا احمد الله وثیق، بشیر همدرد، حافظ نور احمد سعید، قاري محمد یونس،نصیب ځدراڼ او مفتي ابومحمد حقاني صاحب لخوا ترتیب شوي دي چې له الله تعالی څخه ورته اجرونه غواړم.

څرنګه چې دا لړۍ لا هم روانه ده له الله تعالی څخه توفیق غواړو چې د اسلامي امارت د هغو نورو علمي،جهادي او سیاسي څیرو د ژوند حالات هم را یوځای او مرتب کړو چې تر اوسه نه دي لیکل شوي او له دې ټولګې پاته شوي دي.

په پای کې باید یادونه وکړم چې د کتاب محتویات او معلومات مورږ د اړوندو اشخاصو له نږدې ملګرو او د کورنۍ له غړو څخه په مستند شکل تر لاسه کړي او له تدقیق وروسته مو په کتاب کې ځای کړي دي چې په اکثرو ځایونو کې د پیښو د روایت کوونکو نومونه یاد شوي دي.

الله تعالی ته سوال کوو چې دا کتاب په خپل در مقبول او د لوستونکو لپاره محبوب وګرځوي ترڅو د اسلام او جهاد په ګټه ښه اثر ورباندې مرتب شي.

و ما ذالک علی الله بعزیز

قاري سعید

۱۴۳۸ هـ ق د رمضان المبارک یوولسمه

# د مرحوم امیر المؤمنین
# ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ژوند لیک

ترتیب: د فرهنګي کمیسیون د تاریخ څانګه

## زوکړه او نشأت:

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) د مولوي غلام نبي زوي، د مولوي محمد رسول لمسی او د مولوي باز محمد کړوسی، په کال ۱۳۳۹ هجري لمریز کې چې لـه ۱۹٦۰ میلادي سره سمون خوري د افغانستان د کندهار ولایت د خاکریز ولسوالۍ د چاه همت کلي په یوه متدینه او علمي کورنۍ کې وزیږېد. د ملا محمد عمر (مجاهد) والد مرحوم مولوي غلام نبي صاحب هم په همدې خاکریز ولسوالۍ کې دنیاته راغلی او د همدې سیمې په مختلفو دیني درسونو او دائرو کې خپلې دیني زدکړې ترلاسه کړې، چې بیا په یاده سیمه کې د تدریس او اسلامي دعوت په چارو کې د زیار او مصروفیت له امله د خلکو په منځ کې د یو ښه علمي او ټولنیز شخصیت په توګه وځلید .

د ملا محمد عمر (مجاهد) له زوکړې دوه کاله وروسته د هغه والد صاحب د کندهار له خاکریز ولسوالۍ څخه د دې ولایت د ډنډ ولسوالۍ د نودې کلي ته ولاړ او هلته د خپل ژوند ترپایه د سیمې د خلکو د دیني ښونې او روزنې په چارو بوخت ؤ، نوموړی په۱۳۴۴هجري لمریزکال کې چې له ۱۹٦۵میلادي کال سره سمون خوري په همدې سیمې کې وفات او د کندهار ښار د طالبانو په پخوانۍ مشهوره هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .

ملا محمد عمر (مجاهد) د خپل پلار له وفات وروسته د پنځه کلنۍ په عمر له خپلې کورنۍ سره د کندهار له ډنډ ولسوالۍ څخه د اروزګان ولایت د هراو د

ولسوالۍ ته وليږديده او هلته يې د خپلو ترونو هر يو مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه تر سرپرستي لاندې د ژوند لومړنۍ مرحله پيل شوه .

**زدکړه اوتعليم:**

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) په اته کلنۍ کې د ديني علومو د ترلاسه کولو لپاره د روزګان ولايت د د هراو د ولسوالي د شهرکهنه سيمې ابتدايي دينې مدرسې ته شامل شو. د دغې مدرسې سرپرستي هم د ملامحمد عمر (مجاهد) د تره مولوي محمد جمعه لخوا ترسره کيده او ملا محمد عمر (مجاهد) هم لومړنۍ ديني زدکړې له نوموړې څخه پيل کړې .

د ملا محمد عمر (مجاهد) دواړو ترونو په تيره مولوي محمد انور د نوموړي په ديني روزنې او پالنې کې خاص رول ترسره کړ .

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) د خپل شرعي تعليم لومړنۍ او متوسطه دوره په همدغه مدرسه کې په بريالۍ توګه پای ته ورسوله او اتلس ۱۸ کلنۍ ته له رسيدو سره يې په افغانستان کې د مروجه لوړو شرعي زدکړو په تحصيل پيل وکړ، خو د شرعي لوړو زدکړو د تحصيل مرحله يې په کال ۱۳۵۷ هـ ش ـ ۱۹۷۸ م په افغانستان کې د کمونستانو د واک ته رسيدلو له امله نيمګړې پاته شوه.

**کورنۍ:**

له قبيلوي اړخه د ملا محمد عمر (مجاهد) تعلق د پښتنې قبيلې هوتکو په تومزي قوم پوری دی .

هوتک د پښتنې قبيلې يو لوی شاخ ، او هوتکيان د معاصر افغانستان په تاريخ کې د نوميالي اسلامي شخصيت حاجي ميرويس خان هوتک په څير اسلامپال، مدبر، ملي او جهادي اتلان لري

سترغازي حاجي ميرويس خان هوتک رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې افغانان يې احتراما د ميرويس نيکه په وياړلي لقب يادوي په کال ۱۰۸۸ هـ ۱۷۱۲ م افغانستان له صفوي ظالمانه

واکمنۍ ازاد، او د افغانانو لپاره يې په کې د يوه خپلواک مقتدر اسلامي حکومت بنسټ کیښود.

د ملا محمد عمر (مجاهد) کورنۍ له مسلکي اړخه ټول علماء او د ديني علومو مدرسين دي. هغوی خپل ټول ژوند د الله تعالی د دين خدمت، د شرعي علومو تدريس او د مسلمانانو ديني اوفکري روزنې ته وقف کړی، له همدې امله يې په خپله سيمه کې خورا زيات مقبوليت درلود او په معنوي لحاظ د ټولنې تر ټولو باوقاره او اجتماعي حيثيت لرونکي اشخاص پيژندل شوي دي.

د يوې داسې علمي او روحاني کورنۍ په ماحول کې د ملامحمد عمر(مجاهد) پيدايښت او بيا د خپلو علمي او فکري مربيينو (پالونکو) ترمستقيمې پالنې لاندې د هغه نشأت په جهادي او فکري لحاظ نوموړي ته د دې صلاحيت ور وباښه چې د افغاني ټولنې د نورو افرادو په منځ کې د يو مخلص، مجاهد، زړه سواند، با احساسه، اسلامي او ملي شخصيت په توگه راڅرگند او په خپلو جهادي او اصلاحي هڅو سره خپله ټولنه د فساد ، ظلم او بی عدالتۍ او گران هيواد افغانستان د حتمي تجزيې له شره وژغوري .

د مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) جهادي کورنۍ، وروڼه او ترونه ټول مجاهدين او له ۱۳۵۷ لمريز کال راهيسې تر اوسه پورې يې په تيرو جهادي جرياناتو کې د خپلې کورنۍ څلورتنه شهيدان شوي دي.

په افغانستان باندې د امريکايي يرغل په لومړۍ ورځ ۱۳۷۹/٦/۱۵ــ ۲۰۰۱/۱۰/۷ د ملا محمد عمر (مجاهد) تره ملا محمد حنفيا لومړنی شخص و چې د امريکايي يرغلگرو په بيرحمانه هوايې بريد کې په شهادت ورسيد.

## جهاد او مبارزه:

مرحوم اميرالمؤمنين ملا محمد عمر (مجاهد) د خپل ژوند دريمې لسيزې ته لا نه و ور داخل شوی چې په افغانستان کې کمونستانو د پوځي کودتا له لارې واک

ترلاسه کړ. دا هغه وخت و چې نور نو د ملا محمد عمر (مجاهد) په څير د هيواد ټولو زده کوونکو ته د خپلو ديني زده کړو استمرار ناشونی ښکاريده؛ ځکه د ملحدو کمونستانو لومړنۍ مقابله د ټول هيواد په کچه له علماوو، طالبانو، محصلينو او مسلمانو منورينوسره وه، هماغه وچې ملا محمد عمر (مجاهد) هم اړينه وبلله چې خپلې لوړې ديني زدکړې نيمګړې پريږدي او د خپل شرعي مسؤليت د ترسره کولو لپاره له مدرسې څخه د جهادي جبهې په لوري مخه کړي.

نوموړي خپل جهادي بهير د روزګان ولايت د د هراو د په ولسوالۍ کې د حرکت انقلاب اسلامي په تنظيم کې پيل کړ. په دغې ولسوالۍ کې له څه وخت تيرولو وروسته نوموړی د روزګان ولايت په کچه د يوه پيژندل شوي زړور جهادي شخصيت په توګه مطرح او د دغه ولايت په بيلا بيلو برخو کې يې د کمونيستانو په وړاندې په متعد دو پوځي عملياتوکې فعال رول ترسره کړ چې نوموړي د دغه جهادي شهرت او په جهادي عملياتو کې د موفقانه رول له امله په مجاهدينوکي دومره مقبول او ومنل شو چې کله په هغه وخت کې د د هراو د په ولسوالۍ د مختلفو سيمو د مجاهدينو له لوري پراخ تعرضي عمليات ترسره کيدل نو ملامحمدعمرمجاهد په همدې عملياتو کې د ټولو مجاهدينو په خوښه د مختلفو جبهاتو د مجاهدينو مشر او تعرضي قومندان وټاکل شو او ښه موفق عمليات يې ترسره کړل چې په همدي عملياتو کې نوموړی په لومړي ځل زخمي هم شو ،نوموړي تر دريو کلونو زيات وخت د خپلې سيمې د مجاهدينو سره د يرغلګرو روسانو او کمونستانو خلاف په ډيرو مخامخ جګړو کې ګډون درلود.

د مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د جبهې ملګري او مشران وايې چې ملامحمدعمراخوند په هغه وخت يعنې د جهاد په پيل کې سره له دې چې عمر يې کم و خو د هر ډول مسئوليت او کار د ترسره کولو استعداد او صلاحيت درلود او د ډير ښه صحت او قوت خاوند و.

وروسته پـه کـال ۱۳٦۲ هـش ۱۹۸۳ مـيلادي کـې لـه خپلوجهـادي ملگـرو سره د جهادي فعاليتونو د انسجام په غرض د کندهار ولايت ميوندولسوالۍ تـه ولاړ او هلتـه يې د حرکت انقلاب اسلامي د تنظيم د مشهور جهادي قومندان فيض الله اخونـد زاده په جبهه کې د روسي يرغلگرو او د هغوی د کمونستي تالي څټـو پـه خـلاف وسـله وال جهاد ته دوام ورکړ. په کندهار ولايت کې هـم پـه بي شـميره جهـادي عمليـاتو کـې د نوموړي د موفقانه رول او په پوځي تکتيکونو کې د ښې وړتيا اوشهرت له کبله د سيمه ييزو جهادي قومندانانوپه کچه د وخت د جهادي تنظيمونو د پاموړ شـخص وگرځيـد او د مرحوم مولوي محمد نبي محمدي په مشرۍ د حرکت انقـلاب اسـلامي د تنظـيم لخوا د مستقلې جهادي جبهې مسؤليت ورته وسپارل شو.

له کال ۱۳٦۲هـ ش ـ ۱۹۸۳ م تـر ۱۳۷۰ـ ۱۹۹۱ پـورې ملامحمـد عمـر (مجاهـد) د کندهار ولايـت د ميونـد، ژړۍ، پنجـوايې او ډنـډ ولسـواليو پـه مربوطـاتو کـې چـې د شوروي قواوو په ضد د جهاد مهم مرکزونه ول او نيږدې هره ورځ به يې مجاهـدين لـه دښمن سره په جگړه بوخت ول همدارنگه د زابـل پـه ولايـت کـې د شهرصـفا او مرکـز قلات مربوطو سيمو کې د کابل ــ کندهار په لويه لاره د روسي يرغلگرو په خلاف ډيـر موفقانه عمليات ترسره کړل چې ديرو هغو کې نوموړی شخصا په مستيقمه توگه سهيم و. د مـلا محمـد عمـر (مجاهـد) تـر ټولـو خوښـه کـړای شـوې وسـله د روسي جنگـي شوبلو(ټانگونو) په ضد اسـتعماليدونکې مـؤثره وسـله « R.P.G.۷» توغنـدی و چـې د مجاهدينو په مينځ کې به راکټ بلل کيده او ده يې پـه ويشـتلو کـې ځـانگړی مهـارت درلود، د يادوني وړ ده چې کندهار په ځانگړي ډول د ميوند، ژړۍ او پنجوايې سـيمي د کمونيزم خلاف جهاد کې هغه سيمي وې چې د روسانو د مـاتې او شکسـت محـوري نقطي بلل کېدې په دې سيمه کې د کندهار هرات پـه لويـه لاره د کمونسـتانو دومـره زيات ټانگونه او نوروسايط تخريب شوي و چې د سرک پر يوه او بله غاړه دښمن د هغو سوځول شويو ټانگونو او پوځي وسائطو ديوالو نه وهلي و څو د مجاهـدينو لـه بريـدونو څخه ځانونه پرې وساتي .

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) له روسانو سره د جهادي عملیاتو په مخامخ نښتو کې څلور ځله ټپي شوی او په وروستي ځل ټپي کیدو کې یې خپله ښی سترګه هم له لاسه ورکړې وه .

ملا محمد عمر مجاهد د کندهار او همجوارو ولایاتو په سطحه د شوروي یرغلګرو او داخلي کمونیستانو په ضد د جهاد یو وتلی او مخکښ قومندان پیژندل کیده، چې په خورا ډیرو جهادي عملیاتو کې یې ټاکونکې ونډه او رول درلود، دلته به د نوموړي د روس ضد جهاد مهال د ملګرو له قوله یو څو خاطرې او یادوني د بیلګې په توګه رانقل کړو:

۱ – د کندهار په ولایت کې د دښمن یوه خورا محکمه پوسته وه چې د بدوانو پوسته یې ورته ویله د دې پوستې سره دښمن په خورا حساس او حاکم ځای کې ټانګ درولی و چې له انداخت کولو یې مجاهدین ډیر په تکلیف و ډیرو مجاهدینو څو ځله کوښښ ورباندې وکړ چې دا ټانګ وولي او مجاهدین یې له شره خلاص کړي خو له بیا بیا هڅو سره سره یې کوم مجاهد په ویشتلو بر یالي نشو بالاخره د سیمې مجاهدینو له سنګ حصار نه د مرستې لپاره ملا محمدعمرمجاهد راوغوښت او همدا ټانګ چې د بدوانو د پوستي په ټانګ یې شهرت موندلی و ملا محمد عمر مجاهد د خپل آر پي جي راکټ په توسط په نښه او له منځه یووړ چې دا په هغه وخت کې مجاهدینو ته خورا ستره لاسته راوړنه وه .

۲ – له روسانو سره د جهاد په دوران کي د کندهار د محله جات په سیمه کې په یوه مخا مخ جګړه کې چې د کندهار یو تن بل وتلی او غښتلی مجاهد شهید ملا عبید الله اخوند چې وروسته یې د اسلامي امارت د دفاع وزیراو د امریکا تر یرغل وروسته د مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د نائب په توګه دنده ترسره کوله هم ورسره ملګری و، د دښمن دومره ټانګونه او موټر وسوځول چې په سبا ورځ له لیري نه کتونکو خلکو چې دا سوزول شوی کتار لید نو ګمان یې کاوه چې قوه اوس هم ولاړه ده،

حال دا چې د قوي زيات موټر سوزول شوي او نور يې بېرته خپلو مرکزو ته په شا شوي و.

۳ – د روس ضد جهاد په مهال د کندهار- هرات په لويه لاره د ژړۍ ولسوالۍ د سنگ حصار په سيمه کې د روسانو ټانگونه تيريدل ملا محمد عمر مجاهد چې ملا برادر اخوند (چې بيا د اسلامي امارت نا ئب شو) هم ورسره و، د روسانو په قوه د بريد لپاره يواځې د راکټ څلور گولۍ (مرمۍ) ورسره وې دوی له همغو څلورو گوليو سره د دښمن په کتار جنگ شروع کړ چې په ترڅ کې يې په همدې څلورو مرميو د دښمن څلور ټانگونه وويشتل .

۴ – ملا برادر اخوند چې له مرحوم ملامحمد عمر مجاهد سره په جهادي دوره کې نيږدي پاتې شوی وايي چې ملاصاحب دومره زيات روسي ټانگونه ويشتلي چې د ډير والي له وجې يې شمير ناشونی و.

په کال ۱۳۷۱هـ ش، ۱۹۹۲ز کې د نجيب د کمونستي واکمنۍ له سقوط او په هيواد کې د تنظيمي جگړو له پيليدو سره سم ملا محمد عمر (مجاهد) هم د نورو رښتينو مجاهدينو په څير وسله له اوږې کوزه او په خپله جهادي سيمه کندهار ولايت، د ميوند ولسوالۍ د سنگ حصار د کيشانو کلي د حاجي ابراهيم د مسجد ترڅنگ يې يوه ديني مدرسه جوړه او په همدي مدرسه کې ميشت شو او له ۱۴ ستونزمنو جهادي کلونو وروسته يې د خپلو څو تنو جهادي ملگرو په ملتيا د خپلو نيمگړيو شرعي زدکړو په پوره کولو بيا پيل وکړ.

دا هغه مهال و چې د پلازمېني کابل په شمول ټول هيواد تنظيمي بې هدفه جگړو په سراخيستی و، د ځينو تنظيمي جگړه مارانو د شخصي غرضونو او هوسونو د ترلاسه کولو له امله د مقدس جهاد سپيڅلي آرمانونه نيمگړي او د افغان مسلمان ولس د يو نيم ميليون شهيدانو پاکې هيلې همداسې تر پښو لاندې وې.

## د فساد په وړاندې پاڅون او د اسلامي امارت تأسیس:

د کمونیستي رژیم له سقوط وروسته د دې په ځای چې اسلامي نظام تاسیس شي او په دې توګه د مجاهد ملت د کلونو کلونو ارمان پوره شي، خپل منځي جګړې پیل شوې، واقعي مجاهدین د یوې منظمې دسیسې له مخې ضعیفه او یا هم بیخي له صحنې وایستل شول، ځینو پخوانیو مجاهدینو هغه کمونیستان چې باید محاکمه شوي وای په ځنګ کې ورسره ونیول او ځینو نورو په منظمه توګه د ولس په لوټلو، ځورولو او د وطن په چور تالان پیل وکړ.

په دې توګه په درست هیواد کې د هرج ومرج یو داسې تور دوران راغی، چې شاید پخوایې افغانانو نمونه او بیلګه نه وي لیدلې، د افغانانو سر، مال او ناموس هره شیبه له ګواښ سره مخامخ و، د هیواد په لارو او سرکونو د خودسره، جاهلو او پست صفته ټوپکیانو ځنځیرونه او پاټکونه خپاره شول، چې هر یوه د خپل مزاج موافق له بې وسه خلګو نه یواځې پیسې اخیستې، بلکې د هیوادوالو په عزت او ناموس یې هم صرفه نه کوله، د هیواد د ملي شتمنیو، مادي او معنوي پانګو، د جهاد د غنائمو او حتی د هیواد د ځنګلونو او کانونو داسې بې رحمانه چور تالان پیل شو، چې پخوا یې کله هم بیلګه نه وه لیدل شوې، مؤمن اولس چې څوارلس کاله یې جهاد کړی و نه تنها دا چې د جهاد ثمره یې د ضیاع له خطر سره مواجه وه، بلکې ورځنی ژوند یې هم له خطر سره مخامخ و.

د هرج ومرج د فتنې له امله ټولنیز فساد، قتل وقتال، چورتالان، ظلمونه، وحشتونه او د مسلمانانو رنځونه هره شیبه په ډیریدو و، چې دې حالت رښتیني مجاهدین کوم چې د افغان مؤمن اولس د سوکالۍ، ازادۍ او سرلوړۍ لپاره یې مبارزه کړې وه سخت ځورول.

ارواښاد ملا محمد عمر مجاهد چې دغه مهال له خپلو مجاهدو ملګروسره د کندهار په میوند ولسوالۍ کې اوسیده، د نورو واقعي مجاهدینو غوندې د دې حالاتو لیدلو ډیر زیات اندیښمن کړی و، نوموړي لیدل چې د کندهار – هرات پر لویه لاره

ګام په ګام پاټکونه جوړ شوي او ټوله ورځ د هیواد مظلوم مسافر، ښځې او سپین ږیري د بد اخلاقه ټوپکیانو په لاس لوټل کیږي، ځورول کیږي او وژل کیږي، باید ووایو چې دغه مهال په کندهار کې پاټکونه دومره زیات شوي و، چې د هیـواد تجارانو چې لـه هرات څخه به یې د کندهار د سپین بولدک ولسوالۍ د ویش باډر تـه مالونـه راوړل، د دې په ځای چې په عمومي لاره خپل مالونه انتقال کړي د ډیرو پاټکونو له امله یـې لـه هرات څخه راوړي تجارتي اموال په میوند کې ښکته کـول او د ریـګ لـه لارې یـې پـه دښتو کې په ډیرو تکلیفونو تر ویش پورې رسول تر څو د پاټکوالوله شره خوندي وي .

ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ او د ده مجاهدو ملګرو ته د کندهار ښار وضعیت هم ورمعلوم و، چیرته چې خودسره ټوپکیانو ښار کوڅه په کوڅه تر خپل منځ ویشلی و، د بیت المال ملکیتونه یې مسلسل غصبول او پـه نغـدو پیسـو یـې پلـورل او پـه دولتـي ځمکو یې شخصي مارکیټونه جوړول، په دې سربیره یې تر خپـل مـنځ همیشـه جګـړې کولې چې ترمنځ یې اولس ځپل کیده.

همدې بـې پایـه نـاخوالو واقعـي مجاهـدین اړ کـړل چـې د فسـاد د ورکولـو او د مسلمانانو د سر او مال د تحفظ په خاطر خپـل وس وکـړي، مجاهـدینو تـر خپـل مـنځ مشورې او غونډې پیل کړې، ملامحمد عمر مجاهد او ملګرو یې خپله لومړنۍ غونډه د پنجوایې ولسوالۍ د زنګاوات په سیمه کې د سیمې له مشهورو او پیژندل شویو علـماء کرامو سره جوړه کړه، د روس ضد جهـاد پـه مهـال د کنـدهار د مجاهـدینو د عمـومي قاضي مولوي سید محمد صاحب ( چې په مولوي پاسني صاحب یې شهرت مونـدلی و) په مشرۍ د علماء کرامو دې غونډې ملا محمد عمر مجاهد ته و ویل چې باید د فسـاد په ضد قیام وکړي او دوی ټول یې ملاتړي دي، له همدې غونډې څخه ملا محمد عمـر مجاهد د اسلامي تحریک اساس کیښود او د ۱۴۱۵ هـ ق کال د محرم الحرام ۱۵ نیټه د فساد او ګډوډۍ په ضد یې د مبارزې بنسټ کیښود.

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ اسلامي تحریک د فساد د مخنیوي په خـاطر مبارزه پیل کړه، چې د اولس او رښتنیومجاهدینو لـه پـراخ هـرکلي سره مخـامخ شـوه،

لومړی یې کندهار ولایت او ورپسې یې د افغانستان زیاتي سیمې لـه بي بنـدوباره او فاسدو ټوپکیانو تصفیه کړې، هغه مهال چې د هیواد ډیرې سیمې د طالبـانو تـر تسـلط لاندې راغلې وې د ۱۴۱٦ هق کال د ذوالقعدې میاشتې په ۱۵ مـه نیټـه د افغانسـتان د علماء کرامو یو لوی ټولي چې شمیر یې تر ۱۵۰۰ زیـات و، پـه کنـدهار کـې یـې د یـوې غونډې په دائرولو سره د ملامحمـد عمـر مجاهـد امـارت تائیـد او نومـوړي تـه یـې د امیرالمؤمنین لقب ورکـړ، د ۱۳۷۵ هــ ش کـال د میـزان میاشـتې پـه شـپږمه نیټـه د افغانستان پلازمینه کابل هم د اسلامي امارت تـر تسـلط لانـدې راغلـه چـې ورپسـې د افغانستان د ټولو مرکزي او شمالي سیمو پـه شـمول د هیـواد پـه ۹۵ فیصـده خـاوره د اسلامي امارت حاکمیت ټینګ شو .

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د افغانستان اسلامي امارت په افغانستان کې د شریعت په اساساتو ولاړ اسلامي نظام رامنځته کړ، له اوږده ځنډ وروسته یې یوځـل بیا نړۍ ته د اسلامي نظام ژوندۍ بیلګه وړاندې کړه، هیواد یې لـه تجزیـې وژغـوره او هم یې د بې مسؤلیته کسانو نه د بیت المال اسلحې را ټولي کړې او یـو بې مثالـه امـن یې راووست دا په داسې حال کې چې ټوله نړۍ د ملل متحد په شمول دغه کار تـه بـې وسه او وارخطا وه خو نړیوال کفري مستکبرینو دا شریعت او امارت ونه شو زغملی نو ځکه یې په وړاندې دښمنانه دریغ خپل کړ او بې ځایه بهانې یې ور ته لټولې ترڅـو یـې په پای کې ورباندې په ګډه پوځي برید وکړ.

## د ملا محمد عمر (مجاهد) قیادي شخصیت:

ملا محمد عمر (مجاهد) د یو قیادي شخصـیت پـه توګـه د ځـانګړي طبیعـت او سلیقې څښتن و .

نوموړي د نړۍ د نورو چارواکو او لوړ رتبه مشرانو برعکس له ځـان ښـکارونې او تظاهر څخه کرکه درلوده، له اړتیا پرته یې خبرې نه کولې، خو د ضرورت په وخت کـې یې خبرې بیا ډیرې پخې، سنجول شوې او معقولې وې. د بیلګې په توګه په افغانسـتان باندې د امریکایي یرغل په پیل کې چې د امریکا یانو له لـوري د اسـلامي امـارت د لـه

منځه وړلو او په تبليغاتي لحاظ د مجاهدينو د مورال کمزوري کولو لپاره امريکايي هڅې ډيرې ګړندۍ روانې وي او ټولې غربي رسنۍ، راډيويې او ټلويزوني شبکې ورته وقف وې

ملا محمد عمر (مجاهد) د دغو ټولو شيطاني تبليغاتي هلو ځلو په وړاندې په خورا مطمئنه او ډاډه روحيه سره په خپلو عام فهمه اوساده خبرو کې خپل ملت ته د اطمنان او ډاډ ورکولو داسې معنا لرونکی پيغام ورکړ: «الله تعالی په هرڅه قادر دی په الله تعالی باندې د امريکا او د يوه ميږي (ميږتون) د قدرت هيڅ فرق نشته امريکايان او د هغوی ملګري دي دا خبره په غور سره واوري چې اسلامي امارت داسې نظام نه دی چې امير به يې لکه ظاهر شاه (د افغانستان پخواني پاچا) غوندې روم ته ولاړشي او عسکر ( افراد ) به يې تاسو ته تسليم شي، بلکې دا د جهاد منظمې جبهې دي .

که تاسو ښارونه او پايتخت لاندې او اسلامي امارت ړنګ هم کړئ زمونږ مجاهدين به وطنونه او غرونه درته ونيسي- بيا به تاسو څه کوئ؟ بيا به لکه د کمونستانو غوندي په هر ځای کې وژل کيږئ!

تاسي پوه شئ چې ګډوډي رامنځ ته کول اسانه ده خو بيرته د ګډوډۍ له منځه وړل او نظام جوړول خورا ګران کاردی، مرګ حق دی او هر چاته راځي نو چې د امريکا په ملګرتيا کې د بې ايمانۍ او بيغيرتۍ په حالت کې وي دا به ښه وي او که په اسلام کې له ايمانه سره د غيرت په حالت کې شهادت ؟

ښايې په هغه وخت کې د مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) په دغه عقيدوي وينا د ډيرو ښاغليو پوره سرنه وي خلاص شوی، خو اوس چې د دغې نا انډوله حيرانوونکې معرکې له پيل نه ١٦ کاله تيريږې او د امريکايانو په شمول د ناټو ترون او د هغوی ټول ايتلافيان د ملا محمد عمر (مجاهد) د تش لاسو عقيدوي مجاهدينو په مقابل کې له ښکاره ماتې سره مخامخ شوي، د نوموړي د هماغې تاريخي وينا په حقيقت به يې سرخلاص شوی وي .

دغه راز نوموړي د امريکايي يرغل په پيل کې افغان ولس ته د يوې راډيويي وينا په ترڅ کې يرغلګرو او د هغوی ګوډاګيانو ته په اشارې سره و ويل:

«وسلې مرګ کولای شي، خو مرګ ګرځولی نشي » ياده شوې جمله همغه مهال ځينو ته يو بې مفهومه ترکيب ښکاريده، خو دادی په تېرو ۱٦ کلونو کې د ياد مضمون عيني مصداق نړيوالو د سر په ستوګو وليد چې يرغلګرو ځواکونو د خپلې پرمختللي ټيکنالوژۍ او وسلو په زور ډېر مرګونه وکړل خو له ځانه يې مرګ ونشو ګر ځولی او له خپلو ټولو پوځي پرمختللو امکاناتو سره سره په سلګونو زره پوځيان د اتلو مجاهدينو په لاس مړه او ژوبل شول او له افغانستان څخه پر شاتګ ته مجبور کړای شول.

دا هغه عيني واقعيت دی چې اوس په پرمختللو وسلو او تجهيزاتو سمبال مغرور يرغلګر ځواکونه هم په افغانستان کې د خپلو زرګونو پوځيانو د مرګ ژوبلې ښکاره اعترافونه کوي.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) له ډېرو ويلو لږ عمل غوره باله د نوموړي ژوند له تکلفي تشريفاتو ډېر صفا اوپاک و، سادګي او بي تکلفه حالت يې د ژوند په ټولو اړخونو احتواکړې وه، ساده لباس، ساده خوراک، بې تکلفه خبرې، بي تکلفه ناسته ولاړه يې فطري عادت و، تکلف، متکلفين او متکلفانه کړه وړه يې هيڅ نه خوښيدل .

نوموړي قاطع والی، تدبر او اخلاص د کارونو د پرمختګ لامل باله او د ملګرو له منځه يې هغه څوک ډېر خوښيده چې مدبر اخلاصمند او جدي به و.

همدارنګه نوموړي له مشکلاتو، مصيبتونو او کړاونو سره ښه ځان عادت کړی و، د هر ډول لويې حادثې او مشکل پيښيدلو په مقابل کې يې وضعيت کاملا عادي و، ويره او وارخطايي يې په زړه کې نه ورتيريده. د خوښۍ او مصيبت، کاميابۍ او ناکامۍ په مهال کې يې پرخپل ځان خورا ښه کنترول درلود او مطمئن به و .

د علماوو او مشرانو يې ډېر درناوی کاوه، سنګيني، وقار، حياء، ادب، متقابل احترام ، خواخوږي، ترحم او اخلاص يې طبيعي خصلتونه و، کلک عزم او په ټولو

کارونو کې پر یوه الله توکل او د هغه پر مقدراتو ریښتونی باور یې د ژوند ځانګړي مشخصات و .

همدا لامل دی چې ملا محمد عمر (مجاهد) د خپلو لارویانو او مجاهدینو په زړه کې داسې محبوبیت پیدا کړی و چې د هغه تعلق نه په ظاهري منصب پوري و او نه په مادي امکاناتو پوري، د امریکایي یرغل په خلاف د جهاد په کلونو کې د هغه تر مشرۍ لاندې عام مجاهدین ماسوا له دې چې هغه مخامخ و ویني یواځې د هغه شفاهي او مکتوبي اوامرو ته په داسې احترام قائل و، چې د تعمیل لپاره یې آن د خپل سر قربانول هم نه دریغول.

## د نړیوالو اسلامي قضایاو په اړه یې اهتمام:

ملا محمد عمر (مجاهد) د طالبانو د اسلامي تحریك د مؤسس او د مسلمانانو د یوه مشر په حیث د اسلامي امت د قضایاوو په اړه خاص اهتمام درلود .

د مسلمانانو د لومړي قبلې مسجد اقصی او د فلسطیني مسلمانانو له برحقې داعیې او د نړۍ په لر او بر کې له داسې نورو اسلامي قضایاوو یې همیشه دفاع کوله او له غاصبو صهیونستانو څخه د مسجد اقصی ازادول یې د هرمسلمان شرعي مسؤلیت ګاڼه .

مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي امت په درد دردمند مشر و، او له مسلمانانو وروڼو سره اخوت، همدردي ، ایثار او همکاري یواځې شعاري نه بلکې عملا یې هم ثابته کړې وه .

## عقیدوي او فکري انتماء:

ملا محمد عمر (مجاهد) په عقیدوي او فکري لحاظ د مسلمانانو د اهل السنة والجماعة د منهج لاروی او د حنفي مذهب مقلد و .

د خرافاتو او بدعتونو سخت مخالف و، د مسلمانانو ترمنځ یې مذهبي، فکري او تنظیمي اختلافات هیڅ نه خوښیدل. خپلو مجاهدینو او ټولو مسلمانانو ته په خپلو

منځونکې د اسلامي وحـدت او فکـري همغـږي پـه ټينګولـو توصـيه او ټينګارکـاوه، د مسلمانانو ترمنځ عقيدوي وحدت او يو والی د وخـت تـر ټولـو اهـم ضرورت بالـه او د قرآن اوحديثو په رڼا کې يې د سلف صالحينو او ائمه مجتهدينو پـه نقـش قـدم رفتـار کول د اسلامي امت د نجات اساسي وسيله ګڼله.

**شخصي ژوند:**

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) چې د ژوند زياتـه برخـه يـې د دينـي علومـو پـه زدکړه او مطالعه، جهاد، دعوت او د اسلام د لارې په خدمت کې تير کړې د افغانستان د معاصرو چارواکو په جمله کې شايد تر ټولو نيستمن او د بيت المال له شـتمنيوڅخه نه استفاده کوونکی شخص وبلل شي؛ ځکه نوموړي نـه د تيرجهـاد پـه مهـال لـه خپـل جهادي نفوذ څخه په استفادې سره د خپل شخصي ژوند د برابرولو په اړه څـه کـړي او نه يې په افغانستان باندې د امارت د «۷» کلنې واکمنۍ په مهال کې.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) د وفات تر وخته نه کوم د اوسيدلو عـادي کـور په ملکيت کې درلوداو نه هم د بهرنيو هيوادونو په بانکونو کې نغدي شتمنۍ.

په کال ۱۳۷۸هش ۱۹۹۹م کې چې د ملګروملتونو د امنيـت شـورى لـه لـوري پـه افغانستان باندې ظالمانـه اقتصـادي بنديزونـه ولګيـدل او پـه بهرنيـو بـانکونو کـې د طالبانو د مشرانو د مالي حسابونو د کنګل کيدلو حکم وشو، مرحـوم مـلا محمـد عمـر (مجاهد) د افغانستان د اسلامي امارت د امير په توګه د امارت تر ټولو لوړرتبه شخص ؤ چې نه يې د افغانستان په داخل کې او نه له افغانستان نه بهر په کوم بانک کې نه په خپل شخصي او نه هم په مستعار نوم مالي حساب درلود.

د امارت د حاکميت په مهال چې د نوموړي استوګنځی د دښمنانو لـه لـوري تـر مرګونو بريدونو لاندې راغي او د فاميل د نږدې افرادو په شهادت سربيره د ګڼو نـورو کسانو د شهادت لامل هم وګرځيده ، نو د امارت ځينو چارواکو د نومـوړي د حفاظـت په مقصد د کندهار ښارپه شمال لويديځ کې د باباصاحب د غره د کوتل لانـدې سيمه

کې چې نيږدې خوا و شا يې کومه ولسي ابادي نه وه د نوموړي لپاره يـو اسـتوګنځی او د اسلامي امارت د مقام دفترجوړ کړ، چې هغه هم د تصرف په لحاظ د بيت المـال لـه عمومي ملکيتونوڅخه ګڼل کيده نه د نوموړي شخصي ملکيت .

په کال ۱۳۷۵ـ هش ۱۹۹۶ م کې چې کله د هيواد د يونيم زر علماوو او مخورو لـه لوري نوموړي ته د اسلامي امارت د امير لقب ورکړل شو نوموړي د دې په ځای چـې د امارت د ورسپارلو له امله د خوښۍ احساس وکړي دومره وژړل چې خپل د اوږي لـوي څادر يې په اوښکو لوند او د غونډې په پای کې يې حاضرو علماوو ته په خپلې تـاريخې ويناکې داسې و ويل:

«اي علماوو! تاسـو د خپـل شرعـي علـم لـه مخـې د حضرـت رسـول اکـرم ص د وارثانوحيثيت لرئ، تاسـوچې نـن ماتـه دغـه درونـد مسـؤليت پـر اوږو را واچـاوه پـه حقيقت کې د هغه د استقامت او انحراف مسؤليت ټول ستاسو پر غاړه دی!

ای زموږ استاذانو درنوعلماوو! که خدای مه کړه له موږ څخه د مسلمانانو په دې ستر امانت کې څه تقصير او انحراف پيښيږي د هغه سمونه او اصـلاح ستاسـو شرعـي مسؤليت دی، تاسو به د خپل شرعي علم په رڼا کې مونږ ته د استقامت او په حقـه لاره د تللو حتمي لارښوونه کوئ، که چيري له مونږ څخه د اسلامي احکامو د تنفيـذ پـه اړه کوتاهي يا انحراف رامنځته کيږي او تاسـو هغـه وينـئ او د اصـلاح پـه اړه يـې څـه نـه واياست د هغې پړه به د الله په نزد ټوله ستاسو پرغاړه وي او زه بـه د سـوال ځـواب پـه ورځ ستاسو ګريوان ته لاس دراچوم .»

## طبيعت اوشخصي مزاج:

ملا محمد عمر (مجاهـد) د خپلـې خـاموشي ترڅنـګ يـو ډول خـاص ظرافـت او خوش طبعي هم درلوده نوموړي په هيڅا باندې که څه هم په هر لحاظ تـر ده کشرـ و ځان لوړ نه ګاڼه، له خپلو ملګرو سره يې برخورد ډير مينه ناک، صـميمانه، باشـفقته او له متقابل احترامه ډک و، په مجالسو کې يې زياتره د جهاد په اړه بيانونه کول .

## له امریکایي یرغل وروسته

له امریکایي یرغل وروسته ستونزمنو امنیتي شرائطو او د دښمن له لوري سخت جدي تعقیب د مرحوم ملامحمدعمر(مجاهد) په معمولي وظایفو او د اسلامي امارت د زعیم په توگه د جهادي چارو په تعقیب او تنظیم کې کوم تغیر نه را ووست .

په دې وخت کې چې نوموړی په افغانستان کې په مخفي شکل اوسیده خپله کاري ورځ یې د الله عز وجل په عبادت او د قرآن کریم په تلاوت پیلوله او د فرصت په مهال یې د قرآن کریم د بېلابیلو تفاسیرو او احادیثو مطالعه کوله، د یرغلگرو په خلاف د جهادي چارو مراقبت یې ډېر په جدیت سره کاوه، د جهادي او پوځي امورو د ترتیب او سمبالښت په غرض یې په معینه طریقه جهادي قومندانانو ته اوامر او توجیهات صادرول، د جهادي نشراتي منابعو او نړیوالو خبري رسنیو له تعقیب څخه یې د یرغلگرو خلاف جهادي بریاوو او نورو موضوعاتو معلومات ترلاسه کول ، او له همدې لارې یې د هیواد او نړۍ له ورځنیو پیښو ځان خبراوه.

## او بالآخره وفات یې

له ټول عمر جهاد، دعوت ، اصلاح ، فداکاریو او سر ښندنو وروسته له الهي قضا او تقدیر سره سم بالاخره د غه فداکاره مجاهد د اسلامي امارت نوښتگر مؤسس امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد له دې فاني نړۍ د ابدیت په لوري وکوچید.

هغه امیر المؤمنین چې د واکمني هره لحظه یې له تاریخي کارنامو ډکه وه

هغه امیر المؤمنین چې د اسلامي امارت په مهال یې په افغانستان کې د شریعت ځنېدلي احکام یوځل بیا نافذ شول.

هغه امیر المؤمنین چې د واکمنۍ په مهال یې د افغانستان حکومتي نظام اسلامي شو، اقتصاد اسلامي شو، بهرنی سیاست اسلامي او د حکومت د ټولو احکامو یواځنۍ مرجع قرآن کریم ، نبوي احادیث او اسلامي فقه وگرځول شوو.

همدي امير المؤمنين د يرغلگرو د اشغال په مقابل کې پوره ۱۲ کاله په ډېرو ستونزمنو شرائطو کې د ټولې کفرى نړۍ په مقابل کې د يوه جهادي مقاومت حيرانوونکي قيادت وکړ، داسې قيادت چې پوځي تکتيکونواو محاربوي نزاکتونو ته يې د نړۍ د پوځي اکاډيميو ماهرين گوته په غاښ او د امريکا او ناټو تر ټولو مغرورو قومندانانو يې نظامي وړتيا ته د تسليمي سر ټيټ کړ.

نوموړي قائد د نړيوال صليبي ايتلاف په وړاندې دغه معجزانه قيادت د خپل هيواد له سپيرو کليو او ختينو کورونو څخه رهبري کړ، هغه په دې ټولې ۱۲کلنې جهادي دورې کې هم دعصري اليکترونيکي وسائلو له استفادې څخه بي پروا و او هم د معاصرې نړۍ د مصنوعي سپوږمکيو د تخنيک له کارولو څخه مستغني.

هغه به په خپلې ځانگړې طريقې له مجاهدينو سره په تماس کې و ، خو دښمن يې نه د هستوگنې ځاى معلوم کړاى شو او نه يې د مقاومت له لومړۍ کرښې سره د مداوم ارتباط څرک ولگاوه.

ريښتياهم چې ملا محمد عمر(مجاهد) په جهادي قيادت کې د کليوالي تکتيکونو په کارولو سره د غربي نړۍ د کشف او څار پرمختللې تکنالوجي وننگوله ،ځکه هغوى له خپل ټول تخنيکي تفوق سره سره نه د ده د ځاى ځايگي درک ولگاوه او نه يي هم د خپلو پرمختلليو تسليحاتي وسائلوپه مټ د هغه له جهادي گوزارونو څخه ځان خوندي کړاى شو.

هوکې ! ملامحمد عمر مجاهد د۲۱ پيړۍ زاهد واکمن و، داسې واکمن چې خپله واکمني يې د الله د کلمې تر لوړ والي ځار کړه.

همدې زړور او نوښتگر قائد بالاخره له الهي قضا او پريکړې سره سم د۱۳۹۲ هـ ش کال د ثور د مياشتې په څلورمه نيټه خپله روح د هغې حقيقي مالک ته وسپارله او له فاني نړۍ څخه يې د تل لپاره سترگې پټې کړې:

انا لله وانا اليه راجعون...

**راځې دلته د دغه نوښتگر قائد په اړه د اسلامي نړۍ د علماوو, اسلامي مفكرينو او سياست پوهانو ځيني هغه تاثرات ولولو چې د نوموړي د وفات په مناسبت يې څرگند کړي:**

**د اسلامي نړۍ ستر محدث او د سترو مجاهدينو استاد علامه ابو محمد المقدسي:**

**خداى دي پرامام ملاعمر باندې رحم وکړي، د ده امثال په اوسنۍ زمانې کې ډېر كم ليدل كيږي، د الله نظام يي پر ځمكه نافذ كړ، مهاجرينو ته يي پناه وركړه ، د نصحيت گرو نصيحت يې و مانه او له كفارو سره ترهغو وجنگيدو تر څو يقين (مرگ) ورته راغى.**

**د سعودي عربستان ستر محدث او فقيه علامه شيخ علوان:**

**د تاريخ ټولې پاڼې مې واړولې خو له ملا عمر پرته مې داسې حاكم پيدا نه كړ چې هغه دې خپله واكمنې د الله تعالى له دين څخه قربان كړي وي الله دې پري ورحميږي او فردوس جنت دې ځاى شي.**

**مشهور ژورناليست عرفان صديقي:**

**هغه چې كله دخپلې واكمنۍ دوروستى ښار كندهار له سقوط وروسته د افغانستان د مغرورو غرونو په خوا روان و نو په تندي يې له الله تعالى پرته بل چا ته د سجدې خاپ نه ښكارېدو.**

**دوكتور حاكم المطيري الكويتي:**

**د ملا محمد عمرمجاهد په وفات سره اسلامي امت يوستر مجاهد زعيم له لاسه وركړ، داسې زعيم چې د يرغلگرې صليبي ټلوالې په خلاف يي تاريخي مقابله پيل كړه.**

**اي د اسلامي امت زعيمه ! ته په ريښتيا د اسلامي امت لپاره داسې امام وي چې د اسلامي امت موجود اوراتلونكي نسلونه ، د هغوي ټول جهادي او فكري نهضتونو او فقهي مدارس به په تا پسي اقتداء كوي.**

اي لويه استاذه ايا ته په رېښتيا له مونږه وکوچيدي؟!

دکتورشامل:

ای د نړۍ ژبپوهانو اديبانو!

راشئ د نړۍ د ټولو ژبو قاموسونه له سره وليکئ ، له هغو ټولـو څخـه د رجوليـت (نارينه توب) لغت وباسئ او پرځای يې يواځې د ملاعمر نوم ورځای کړئ...

أبو حمزة الدرعاوي:

دا شرعي مسئله ده چې څوک له دښمن سره د مقابلې په سـنگر کـې د ربـاط پـه حال کې وفات شي هغه شهيد دی خدای تعالی دي د شهيد ملاعمر (مجاهد) شهادت قبول او فردوس جنت ځای کړي.

أبو عزام الأنصاري:

لوی سړی و په ډير لوی وجود کې امير (ساربان) يې پياده شـو ( وفـات شـو) خـو قافله مخ په وړاندې روانه ده.

پر دې سربيره د امير المؤمنين د وفات خبر د نړۍ د خبري رسنيو تر ټولـو داغ خبر و او د اسلامي نړۍ يـو زيـات شـمير علمـي او جهـادي شخصـيتونو پـه دې اړه د اسلامي امـارت د مشرـ تابـه پـه نـوم د غمشرـيکي او خواخـوږۍ پيغامونـه راوليـږل. خپله د اسلامي امارت رهبري شوری هـم د اميـر المـؤمنين د وفـات پـه مناسـبت پـه لاندې متن افغان مجاهد ولس او اسلامي نړۍ ته د تسليت او خواخوږۍ اعلاميه خپره کړه .

## د عاليقدر امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ د وفات د اعلان په اړه د اسلامي امارت د رهبري شورى او دمرحوم د كورنۍ اعلاميه

بسم الله الرحمن الرحيم

إن الحمد لله , نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونتوب إليه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله؛ فلا مضل له، ومن يضلل؛ فلا هادي له. ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، ونشهد أن محمداً عبده ورسوله، صلى الله عليه وعلى آله وأصحابه وسلم تسليماً كثيرا.

أما بعد. فقد قال الله تبارک و تعالی:

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلاَّ بِإِذْنِ الله كِتَابًا مُّؤَجَّلاً وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ١٤٥وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُواْ لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَمَا ضَعُفُواْ وَمَا اسْتَكَانُواْ وَاللّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ١٤٦وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلاَّ أَن قَالُواْ ربَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ١٤٧ آل عمران.

ترجمه : او هيڅ يو كس لره دا واک نشته چې مړ شي مګر دالله تعالى په حكم سره په ليكل شوي ټاكلي نيټه به مري،او څوک چې ددنيا اجر غواړي نو له همدې يې برخه وركوو او څوک چې داخرت اجراو ثواب غواړي نو له هماغه يعني اخرته يې وركوو،او زر به شاكرينو ته ښه بدله وركړو. او ډير داسې نبيان دي چې په خوا كې يې ډير خداى پالونكي جنګيدلي دي خو دالله په لاره كې د ور رسيدلو مصيبتونو له امله نه سست شول،نه كمزوري شول او نه يې سرټيټى وكړ او الله همداسې صابرين خوښوي.او ددوى له دې پرته بله خبره نه وه چې ويل به يې: اې زموږ ربه ګناهونه مو راوبخښه او په خپلو چارو كې زموږ تيرى راوبخښه او پښې مو ټينګې كړه او پر كافرانو نصرت او بريا راكړه .

مرگ حق دی موږ پردې ایمان لرو چې له الله تعالی پرته هر موجود د مرگ سره مخ کیږي،حتی د الله تعالی تر ټولو محبوب مخلوق د دوو جهانونو سردار حضرت رسول اکرم محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د مرگ څکه کړې او له دنیا څخه یي رحلت کړی دی.

همدې حقیقت ته په پام سره د افغانستان د اسلامي امارت مشرتابه او د ملامحمد عمر مجاهد کورنۍ اعلانوي چې د اسلامي امارت مؤسس او زعیم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د وریښې شوې ناروغۍ له امله خپل روح ملک الارواح ته وسپاره او له دې فاني جهان څخه یي رحلت وکړ. اناالله وانااليه راجعون . رحمه الله تعالی رحمة واسعة

ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه د اسلامي امت یو ویاړلی او مخلص رهبر و،چې په ډیرو سختو شرائطو کې یي د اسلامي حاکمیت لویدلی بیرغ راپورته کړ، د اسلامي امارت تر نامه لاندې یي یو بشپړ منظم او د اسلامي سیاست پر اصولو برابر شرعي نظام تأسیس کړ،الله تعالی دده په توسط نه یوازې د افغانستان په سطحه مؤمنانو ته د اسلامي نظام نعمت ور ولید بلکې درست جهان ته یي د واقعي اسلامي حاکمیت نمونه وړاندې کړه.

دا څو کرښې شاید د نوموړي د ویاړمنو کارنامو د احتوا تاب ونلري،نوځکه اصلي خبرې ته ځو او هغه داچې عالیقدر امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ نور له دې دنیا رحلت کړی،په دې شرائطو کې زموږ دنده دا ده چې له نوموړي راپاتې امانت اسلامي امارت هماغسې وپالو لکه ده مرحوم چې پاللی و،هماغسې اسلامي شریعت ته التزام وکړو،هماغسې مخلص او په الله تعالی متوکل واوسو،هماغسې قربانۍ ته حاضر او د حق په لاره کې مؤمن، متعهد،متوکل،صابر،ثابت او له الله تعالی څخه ویریدونکي واوسو تر څو الله تعالی همداسې ددې ستر بار د پورته کولو او تر منزله رسولو توفیق راکړي،او همداسې مو د دنیا او اخرت په سرلوړۍ او بریا ونازوي .

مرحوم ملامحمدعمر مجاهد چې دامريکا په مشرۍ دنړيوال کفري يرغل له ټول فشار او تعقيب سره سره په هيواد کې اوسېده اوپه تيرو څوارلسو کلونو کې حتی د يوې ورځې لپاره هم له افغانستان څخه بهر پاکستان يا کوم بل هيواد ته نه دی تللی او له خپل ميشت ځای څخه يي د اسلامي امارت چارې رهبرې کولې چې دنوموړي په دې ستر استقامت او له هيواده په نه وتلو کره شواهد او دلايل مو جود دي څه موده وړاندې د ورپيښې شوي ناروغۍ له امله چې دناجوړي په وروستيو دوه اونيو کې سختي زياته شوه او په حق ورسيد.

عاليقدر اميرالمؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ که جسما يو شخص و مګر په معنوي لحاظ نوموړی يو خوځښت،يوه نظريه او د يوه مقدس ارمان حامل و،که څوک غواړي د هغه روح خوشاله کړي او له هغه سره د وفا ثبوت وړاندي کړي،نوبايد د نوموړي له ميراث اسلامي امارت سره وفا وکړي،د اسلامي نظام د اعادې لپاره په دې شرائطو کې په حيث د مسلمان دا زموږ د فرد فرد وظيفه ده چې د اسلامي امارت د قوت،وحدت ، پراختيا او بريا لپاره ټولې هڅې په کار واچوو، ددې ګډ کور بنيادونه لا پاخه کړو،ځکه زموږ د مسلمان اولس او مجاهد قشر عزت او سرلوړي يوازې د همدغه صف په قوت سره تضمينږلی شي .

مرحوم اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ اسلامي امارت د يوه ستر خوځښت په حيث په داسې ډول ودان کړی او روان کړی چې ترشا يي جوړ او محکم بنيادونه ، مخلص او باتدبيره ملګري او منظم تشکيلات پرې ايښي دي لهذا مجاهدين او ټول مسلمانان دي مطمئن اوسي،چې دا کاروان به د اسلامي امارت ټول مسؤلين او افراد د الله تعالی په نصرت او دمسلمانانو په ملاتړ د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ له ارمانونو سره سم منزل مقصود ته رسوي ان شاءالله تعالی و ماذالک علی الله بعزيز

د اسلامي امارت د مشرتابه ، رهبري شوری او دعاليقدراميرالمؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ دکورنۍ له پريکړې سره سم به سر له نن يعني د ۱۴۳٦ هـ ق کال د شوال له ۱۴ څخه تر

دریو ورځو پورې په ټولو سیمو کې دعلماء کرامو ،د مساجدو د امامانو،قومي او جهادي شخصیتونو،د اسلامي امارت د مسؤلینو،مجاهدینو او عام اولس لخوا د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ روح ته د دعاء په خاطر دقران کریم د ختمونو ،فاتحو او دعاګانو مراسم ترسره کیږي،او له الله تعالی څخه به مرحوم امیرالمؤمنین ته د مغفرت او اسلامي امارت ته د استحکام او بریالیتوب دعاګانې کیږي .

په پای کې باید یادونه وکړو چې د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد مورنی ورور ملا عبد المنان اخنداو د مرحوم ملامحمد عمر مجاهد مشر زوی مولوي محمد یعقوب له ټولومسلمانانو څخه خصوصي غوښتنه کوي چې د مرحوم ملا محمدعمر مجاهد په مشرۍ د اسلامي امارت په واکمنۍ کې که ددوی کوم ډول حقوق تلف شوي وي، نو ټول دې ورته عفو وکړي او په دعاګانو کې دي تل یاد ساتي،موږ په دې ستر غم کې ټول مسلمان امت او په خاص ډول د افغانستان مجاهد ولس له ځان سره شریک بو لو اوټولو ته له الله تعالی څخه دتسلیت او صبرجمیل غوښتونکي یو . والسلام

د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شوری

او دعالیقدر مرحوم ملامحمد عمرمجاهد کورنۍ

۱۴۳٦ هـ ق کال د شوال المکرم ۱۴مه

۱۳۹۴هـ ش کال د اسد ۸ مه

۲۰۱۵میلادي کال د جولای ۳۰ مه

# د شهید امیرالمؤمنین
# ملا اخترمحمد (منصور) رَحِمَهُ ٱللَّهُ ژوندلیک

**(ترتیب: د فرهنګي کمیسیون د تاریخ څانګه)**

د افغانستان اسلامي امارت چې په معاصر دور کې په نړیواله کچه د کفر او استبداد پرخلاف د جهاد او مبارزې یو مستحکم سنګر بلل کیږي تأسیسي قائدین یې لله الحمد په موهوبوي شکل د رهبري او مشرتابه له فوق العاده صلاحیتونو او مهارتونو څخه برخمن وي .

خپله د افغانستان د اسلامي امارت مؤسس مرحوم ملامحمد عمر (مجاهد) رَحِمَهُ ٱللَّهُ د قیادي صلاحیتونو یوه ژوندي مجموعه وه. نوموړي وکړای شول د نړیوال کفر سره د مقابلې په ډګر کې د مسلمانانو د قیادت او رهبري صلاحیتونه په عملي ډول ځینو هغو مجاهدینوته تلقین کړي چې له ده سره په دې لاره کې د الله تعالی د نظام د حاکمیت لپاره ملګري ول.

د نوموړي په قیادت کې عمري جهادي مدرسې ډیر داسې اشخاص تربیه اوروزلي چې هر یو یې دمسلمانانو د قیادت او د عصر په تر ټولو حساسو شرائطو کې د جهادي قیادت پوره وړتیا او صلاحیت لري.

په فکري او جهادي نهضتونو کې هسي هم تر شخصیاتو زیات محوري رول د مذهبي اساساتو وي، هلته هرڅه د جهادي اوفکري انګیزې له مخې تنظیم وي. قرآني ارشادات او د رسول اکرم صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ او خلفاء راشدینو کارنامې د نهضت د لارویانو اساسي تګلاره وي .

د دغو بابصیرته شخصیتونو او د عُمري مـدرسي د متانـت لرونکـو شـاگردانو لـه جملې څخه یو هم د اسلامي امارت دوهم ټاکل شوی زعـیم شـهید أمیرالمـؤمنین مـلا اختر محمد (منصور) تقبله الله و چې په عملي ډول یې د اسلامي امارت د قیادت چاري د عالیقدر امیر المؤمنین په حیات کې پیل کړې او د هغه د وفات تر اعلان وروسته د اسلامي امارت د اهل الحل والعقد معتبرو اشخاصو، علماء کرامو ، جهـادي مخـورو او نورو ملي شخصیتونو لخوا د اسلامي امارت د نوي زعیم په حیث وټاکل شو او بیا یې د شهادت تر شیبې په پوره ایمانداري، متانت او میړانـه ددغـه سـتر کـاروان د رهـبرۍ درنه وظیفه ترسره کړه.

په لاندې کرښو کې د نوموړي ژوند او کارنامو ته لنـډه کتنـه کـوو هیلـه ده چـې راسره ویې لولئ.

**زوکړه یې**

شهید ملا اختر محمد منصورد الحاج محمدجان زوی، پـه ۷ ۱۳۴هـش ـ ۱۹۶۸ م کال د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ په بند تیمور کلي کي زیږیدلی دی.

داچې د نوموړي کورنۍ د خپلې سیمې په کچه یوه متدینه اوعلم دوسته کـورنۍ او جناب والد صاحب یې یو علم خوښوونکی شخصیت و، نو د جناب منصور صاحب د سالمې روزنې لپاره یې هغه ته لومړنی انتخاب د دیني زده کړو ترلاسه کول و.

**زده کړې یې :**

شهید منصور صاحب په اوه کلنۍ کې د خپل والد صاحب پـه لارښـونه د خپلـې سیمې ابتدایي مکتب او دخپل کلي مسجدکې ددیني زدکړوشعبي ته شامل کړای شو، داچې پر نوموړي باندې له ماشومتوب څخه د پوهې، ذکاوت او بصیرت علامې ښـکاره وې نو د خپل پلار ترڅنگ د استادانو لخوا هم تر خاصې روزنې او پالنې لانـدې ونیـول شو.

ځرنګه چې د نوموړي کورنۍ د هجرت په مهال د بلوچستان اړونـد پـه ګـردي ځنګل کمپ کې اوسیده نو دیني زده کړې یې څه موده همدلته او بیا د پـنج پـای پـه سیمه کې ترسره کړې. له هغه وروسته کوټې ښار ته لاړ څه وخت په کوټـه او وروسـته یې د عبدالله خان کراس په سـیمه کـې پـه یـوه مدرسـه کـې دینـي کتابونـه ولوسـتل. وروسته نوموړی د دیني علومو په تلاش پیښور ته لاړ او هلته یې په کچه ګړۍ او نورو سیمو کې دینی درسونه وویل او وړه دوره یې د پیښور د جلوزو په کمپ کې ولوسته.

هغه مهال چې نوموړی په دیني زده کـړو بوخـت و د افغانسـتان سـیاسي واک د کمونستانو لاس ته ولوید او افغان مجاهد ولس د هغوی پرخلاف اسلامي پاڅون وکړ.

جهاد او سیاسي مبارزه یې :

په کال ۱۹۷۸م کې په افغانستان باندې د شـوروي اشـغالګرو تـر تیـري وروسـته افغان مجاهد ولس د هغوی پرخلاف اسلامي مقاومت پیل کړ .جناب منصـور صـاحب چې هغه مهال اتلس کلن و د یوه تکړه او باشهامته ځوان په توګه دیـوه غیـرتي مجاهـد په حیث یې په شعوري ډول له خپل دین او هیواد څخه د دفـاع پـه غـرض د یرغلګـرو شورویانو او داخلي کمونستانو په خـلاف د وسـله وال جهـاد لاره ونیوله.نوموړی بـه د کال په اوږدو کې کله په دیني درسونو بوخت و او چې سبقونه به خلاص شول نو به یې د جهادي جبهو پر خوا مخه کړه.

نوموړی په کال ۱۹۸۵ م کې د جهادي فعالیت لپاره د کندهار ولایـت د مشـهور جهادي قومندان شهید قاري عزیزالله جبهه دخپل جهادي سنګر پـه حیـث غـوره او د پنجوایي ولسوالۍ په پاشمول سیمه کې یې د افغانسـتان پـه کچـه د مشـهور جهـادي شخصیت الحاج ملامحمد حسن اخنـدڅوک چـي داسـلامي امـارت پـه واکمنـۍ کـې دریاسـت الـوزرا مرسـتیال و تـر سرپرسـتي لانـدې د شـوروي اشـغالګرو او داخـلي کمونستانو پـر خـلاف جهـادي فعالیـت تـه دوام ورکـړ،د شـهیدقاري عزیـزالله جبهـه دجهادي شخصیت مرحوم مولوي محمـدنبي محمـدي د حرکـت انقـلاب اسـلامي پـه تنظیم پوري ملحق وه چي دقاري صاحب تر شهادت وروسته یي دقومندان ملا حـاجي

محمد اخند په مشرۍ د جهادي شخصيت مولـوي محمـد يـونس خـالص پـه اسـلامي حزب کې رسميت ترلاسه کړ .

محترم منصور صاحب په کندهار کې د شوروي اشـغالگرو او د هغـوی د داخـلي ملاتړو پر خلاف په ډيرو پوځي عملياتو کې فعاله برخه لرلې اويو ځلې په کـال ۱۹۸۷ م کـې دکنـدهارولايت د ژړۍ ولسـوالۍ دسـنځري پـه سـيمه کـې دروسـانو پـه يـوه ستراتيژيک مرکز باندي دمخامخ عملياتو په ترڅ کې په داسي ډول زخمي شو چي بدن يې ديارلس ځايه خوړ و خو الله تعالی ورته شفاورکړه ،دوهم ځل بيا د۱۹۹۷ م کال دمی په مياشت کي داسلامي امارت په واکمني کې د مزار شريف په هوايې ډگر کې زخمـي شو او په هغه زخمي حالت کې د مخالفينو لخوا اسير هم شو.

## د طالبانو په اسلامي تحريک کې يې تأسيسي رول

په کال ۱۹۹۲ م په افغانستان کې د کمونستي نظام تـر سـقوط او د اخـلي جگـړو پيليدو وروسته جناب منصور صاحب د خپلې جبهې د نورو مخلصو مجاهدينو په څير وسله پر ځمکه کيښودله او د واک پرسر دپيل کړل شوي ناروا جگړې په تداوم کې يـې د هيچا پلوي و نه کړه.

منصور صاحب چې دا مهال يو نوم وتی مجاهد او د مجاهدينو په منځ کې له ښه شهرت نه برخمن و د يادې سيمې د نورو جهادي شخصيتونو او نظامي قوماندانانو لکه مرحوم ملامحمد رباني ، شهيد ملامحمد آخند،او شهيد ملا بورجـان پـه څيـر د خپـل عادي ژوند په غوره کولو سره له هرډول تنظيمي فعاليتونو څخه لاس په سر او په ځينو علمي او تربيوي فعاليتونو مصروف شو.

په کال ۱۴۱۵ هجري قمري کال کې چې د امير المؤمنين ملامحمد عمـر مجاهـد لخوا د طالبانو اسلامي تحريک تأسيس شو ملا اختر محمد منصور صاحب دغـه مهـال په پيښور کې د جلوزو کمپ د هجرت کلي په امينيه مدرسـه کـې لـه شـيخ الحـديث مولوي شهاب الدين دلاور صـاحب او مشـهور مـدرس مرحـوم سـيد قـريش بابـا سره

سبقونه ویل او ورسره د جنوب غرب حوزې نور هم ډېر طالبـان ملگـري همدرسـه وو. کله چې دوی له راډیوگانو د طالبانو د تحریک د تأسیس خبره واوریده نو تر خپل منځ یې مشوره وکړه چـې ددې نـوي تحریـک د حقیقـت معلومولـو لپـاره بایـد څـو کسـان کندهار ته ولیږي. دوی خپله دوه ملگري مـلا محمـد قاسـم اخنـد او مـلا عبدالسـلام محبور کندهار ته راولیږل. هغوی د اسلامي تحریک له مشر او چارواکو سره ولیدل او له پوره اطمینان او قناعت وروسته یې خپلو د مدرسـې ملگـرو تـه حـال راووړ چـې دا واقعا د طالبانو او مجاهدینو تحریک دی.له دې سره ملا اختـر محمـد منصـور او نـور ملگري یې را روان شول، په کومه شپه چې دوی بولدک ته راورسـیدل طالبـانو دتختـه پول سیمه نیولې وه او د کندهار پر خوا روان ول.

په بولدک ملا اختر محمد منصور او ورسره ملگـرو طالبـانو خپـل منځـي غونـډه وکړه تر څو خپل مشر وټاکي په دې طالبانو کې ډېر داسـې کسـان و چـې وروسـته پـه اسلامي امارت کې یې ستر ستر خدمتونه وکړل لکه د نظامي کمیسـیون اوسـنی مشر-صدر محمد ابراهیم،د هلمند ولایـت برحـال والي مـلا عبـدالمنان اخنـد،د کنـدهار د هوایي ډگر پخوانی مسؤل ملا محمد قاسم اخند،د شـینډنډ د میـدان پخـوانی مسـؤل ملاعبدالسلام محبور، د هلمند پخوانی والي ملا محمـد نعـیم اخنـد، د زابـل پخـوانی والي مولوي مطیع الله صـاحب ، شـهید مولـوي احمـد جـان او نـور ډېـر مجاهـدین او مسؤلین. له سلا مشورو وروسته دوی د خپلو ملگرو له منځه ملا اختر محمـد منصـور صاحب د خپل مشر په حیث انتخاب کړ او بیا دوی ټولو د هغه تـر مشرۍ لانـدې پـه اسلامي تحریک کې شمولیت وکړ او خدمت یې پیل کړ.

نوموړي د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال لاندې وظائف او مسؤلیتونه تـرسره کړل.

۱ـ دکندهار ښار له نیولو وروسته نوموړی د کندهار د هـوایي ډگـر د مسـؤل پـه حیث وټاکل شو.

۲ـ د طالبانو په لاس د کندهار ولایت تر نیول کیدو وروسته په کندهار کې د هوايي ځواکونو او هوايي مدافعي مسؤلیت ورته وسپارل شو.

۳ـ په کال ۱۹۹٦م کې د پلازمینی کابل ترنیولو وروسته د هوايي چلنداوسیاحت وزیر وټاکل شو .

۴ـ له وزارت سره هم مهاله دمرحوم امیرالمومنین د ځانګړي هدایت او حکم پر اساس د دفاع وزارت مربوط د هوايي مدافعې عمومي قومنداني مسؤلیت هم ورته وسپارل شو.

د افغانستان د هوايي چلند او توریزم وزارت په ساحه کې یې یو زیات شمیر عمراني او رغنیز فعالیتونه تر سره کړي چې په مختصر ډول یې د ځینو تذکر کوو:

هغه مهال چې کابل ښار د اسلامي امارت تر ولکې لاندې راغی په دې ښارکې د هوانوردي وزارت تأسیسات او مربوط ملکیتونه د داخلي جګړو له کبله سخت متضرر شوي ول.دا هغه مهال و چې اسلامي امارت له سختو اقتصادي ستونزو او نړیوالو محدودیتونو سره مخ و خو منصور صاحب په هماغو نامناسبو اقتصادي شرائطو کې لومړی د کابل بین المللي هوايي ډګر او د هغه اړوند تأسیسات ټول له سره ورغول او بیايي د آریانا افغان نړیواله هوايي کرښه د کورنیو او بهرنیو الوتنو لپاره په نړیوال ستندرډ برابره مجهز ه کړه.

د هغه په تعقیب د کندهار، هرات ، ننګرهار، مزار شریف او کندز ولایت هوايي ډګرونه د هرډول ملکي او پوځي الوتنو لپاره اماده او په پرمختللیو وسائلو مجهز کړل دغه راز یې دافغانستان په دننه کې د شپې او ورځې لپاره د داخلي الوتنو سهولت برابر او له کلونو ځنډ وروسته یې په لومړی ځل په زرګونو افغاني حاجیانوته د اریانا افغان هوايي کرښې له لاري حج ته د تللو زمینه مساعده کړه.

محترم ملا اختر محمد منصور چې د اسلامي امارت د ټولې واکمنۍ پرمهال د هوايي چلند وزیر و د خپل وزارت پرمهال یې دافغانستان د ملکي هوايي چلند وزارت

داحیاء او پرمخ بیولو په لاره کې ډیرې هلې ځلې وکړي چې غواړو د مشت نمونه خروار په توگه يې دلته مختصر یادښت وکړو.

جنـاب منصورصـاحب دملکـي هـوايي چلنـدد ښـې رهنمايـي اودنـړۍ دنـورو هیوادونود ترانزیټ پروازونوچي دافغانستان له فضانه به تیریدل پـه خـاطر د(ویسـت دستگاه) دافغانستان په بین المللي مشهوروهوايې ډگرونو لکه کابل، کندهار، ننگرهار، مزاراوهرات کي ځا ی پر ځای کړه چي اوس يې هم لیدونکي شاهدان دي، اوهغه مهال يې په میلیونونو امریکايې ډالر دبهرنیو الوتکوله تیریدو نه دټکس په ډول دافغانسـتان بودیجي ته را تلل چي تر اوسه دوام لري. د هغه مهال د افغانستان د هوانوردۍ وزارت اوهوايې مدافعې د یوه راپور له مخې د منصور صاحب د وزارت پرمهـال خـوا و شـا ۴۴ بیلابیلې ترانسپورتي الوتکې او جنگي چورلکې چې د جگړو پرمهال زیانمنې شوې او له الوتنې لویـدلې وې لـه سره تـرمیم او پـه ملکـي هـوايي چلنـد او هـوايي ځـواک کـې د استفادي وړوگرځولې چې لنډ تفصیل يي په لاندې ډول دی .

ــ هغه ۴۴ مختلف النوع الوتکې چې د منصور صاحب د وزارت پرمهـال لـه سره ترمیم او رغول شوي عبارت دي:

**ترانسپورتي الوتکي:**

دری این ۱۲ – څلور این۳۲ – دوه این ۲٦

**جنگي الوتکې**

اته جیت میگ۲۱ – دری جیت سو٤۲۰M – پنځه جیت سو۲۲

**هلیکوپتر:**

شپږ می ۸ – اته می۳۵ – پنځه ایل ۳۹

له دې علاوه د ملکي ترانسپورت اړوند یوه روسي ساخته ٤۱ ډوله او یوه این۲۴ او د اریانا افغان هوايي شرکت امریکايي بوینگ الوتکې هم په خپل وخت کی پـه بهرنیـو هیوادونـوکي تـرمیم اود اسـتفادې وړ وگرځیـدې. دغـه راز یـي ۵روسي سـاخته

ترانسـپورتي الـوتکي پـه ازادبـازارکې خریـداري او د افغانسـتان هـوايي خـدماتو تـه وسپارلې.

په دې یوشمیرترمیم شویو اوخریداري شویوالوتکو سربیره هغه مهال افغانسـتان نورې هم په لسګونو روغې جنګي، ترانسپورتي الوتکې او چـورلکې درلـودې چـې د یـوه بشپړ هوايي ځواک رول یي درلود او د فعالیت ښه بیلګه یې په کندز او ځینو نورو لري پرتو سیمو کې دمجاهدینو دمحاصره ځواکونواو مختلفو لري پرتومقدموجبهو او جنګي خطونوته دوام داره اکمال او هوايې مرسته بللای شواوهم دهیـواد لویـو ښـارونو او لـه هیواده بهرته په منظم ډول دمسافر وړونکو الوتکو الوتنې جاري وې. خـو دامریکایـانو په یرغل او دهوايي ډګرونو په بمبارولو سره دغه ملي شتمني په یومخیز ډول تباه او له منځه ولاړه .

محترم ملا اخترمحمد منصـور د اسـلامي امـارت د واکمنـي پـه مهـال د جـنرال مالک د غدارۍ له کبله په شمال کې څه باندي شپږ میاشتي بندي شو خـو وروسـته د الله تعالی په فضل هغه وخت بیرتـه ژونـدی راخـلاص شـوچي جـنرال مالـک د جـنرال دوستم په بیرته را څرګندیدوسره له فاریابه وتښتیده اوله بندیخانو څخه یې بندیانو ته د وتلو زمینه مساعده شوه .

## د امریکایانو د یرغل په خلاف وسله وال مقاومت

په ۲۰۰۱ م کال د اکتوبر په اوومه نیټه په افغانسـتان بانـدې د امریکـا تـر یرغـل وروسته محترم منصور صاحب د هغوی په خلاف مسلح جهاد پیل کړ .

د امریکا په ضد د نوموړي د جهاد یو د یاد وړ مرحله د کندهار د هوايي ډګر پـه شاوخوا کې د امریکایي بمبار په مقابـل کـې مقاومـت او د امریکـا لـه ګوډاګیـانو سره مخامخ جنګونه دي چې اوږده موده یې دوام وکړ.د یادونې وړ ده چې امریکایانو خپـل لومړنۍ یرغل او بمبار هم د کندهار له هوايي ډګر څخه پیل کړ. په لومړي ځـل یـې د هوايي ډګر په ساحه کې د پیچور په نوم د مدافع هوايي دستګاهوویشتله وروسته یې د

مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمرمجاهد کور دغه راز د هوايي ډګر رادار، څغاست ليکه او د هوايي ډګر په ساحه کې د شهيد منصور صاحب کور او په خاص ډول دده د اوسيدلو اطاق يې په نښه کړ. خو دا چې هلته څوک موجود نه ول چاته تلفات ونه رسيدل.

وروسته چې د پلازمينې کابل په شمول له ډير ولاياتو څخه مجاهدينو عقب نشيني وکړه د کندهار په ولايت کې تر يوې مياشتې پورې بيا هم مقاومت روان و. په دې مهال د ګل اغا شيرزي په مشرۍ د امريکا ګوډاګيانو د ارغسان د پله له خوا مسلسلې حملې کولې او دامريکايي الوتکو بمبار هم روان و منصور او ملګرو يې تر وروستۍ شيبې پورې مقاومت وکړ او بيا بيا يې ددښمن تعرضونه په شا وتمبول.

منصور صاحب دغه مهال چې د امريکايانو سخت بمبار روان و تر هغه وخته چې د اسلامي امارت مشرانو له کندهار ښار څخه د وتلو پريکړه کوله هميشه دميدان په شاوخوا کې اوسيده او ددښمن په خلاف يې مقاومت ته ادامه ورکوله.مولوي مطيع الله صاحب وايي دغه وخت ورته د امريکايانو او ګل اغا شيرزي لخوا يو چا خط راووړ چې منصور صاحب ته يې په کې ليکلي وچې: نور راشه تسليم شه، سر به دې په امن وي او کنه زموږ زور نلري او له شکست سره به مخامخ شې. منصور صاحب د دښمن استازي ته وويل چې ورشه ورته ووايه چې څه زور لرئ ټول وکاروئ، زما د تسليمۍ فکر مه کوئ او نه به هم کله تسليم شم.خپل وس کوئ او خپل وس به کوم.

مولوي مطيع الله وايي منصور صاحب د کندهار په دفاعي خط کې تر وروستۍ شيبې د مقاومت اراده درلوده يو وخت ورته يوه ملګري وويل چې له ميدان څخه به مهمات او درنې مرمۍ دريګ او ميوند خواته انتقال کړو. ده ورته وويل چې له هغه ځايه يې بيا نه شو راوړلی تر څو چې يو همدلته به يې مصرفوو.

ملا عزيز الرحمن هم د منصور صاحب اړوند د همدې وخت يوه خاطره ذکر کوي او وايي: په همدې سخت وخت کې چې د افغانستان ډيرې سيمې داسلامي امارت له واکه وتلې وې او يوازې کندهار ښار پاته و او سخت بمبار هم شروع وو يوه

ورځ ورسره له ترنک پله تر ښار پورې په موټر کې ملګری وم نو یې همدا مـذاکره کوله چې: حالات ډیر سخت دي، خو باید زموږ عزم متزلزل نه کـړي،دا د الله تعـالی تقـدیر دی چې کله سړی پاچا وي او کله بیـا ګـدا شي.دا هـر څـه د بنـدګانو دازمویلـو لپـاره کیږي نو موږ باید خپله عقیده او عزم ونه بایلو او له دین سره خپل تعهد وساتو.

خو کله چې د اسلامي امارت مجاهدینو له کندهار ښار څخه د وتلو پریکړه وکـړه منصور صاحب هم په هماغه وروستۍ ورځ لـه کنـدهار ښـار څخـه ووت او د میونـد ولسوالۍ بند تیمور ته لاړ او د امریکایي یرغل په خلاف یې له سره د جهادي مقاومـت د تداوم هڅې پیل کړې.

د محترم منصور صاحب په جهادي ژوند کې د امریکا په ضـد د جهـاد مرحلـه د ده لپاره له سـختو آزمایښـتونو او چیلنجونـو ډکـه دوره وه .دغـه وخـت نومـوړي تـه د مرحوم امیر المؤمنین لخوا د اسلامي امارت د رهبري شـورى پـر عضـویت سربیـره د کندهار ولایت جهادي مسؤلیت هم وسپارل شو.

دا مهال د کندهار ولایت د افغانستان د نورو ولایتونو په څیر د امریکایانو خلاف جهاد کې یو تکړه ، او ماهر جهادي مسؤل ته اړتیالرله ؛ ځکه امریکایـانو د ټـول جنـوب لویدیځ زون په سطحه جنګي پلانونه له همدې ولایت څخه د مجاهدینو په خلاف طرح کول او همدا لامل و چې تر هلمند وروسته د ټول زون په کچه په کنـدهار ولایـت کـې زیات شمیر امریکایي، کاناډایي او نور بهرني یرغلګر ځای پرځای او تر بګرام وروسـته لویه مرکزي اډه یې هم د کندهار ولایت په هوایي ډګرکې فعاله کړه.

خومنصور صاحب دخپل جهادي بصـیرت لـه مخـې پـه کنـدهار ولایـت کـې د ټولـو موجودو خارجي یرغلګرو پرخلاف داسې جهادي پلانونه طرح کـړل چـې د هغـوی د وخـت مشهور پوځي جنرالان او نظامي ماهرین یې له مخنیوي او مقابلې څخه عاجز ول.

په کال ۲۰۰۳ م او ۲۰۰۸ م کې د کندهار ولایت د مرکز ي محبس د مجاهدینو په لاس دوه ځلې په حیرانوونکې توګه ماتیدل چې له مخې یې په دواړه ځـلي مجموعـا تـر

يونيم زر زيات اسير مجاهدين د دښمن له اسارت څخه راخلاص کړای شول هم د منصور صاحب د مسؤليت په مهال تر سره شول.دغه راز د کندهار ښار ته څيرمه سيمو سربيره په جنوبي او شمالي ولسواليو کې د جهادي قيام پيل او اطرافي سيمو ددښمن له واکه ايستل،په کندهار ښار کې د چريکي ښاري جګړې تداوم،د دښمن په مراکزو د سترو استشهادي عملياتو ترسره کيدل او ډيرې نورې جهادي کارنامې هغه څه دي چې د شهيد منصور صاحب د مسؤليت په مهال يې په کندهار ولايت کې صورت موندلی.

## د اسلامي امارت د مرستيال په توګه

چي کله په۲۰۰۷ م کال کې داسلامي امارت پخوانی مرستيال الحاج ملا عبيدالله اخند د پاکستاني حکومت لخوا اسير شونومرحوم عاليقدراميرالمؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، ملا اختر محمد منصورداسلامي امارت له بل مرستيال محترم ملا برادراخند سره داسلامي امارت ددوهم مرستيال په حيث وټاکه او دا هدايت يې هم ورته وکړ چې کندهار ډير مهم دی دهغه ولايت مشرتوب به هم نه پريږدي او دواړه دندي به پرمخ وړي.

په کال ۲۰۱۰ ميلادي کې هغه مهال چې د اسلامي امارت يو مرستيال الحاج ملاعبيد الله اخند د پاکستاني ځواکونو په اسارت کې شهيد او بل مرستيال يې ملاعبدالغني برادر د امريکايي او پاکستاني مشترکو قواوو لخوا په پاکستان کې اسير کړای شو امير المؤ منين ملامحمد عمر (مجاهد ) محترم منصور صاحب د اسلامي امارت د مرستيال او د امارت د ټولو چارو د عمومي مسؤل په توګه وټاکه .

دا هغه مهال و چې د اوباما لخوا افغانستان ته ۳۰۰۰۰ نوي اضافي ځواکونه را ليږل شوي او په افغانستان کې جهادي مقاومت له سترو ننګونو سره مخ و .ځکه د يرغلګرو تر يولک زيات په تر ټولو پرمخ تلليو وسلو مجهز خارجي ځواکونه د سلګونه زره داخلي پوځيانو ترڅنګ له مجاهدينو سره د هيواد په ګوټ ګوټ کې په جګړو ښکيل ول.

له یوې خوا د نهایت حساسو امنیتي شرائطو له وجې د مقاومت د پوځي رهبري لپاره د اسلامي امارت امیر ملامحمد عمر (مجاهد) راڅرګندیدل ناشونی کار ګڼل کیده له بلې خوا په جهادي جبهه کې د پوځي او اداري قیادت تشه هغه څه ول چې دمقاومت پله یې په بشپړه توګه د دښمن په لور درنوله.

په مجاهدینو باندې پر پوځي فشار سربیره د دښمن لخوا نور سیاسي او تبلیغاتي فشارونو هم ډیر زیات شوي او د مقاومت په سنګرو کې یې ډیر شمیر جهادي چارواکي په شهادت رسیدلي ول اوګڼ شمیر مشران مسئولین اسیران ول .

په دغسي یو حساس وضعیت کې د مرحوم امیر المؤمنین ملامحمد عمر (مجاهد) لخوا د صلیبي یرغلګرو په وړاندې د مجاهدینودسمبالښت مسؤلیت د محترم منصور صاحب په غاړه ور واچول شو. محترم منصور صاحب عملا وکړای شول چې دالله تعالی په نصرت اودرهبري شوری په مرسته د مقاومت په تر ټولو حساسو شیبو کې هغه په داسې ډول رهبري کړي چې مجاهدین په هیڅ ډول د عملي قیادت تشه احساس نه کړي .

هماغه و چې ۲۰۱۰م کال په افغانستان کې د صلیبي ځواکونو لپاره د هغوی په خپل اعتراف تر ټولو خونړی کال ثابت او مجاهدینو وکړای شول تر بل هروخت په همدي کال کې ډیر موثر او کاري ګوزارونه پر دښمن ترسره او په ترڅ کې یې خپله د دښمن په اعتراف ۷۷۰ تنه خارجي یرغلګر و وژني.

همدا راز مجاهدینو د منصورصاحب په قیادت کې وکړای شول چې له دښمن نه ډیري پراخي سیمي فتحه او منظمه اسلامي اداره پکې رامنځ ته کړي .

## د امیر المؤمنین ملامحمدعمر (مجاهد) تر وفات وروسته

د ۱۳۹۲ هجري شمسي کال د ثور د میاشتې په څلورمه نیټه چې کله امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد وفات شو نو داسلامي امارت د رهبري شوری یو شمیر غړیو، جیدوعلماء کرامو ، په تیرو دوولسو کلنو کې د مرحوم ملا محمدعمر

(مجاهد) د ځانګړي قاصداو د نوموړي دائمي ملګروکوم چي د وفات تر وخته له نوموړي سره يوځای اوسيدل ټولو له منصور صاحب سره بيعت وکړ او نوموړی يې د اسلامي امارت د امير په حيث تعين کړ .

دا چې ۲۰۱۳ کال د صليبي اشغالګرو او له هغو سره مقاومت کوونکو مجاهدينو ترمنځ د مقابلې او زور آزمويلو وروستی کال و نو د اسلامي امارت د رهبري شورا مهمو قيادي اعضاوو اويوشمير شيوخو علماءکرامو دا پريکړه وکړه چې اوس مهال د امريکاپه مشرۍ د صليبي اشغال د زور ازمو يلو وروستی شيبې دي او ۲۰۱۴م برخليک ټاکونکی کال چي اشغال ګرو د خپلو ځواکونو د پرشاتګ لپاره د وروستي کال په حيث تعين کړی په مخ کې دی نو د جهادي مصلحت او علماء کرامو د موافقې له مخې به دا غوره وي چي د مرحوم اميرالمؤ منين د وفات خبره دي له همدغو محدودوکسانو پرته بل چاته ښکاره نشي .

هماغه و چي دا اساسي راز په ډير خارق العادته ډول د خاص جهادي مصلحت پر اساس د ۲۰۱۵ کال د جولای د مياشتې تر ۳۰ نيټې پوري پټ وساتل شو.

## د اسلامي امارت د منتخب امير په توګه

کله چې د ۱۴۳٦ هجري قمري کال د شوال المکرم مياشتې په ۱۴ نيټه چې د ۲۰۱۵ ميلادي کال د جولای د مياشتې له ۳۰ نيټې سره سمون خوري د اسلامي امارت د رهبري شوری له لوري د مرحوم اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ وفات رسما اعلان شو.

منصور صاحب د مجاهدينو د لاښه اطمنان په خاطر د رهبري شورې غړواوعلماء کرامو ته د خپل برخليک او د نوي زعيم د ټاکلوپه اړه اختيار ورکړ او داخبره يې ورته وکړه چي تاسو چي کوم شخص د زعيم په حيث غوره کوئ زما پري خوښه او موافقه ده.

هماغه و چې د افغانستان د اسلامي امارت د رهبري شورى اعضاوو، د مشائخو او مخورو علماء کرامو په ګډون يوې غونډې چې د اهل الحل و العقد له اعتبار څخه

برخمن ول د محترم منصور صاحب لـه حضـور اوموجودیـت پرتـه تـر اوږدو بحثونـو ، مصلحت سنجولو او مشورو وروسته نوموړی د اسلامي امـارت د نـوي امیـر پـه حیـث وټاکه .

د اسلامي امارت د امیر په توګه د محترم ملا اختر محمد (منصور) لـه ټاکـل کیدو سره سم د اسلامي امارت د رهبري شورا غړیو، داسلامي امارت دټولو کمیسونونو مشرانو د قضاء او محاکمو عمومي مسؤلینو نظـامي قومنـدانانو او د افغانسـتان د ۳۴ ولایتونو جهادي مسؤلینو، د نظامي کمیسیونونو مشرانو، د هیواد علمي،ملي ، جهـادي، سیاسي او فرهنګي شخصیتونو او د اسلامي امارت ټولـو وسـله والـو ځواکونـو او ملکـي چارواکو په یوه غږ د اسلامي امارت له نوي امیر منصور صاحب سره بیعت اعلان کـړ. دغو ټولو پوځي او ملکي لوریو او د هیواد ملي شخصـیتونو خپـل بیعتونـه پـه صـوتي او کتابتي بڼه د افغانستان د اسلامي امـارت نشرـاتي څـانګي تـه ولیـږل چـې وروسـته د هغوی لخوا د اسلامي امارت په مرکزي ویب پاڼې الامـاره ویـب سـایټ کـې هـم نشرـ شول.

## د نوي امیر په توګه تقرر یې د شریعت له نظره

علماء کرام او اسلامي سیاست پوهان په اسلام کې د زعیم دانتخاب لپاره تر ټولو سمه او غوره لاره د شوری یا اهل الحل والعقد لخوا ټاکنه بولي د اهـل الحـل والعقد اطلاق په هغه ټولي کیږي چې په علم، تجربـې او هوښـیارۍ لرونکـو اشخاصـو باندې مشتمل وي او معمولا د یوې شوری اطلاقورباندې کیدلی شي.

د خلفاء راشدینو د ټاکل کیدو له بیلابیلـو طریقـو څخـه پـه عمـومي اسـتنباط د شوری له لارې د زعیم ټاکلوته دری مرحلې معلـومې شـوي دي،چـې لـومړۍ دترشـیح مرحله ، دوهمه د انتخاب او دریمه د بیعت مرحله ده.

ترشیح یا د مشرۍ لپاره نوماند کیدل به خپلـه د هغـه کـس لخـوا څخـه نـه وي څوک چې زعیم ټاکل کیږي ځکه رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ فرمایي:

إنا والله لا نولي هذا العمل أحدا سأله , أو أحدا حرص عليه. (متفق عليه ) (اخرجه البخارى (٧١٤٩ ) ومسلم ( ١٧٣٣ )

ژباړه : په والله چې موږ به هغه څوک په دې( د مشرۍ په کار ) ونه ټاکو کوم چې خپله یې غواړي او یا یې حرص لري.

نو ترشیح به د بل چا لخوا یا د یوه تن وي لکه عمرفاروق رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ چې د ابوبکر صدیق رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ لاس ونیو او د زعامت لپاره یي وړاندې کړاو بیا صحابه کرامو د امام په حیث انتخاب کړ او یا به د ډیرو کسانو وي لکه عمرفاروق رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ چې له شهادت وړاندې څو صحابه د خلافت لپاره ونومول او د هغو له منځه حضرت عثمان رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ وټاکل شو.

ملا اختر محمد منصور صاحب هیڅکله ځان په خپله د مشرۍ لپاره نه دی نوماند کړی، بلکې نوموړی په لومړنۍ غونډه کې هم د مشرۍ لپاره د یوازیني کاندید په حیث د شورا لخوا نوماند شو او په دوهمه غونډه کې یي هم صراحتا شورى ته وویل چې زه د مشرۍ غوښتونکی نه یم بلکې د یوه مأمور په حیث خدمت مې زړه غواړي، خو شورى نوموړی د زعامت د یوازیني وړ کس په حیث نوماند کړ، وروسته له اوږدو بحثونو نوموړی د همدې شورى لخوا چې په علماء کرامو،شیوخو او د اسلامي امارت د رهبري شورى په غړو مشتمله وه چې ټول د علم او جهادي تجربې خاوندان دي لخوا د زعیم په حیث انتخاب او ورپسې لومړی د شورى غړو ورسره بیعت وکړ او وروسته نورو مسئولینواو عامو مجاهدینو او مؤمنینو ورسره د بیعت لړۍ پیل کړه.

په دې توګه ویلی شو چې د نوموړي انتخاب په بشپړه شرعي طریقه ترسره شو چې له همدې امله د هیواد له ساره او اوږده څخه په نورو لکونوانسانانو سربیره سلګونو د قرآن او احادیثو مشائخو د نوموړي زعامت قبول کړ ، شرعي یي وباله او بیعتونه یي ورسره وکړل.

**د شخصيت په اړه يې:**

**د افغانستان د اسلامي امارت دوهم زعيم اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد (منصور) د اسلامي امارت په تأسيسي غړيو کې يو خورا مـدبر، مـؤثر او مسـلط شخصـيت گڼـل کيدو.نوموړی په موهوبـوي شـکل د قيـادت او رهـبرۍ لـه ځـانگړو مشخصـاتو څخـه برخمن و .تقوی، اخلاص، جهادي بصيرت، سياسي درايت او د کارونو پـه عمـلي کولـو کې اداري نظم او جرأت يې کاري مشخصات و .**

**شـهيد مـلا اخترمحمـد منصـور صـاحب د اسـلامي امـارت د اړونـده جهـادي فعاليتونو په تعقيب او تنفيذ کې د خپل جهادي رهنما مرحوم ملامحمد عمر (مجاهد) نقش قدم روان و، د جهادي اهدافو تحقق، له خارجي اشغال څخه د هيواد خپلواکي او په هغه کې د شرعي نظام ټينگښت يې د جهاد او مبارزي اساسي هـدف و، د( وامـرهم شوری بينهم) په اساس په کارونو کې د ملگرو سالمې مشورې په غورسره اوريدل، اهل کار کسانوته مسؤليت سپارل او تر مسـؤليت سـپارلو وروسـته وربانـدې پـوره اعـتماد کول،مسؤلو کسانوته تل پر ولس باندې د ترحم او خواخوږي سپارښتنه کول د نوموړي ښکاره مشخصات و .**

**پردې خبره يې ډير ترکيز درلود( چي اسلامي امارت دټولو افغانانو گډ کورده نـو همداسي بايد ټول خپل ځان پکي ووينې )**

**د شهيدمنصور صاحب د شخصيت په اړه دده نږدې ملگـري وايـي چـې نومـوړی متواضع، مخلص او جرأتمن شخصيت و. له بيت المـال سره يـې احتيـاط کـاوو. سـاده ژوند يې خوښ و. د نوموړي ملگری ملا عبدالباقي اخند وايي چې د امارت د واکمنـۍ په وخت چې وزير و ليدلی يې دی چې تر ولاياتو پورې به يې د لين په عادي موټرو کې سفر کاوو. نوموړی وايي په شل کلنه ملگرتيا کې يې د منصور صاحب کومه بده خـبره او تر خه وينا نه په ياديږي. له خپلو تحت الامر کسانو سره يې د يوه ملگري پـه حيـث چلند کاوو.**

حاجي اغاجان چې د منصور صاحب له نږدې کسانو څخه و وايي چې منصور صاحب ډېر متوکل سړی و او سره له دې چې ډېر خطرات ورته متوجه نوموړی به همیشه پیدا کیدلای شوای. دده په خبره د معاونیت او امارت په ټوله موده کې یوازې دوه ورځې داسې شوي چې له مجاهدینو سره د منصور صاحب رابطه پرې شوي وي او د احتیاط په خاطر یې ځان غائب کړی وي. نور به هر وخت د ځانګړو استازو په توسط له ده سره د مجاهدینو رابطه کیدلای شوای او لازم هدایات یې ورکولای شوای.

حاجي اغاجان د منصور صاحب د قناعت او له دنیایي وسائلو، موټرو او هوس سره د علاقې نه درلودلو یادونه کوي او وايي: منصور صاحب کله هم د ښه موټر یا هوسا ژوند هوس نه دی کړی. همیشه یې د یوه عادي شخص په حیث ګوزاره کوله. یو وخت مې ولید چې موټر یې حتی تر عادي حده هم زوړ و، ما ورته وویل چې زه به یو نوی موټر درته رانیسم ځکه دا ډېر زوړ دی. ده ځواب راکړ چې په دې عادي ګوزاره کې زما هدف د اسلامي امارت د لایحې په هغه ماده عمل کول دي چې وایي مجاهدین دې د عادي خلکو په شان ګوزاره کوي. نو که زه ورباندې عمل وکړم شاید نورو مجاهدینو کې هم په دې لائحې عمل کول دود شي او که خدای مکړه زه دا ماده هیره کړم او امتیازي ژوند اختیار کړم نو بیا به نور مجاهدین هم د امتیازي ژوندهوس کوي.

د شهید منصور صاحب زوی ملافتح الله وايي چې منصور صاحب ورته همیشه په علم او استعداد لوړولو باندې تاکید کاوو او ویل به یې چې د ښه خدمت لپاره لومړی ښه استعداد ضرور دی او د هر دیني خدمت لپاره د علم زده کړه شرط بلل کیږي.نوموړی وايي چې منصور صاحب له شهادت نه یوه نیمه میاشت مخکې یوه ورځ وویل چې د ژوند تر ټولو ستر ارمان مې پاک او مخلصانه شهادت دی.

## فکري او مذهبي لید لوری یې

محترم ملا اختر محمد منصور په مذهبي لحاظ د اهل سنت والجماعت پلوی او د امام اعظم ابوحنیفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ د مذهب مقلد و .د وخت او زمان د سیاسي جریاناتو په نزاکت ښه بلد و.

له نوموړي سره د مخامخ کیدو پرمهال سړي د ده سنجیده ګي، وقار او متانت ښه درک کولای شوای، سادګي او بي تکلفي یې د ژوند ځانګړې مشخصه وه .

د رسول اکرم صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او خلفاء راشدینو د سیرت له مطالعې سره یې خاصه دلچسپي درلوده، همیشه یې له خپلو ټولو جهادي او اداري بوختیاووسره رسنۍ په ډیر دقت تعقیبولې، جهادي لیکوالانو او د امارت فرهنګي اونشراتي کارکوونکوته یې د هغوي په نشراتي فعالیتونو کې خاصې مشوري او ځانګړې توصیې ورکولې .

## د شهید منصور صاحب یو مهم خصوصیت

شهید منصور صاحب د اسلامي امارت د زعیم په حیث همیشه قضایاوو ته متوجه شخص و. نوموړي به همیشه مطبوعات تعقیبول تر څو د هیواد له پیښو ځان خبر کړي، دغه راز یې یوه ملګري ته دنده سپارلې وه چې د بهرنۍ نړۍ د بیلابیلو ژبو مطبوعاتو تعقیب کړي او د هغو خبرونو او تبصرو خلاصه یې له ده سره شریکه کړي چې په یوه شکل یي د افغانستان له موضوع سره تړاو پیدا کاوه.

د نوموړي یو نږدې ملګری حاجي اغاجان وایي چې منصور صاحب په هر حالت کې له جریاناتو ځان باخبره ساته، حتی یوه شپه چې ټوله ورځ او د شپې تر ناوخته د رهبري شورا په مجلس کې وه، کله چې له مجلس نه فارغ شو ددې په ځای چې خوب وکړي لومړی یې ماته امر وکړ چې یو ځل خبري ویب پاڼې راواړاوه چې څه حالت روان دی.

حاجي اغاجان وایي چې منصور صاحب به کوم خبر ترلاسه کړ نو سمدستي به یې د خپلو رابطینو په توسط د هغه حقیقت معلومول او خپل معلومات به یې بشپړول. مثلا که چیرې کومه چاودنه شوې وه او ملکي خلکو ته به په کې تلفات رسیدلي و، یا به یو ځای د مجاهدینو په اړه خلکو په رسنیو کې شکایت کړی و. یا د مجاهدینو لخوا د زورزیاتي کومه ویډیو یا خبر نشر شوی و، نو سمدستي به یې د پیښې عاملین معلومول

او مسؤلینو ته یې امر کاوه چې قانوني چلند ورسره وکړي.چې په ډېرو مواردو کې دداسې پیښو عاملین خلع سلاح، بندیان او یا محکمې ته معرفي کړل شوي دي.

## له شهادت نه مخکې

له شهادت نه مخکې شهید منصور صاحب د افغانستان د هلمند او نیمروز تر منځ په یوه کلیوالي سیمه کې له خپلو څو تنو خاصو ملګرو مجاهدینو سره ژوند کاوه. ملا اغاجان چې په همدې مرحله کې څه موده له شهید منصور صاحب سره یو ځای پاته شوی وایي چې دا مې د ژوند تر ټولو خوږه خاطره وه. ځکه د اسلامي امارت زعیم د خپل وطن په سپیرو کوډلو کې داسې ساده ژوند درلود لکه یو عام دسنګر مجاهد.

په دې سیمه کې نوموړی له ۸ کسو مجاهدینو سره اوسیده، دوی د عامو مجاهدینو په شان مسلح ګرځېدل اود سیمې مجاهدینو او عامو خلکو ته یې ځانونه د یوه محلي ډلګی مشر په انډیوالانو معرفي کړي وو تر څو د اوسیدو ځای یې افشا نه شي. د اړتیا په وخت یې شاوخوا نورو سیمو ته هم سفر کاوه.

په دې مرحله کې منصور صاحب د احتیاط په خاطر له مجاهدینو سره مخامخ لیده کاته نه کول. بلکې د ځانګړو استازو په توسط یې هغوی ته احکام صادرول دغه راز به کله یوې داسې سیمې ته له خپلو ملګرو سره نږدې شو چې انټرنټ به کار کاوو بیا به یې د ایمیل او واټس آپ له لارې له مسؤلینو سره رابطه کوله او د وظایفو په باره کې یې ورسره سلا مشوره کوله. په دې میشت ځای کې په جهادي او ورځنیو رسمي وظائفو سربېره نوموړي ډېر وخت مطالعه کوله او یا به له ملګرو سره په موټر کې ګرځېده او د جهاد او اولس حالت به یې ځان ته معلوماوو.

شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور صاحب د خپل هیواد پر ځمکه او دجهادي حاکمیت په ساحه کې ژوند کاوه او په دې لاره کې یې ټول خطرات په ځان منلي و خو مزدورو رسنیو بیا هم په هغه پسې تبلیغات کول چې په ایران یا پاکستان کې اوسیده چې دغه اتهام یو بې ځایه او له حقیقته لرې اتهام و.نوموړی له شهادت

وړاندې کټ مټ د خپل سلف مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په شان د سپیرو کوډلو او سنگرونو ژوند د ځان لپاره اختیار کړی و.

## شهادت يې

بالاخره د حق د لارې دغه مخلص او فداکار مجاهد چې د اسلامي امارت د زعیم په حیث د ټاکل کیدو یې لا کال نه و پوره شوی د امریکا د بې پیلوټه الوتکې په برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید چې د نوموړي د شهادت او نوي زعیم د ټاکل کیدو اعلان د اسلامي امارت لخوا په لاندې اعلامیه سره وشو.

د امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور د شهادت او نوي أمیر د ټاکنې په اړه د اسلامي امارت د رهبري شورى اعلامیه

الحمد لله الذي بيده ملكوت كل شيء وإليه ترجعون. وإذا قضى أمرا فإنما يقول له كن فيكون. وله الحمد في السموات والأرض وعشيا وحين تظهرون. يخرج الحي من الميت ويخرج الميت من الحي ويحيي الأرض بعد موتها وكذلك تخرجون. ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له ونشهد أن سيدنا محمدا عبده ورسوله الأمين المأمون، والجوهر المكنون . اللهم فصل وسلم على سيدنا محمد وعلى آله وصحبه الذين هم فيما عند الله راغبون وبعد.

قال الله تبارک و تعالى: مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَمَن يُؤْمِن بِاللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ١١ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا عَلَى رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ١٢ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ١٣ التغابن

ژباړه: هیڅ مصیبت د الله له حکم پرته نه پیښیږي او څوک چې پر الله تعالى ایمان راوړي د هغه زړه ته به هدایت وکړي او الله په هر شي پوره عالم دی. د الله اطاعت وکړئ او دپیغمبر اطاعت وکړئ خو که مخ واړوئ نو زموږ په پیغمبر یوازې ښکاره تبلیغ کول دي. له الله تعالى پرته بل خدای نشته او مؤمنان دې پر هماغه الله توکل وکړي.

**رضينا بالله ربا و بالاسلام دينا و بمحمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبيا ورسولا.**

**د افغانستان اسلامي امارت په الهي قضاء د رضا اومحکم ايمان لـه روحيـې سره اعلانوي چې د افغانسان داسلامي امارت زعيم أميرالمؤمنين ملا أختر محمـد منصـور تقبله الله د ۱۴۳۷ هجري قمري کال د شعبان المعظم د مياشتې په ۱۴ مه نيټه د شنبې په ور ځ چې د ۱۳۹۵ لمريز کال د جوزا له لومړۍ نيټې سره سمون خـوري د کنـدهار دريگستان اود بلوچستان نوشکي ته څيرمـه پـه يـوه سرحـدي سـيمه کـې د امريکـايي طاغوت د بي پيلوټه الوتکې په بريد کې د شهادت لوړ مقام ته ورسېد. انا لله و انا اليـه راجعون.**

**د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شـورى د اسـلامي امـارت ټولـو منسـوبينو، مجاهـدينو، افغـان مجاهـد اولـس، عـام اسـلامي امـت او پـه ځـانگړي ډول د شـهيد اميرالمؤمنين تقبله الله غمجنـې کـورنۍ تـه د تسـليت مراتـب وړانـدې کـوي او د الله تعالى له دربار څخه شهيد اميرالمؤمنين تقبله الله ته د شهادت د قبوليت، الهي ديدار او جنت الفردوس خواست کوي، الله تعالى دې په شهيد منصور صـاحب ورحميـړي او د نوموړي کورنۍ، قريبانو، مجاهدينو او اسلامي امارت ته دې په دې سـتر مصـيبت ، صبر جميل، اجر عظيم او نعم البدل ورنصيب کړي. آمين يارب العلمين.**

**مؤمنانو وروڼو! تاريخ شاهد دى چې د اسلامي امت حقپال خوځښتونه هميشـه د رهبرانو د شهادت، وفات يا دغسې نورو درنو مصائبو سره مخامخ شوي دي؛ خو دغسې درنو مصائبوهيڅکله د ايمان د خاوندانو پښې نه دي لړزولي، بلکې هغوى يـې نـور هـم مضبوط کړي او په لوړ عـزم او ټينـگ ايـمان سره يـې تـر وروسـتۍ مرحلـې د برحقـې مبارزې لار پاللې ده) وكأين من نبي قاتل معه ربيون كثير فـما وهنـوا لمـا أصـابهم في سبيل الله وما ضعفوا وما استكانوا والله يحب الصابرين (۱۴٦)**

**شـهيد أميرالمـؤمنين تقبلـه الله د الله تعـالى بنـده او د حـق د لارې مجاهـد و، نوموړي خپله فريضه په ډيره ښه او وياړمنه توگه ترسره کړه، د مرگ تر ساعته په خپـل ايمان او برحق عزم محکم پاتې شو، د اسلامي امارت د زعامت په لنډه موده کې يـې د**

عزم، ایمان او سرلوړی داسې کارنامې تاریخ ته پرېښودې چې همیشه به ټول مسلمانان په خاص ډول مبارزین او مجاهدین ورباندې ووياړي.

نوموړی د زمان او مکان له ټولو سختو او امتحاني شرایطو سره سره نه خو د نړیوال طاغوت مکررو غوښتنو او ګواښونو ته تسلیم شو، نه یې د چا د تحمیلي او تزویري پروسو پیشنهادونه ومنل، نه له ګواښونو وویرید او نه یي هم داخلي او خارجي توطیو، دسیسو او فشارونو عزم متزلزل کړ.

شهید منصور صاحب دامارت د زعامت وظیفه کټ مټ د خپل سلف امیرالمؤمنین ملا محمد عمرمجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شان ترسره کړه تر دې چې له همدې ویاړمن دریځ، قوي ایمان او توکل سره د یوه جهادي سفر په جریان کې د الله تعالی دیدار ته ورغی.

څرنګه چې د امام یا امیر له شهادت یا وفات وروسته د مؤمنانو لپاره د نوي مشر نصبول د مسلمانانو په غاړه لازمي فریضه ده، د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شوری چې د ګڼ شمیر علماء کرامو، د تفسیر او احادیثو د استادانو، متدینو سیاست پوهانو او جهادي تجربې د خاوندانو معتبره شوری ده د یوه مجلس په دائرولو سره چې د اهل الحل و العقد له شرعي اعتبار څخه برخمن و، وروسته له ژور فکر، تدبر او هر اړخیز دیني او جهادي مصلحت سنجولو یي محترم شیخ الحدیث مولوي هبت الله اخندزاده صاحب د اسلامي امارت د نوي زعیم په حیث د شوری د ټولو اعضاء په اتفاق تعین او د شرعي امیر په حیث یي ورسره بیعت وکړ، همدارنګه محترم الحاج ملا سراج الدین حقاني صاحب او دمرحوم امیرالمؤ منین ملامحمدعمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ زوی محترم مولوي محمد یعقوب صاحب یې دمرستیالانو په حیث تعین شول .

د اسلامي امارت رهبري شوری خپل ټول مجاهدین او عام متدین ولس په دې شرایطو کې وحدت اوتوکل علی الله ته رابولي، مجاهدین دې هیڅ تشویش نه کوي، لله الحمد موږ ناصر او پالونکي رب لرو، د اسلام او جهاد ډیوه چې دا څوارلس پیړی

روښانه وه ترقيامته به همداسې ځلانده وي، د لله تعالی دشکر ځای دی چې موږ د اسلامي امارت په نوم يو جوړ او سالم نظام لرو، ددې نظام د ساتلو، پاللو او ټينګښت لپاره دا د ټولو ديني وجيبه ده چې له نوي اميرالمؤمنين محترم شيخ الحديث مولوي هبت الله اخندزاده صاحب سره بيعت وکړي او د نوموړي تر مشرۍ لاندې خپلې برحقې مبارزې ته دوام ورکړي.همدارنګه د اسلامي امارت مشر تابه او رهبري شوری له ټولو مسلمانانو نه هيله کوي چې سر له سبا د دريو ورځو لپاره دشهيد اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د فاتحې او دهغه مبارک روح ته دثواب ښولو په نيت د قران کريم ختمونه وکړي.

دافغانستان داسلامي امارت رهبري شوری

۱۸/۸/۱۴۳۷هـ ق

۱۳۹۵/۳/۵هـ ش ــــ ۲۰۱٦/۵/۲۵م

## درئیس الوزراء مرحوم ملامحمد رباني ژوند ته کتنه

**لیکنه: شاهد غزنیوال**

**اروابښاد رئیس الوزارء ملامحمد رباني رَحِمَهُ ٱللَّهُ د الحاج ملاامیرمحمد زوي دنیک محمد لمسی په ۱۳۷۷هجری قمري کـال دکنـدهارولایت پـه مرکزکـي پـه یـوه علمـي اوجهادي کورنۍ کي دې فاني دنیاته سترگي پرانستلي دي . دمرحوم ملامحمد ربـاني والد صاحب دکندهار ولایت د علماو و اومنورینوله جملې څخـه دیـوه فاضـل اومتقـي شخصیت پـه حیـث دخلگوپـه مـنځ کـې شـهرت درلـود؛ نومـوړي د خپلـو اولادونوپـه ځانگړې توگه د«ملامحمدرباني » دعلمي اوجهادي روزني په هکله ډېراهتمام کاوو .**

**زدکړه یې :**

**داچې ملامحمد رباني هم دخدای ورکړي سرشاره علمـي اسـتعدادله املـه دښـه لیاقت څښتن و،نو والدصاحب یې هـم ددینـي علومـو دزده کـړې اوحصـول پـه موخـه مدرسې ته شامل کړ. اروابښادملامحمدرباني ترډېره حده خپل دیني تعلیمات داسلامي امارت دحاکمیت دوخت سترمفتي اومتبحرعـالم شـیخ الحـدیث والتفسـیرعبدالعلي دیوبندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ترعلمي روزنې اوتربیې لاندې ترلاسه کړي دي . معمولاپه افغانسـتان کې ددیني علومودحصول طریقه درسـمي اوحکـومتي مدارسـوله لارې نـه ،بلکـې ددې هیواد دمشهوروعلمي استاذانواومشایخوپه وسـیله پـه خصـوصي توگـه پـه داسـې ډول ترسره کیـږي چـې هرعـالم اوفقیـه پـه خپـل مسـجدکې یومعلـوم شـمیرزده کـوونکي (طالبان) راټولوي اوبیاهغوی ته دمروجه شرعي علومو تـدریس اوزده کـړه ورکـوي. پـه دغومروجه علوموکې صرف، نحو ،منطق،ریاضي ،ادب ، معاني ، فقه ،اصـول الفقـه،علم التفسیراوحدیث شامل وي . دغه سلسله تقریبا له کال ۲۰۲ هجري څخه په افغانسـتان**

كې داسلامي نړۍ دسترو مشاهيرو او دپخواني خراسان له اعلامو لكه امام ابوداودالسجستاني ،شيخ الاسلام محمد بن محمد بن بكرالخلمي ،امام ابوالليث السمرقندي البلخي اونورو مقدمو علماء كرامو څخه په ميراث پاته ده . كه څه هم چې په رسمي اوحكومتي لحاظ دغه سلسله ترډيره حده له پامه لويدلې اودچارواكوله خوا ورته ډيره توجه نه ده شوې ،خونوموړې سلسلې په علمي اوجهادي لحاظ دمتدينوعواموپه مرسته تردانن ورځې پوري په افغانستان كي داسلامي علوموپه ترويج اودافغانستان په تاريخ كې دجهادي تحريكونود قيادت اودهغوى په ژوندي ساتلوكې اساسي رول لوبولى دى . دمثال په توګه په كال ۳۷۷ هجري كي سلطان محمود غزنوي دهند لويه فتحه دهمدغوعلماوو په هدايت اولارښوونه ترلاسه كړه. په كال ۵۵۹ هجري كې چي سلطان شهاب الدين غوري له افغانستان څخه دهندپه نيمه وچه حكومت كاوه همدغوعلماوو دهغه دحكومت په لوړومنصبونوكي مهم مسؤليتونه درلودل . همدارازكله چې دمعاصرافغانستان مؤسس اوستر واكمن احمدشاه ابدالي په كال ۱۱۶۰ هجري كې دهندي مسلمانانودمرستي لپاره هندته خپل پوځونه ورولیږل ؛ نود همدغه اقدام په ترسره كولو كي هم ديني علماو پوره ونډه درلوده. په افغانستان باندي دانګليسي يرغلونو،روسي تاړاک اوامريكايي نيواک په مقابل كي دمقاوت كوونكومجاهدينومشرتوب هم دهمدغو مجاهدوعالمانواومتقي اشخاصوپه غاړه و.

## جهاد اومبارزه يي :

ملا محمد رباني لادعلم اوتحصيل له بهيره پوره نه ؤ فارغ شوى چې په كال ۱۳۵۷ هجري لمريز كي كمونستانو ديوې عسكري كودتاله لاري دافغانستان سياسي قدرت ترلاسه كړ. په افغانستان كې دكمونستانوله واک ته رسيدوسره سم په ټول هيوادكې دهغوى په خلاف جهادي پاڅون پيل شو اوددغه جهادي پاڅون دقيادت اومشرۍ مسؤليت بياهم دافغاني ديني علماوو په غاړه و. ملامحمدرباني چي مخكي ترمخكي لادعلم اوجهادپه مدرسه كي له خپلواستادانوڅخه دجهاد،قربانۍ اوسرښندنې تربيه حاصله كړې وه ترټولود مخه دجهاد اوله وطن څخه ددفاع

سـنگرونوته ولاړ . نومـوړی دامهـال یوویشـت کلـن و، خوپـه جهاداوفـداکارۍ کـي دټولومجاهدینوپـه مـنځ کـي پـه یوډیرزړور،مـدبر اوفـداکار مجاهـدسره مشـهور و . نوموړي دقندهار ولایت دڅوتنو نورو مشـهورومجاهدینوسره دخپـل جهـادي فعالیـت پیل دهیواد په جنوب لویـدیځ زون کـي دجهـاد دمؤسـس شـهید ملاموسـی کلـیم لـه جهادي جبهې څخه پیل کړ، له هغه وروسته دکنـدهارولایت دارغسـتان ولسـوالۍ تـه راغی اودلته یې دروسانوخلاف دسیمي دمجاهـدینو پـه انسـجام اوترتیـب لاس پـوري کړ.د ارغستان ولسوالۍ په چغني نومي غره کي یې جهادي مرکز تأسیس اوله همدغـه ځایـه څخـه یـې دکنـدهار ولایـت پـه مختلفـو سـیموکې جهـادي فعالیـت شروع کړ.دارغستان ولسوالۍ په چغني،تورتاک، شابیگ اوسـنگرنومي سـیموکي دروسـانوپه مقابل کي مرحوم ملا محمدرباني په ډیروسـختوعملیاتوکي پـه خپلـه گـډون درلـود . که څه هم چې دچغني دجبهې قیادت دقومندان عبدالرازق په غاړه و، خـودجگړې پـه مهال به دمجاهدینومشري دمرحوم ملامحمدرباني په غاړه وه .په ټولوجهادي اوپـوځي عملیاتوکي دمرحوم ملامحمد رباني دهمیشني مشارکت له امله په وروسته کي د دغې جبهې دمجاهدینو دمرستیالۍ مسؤلیت ورته وروسپارل شـو چـې لـه هماغـه وختـه را هیسې یې دمجاهدینوپه منځ کي دحاجي معاون صاحب په نوم شهرت پیداکړ.

## په جهادي بهیرکې یې پوځي اواداري مسؤلیتونه

له روسانواودهغوي له لاسپوڅوکمونستانوسره دکندهاراوجنوب لویدیځي حوزې دفاتحومجاهدینوکلک مقاومت دغي سیمې ته دافغاني مقاومت دیوه مضبوط جهـادي سنگرحیثیت ور کړاو الحاج ملامحمدرباني دنورومجاهدینوترڅنگ ددغي سیمې دیـو ډیرمـاهر، مجـرب جهـادي اوعسـکري شخصـیت پـه توگـه پکـي ښـه تبـارزوکړ. نوموړی دخپل همدغه جهادي اوعسکري مهارت اونبوغ له مخي دټول جنوب لویـدیځ زون دمجاهدینودیوه تکړه قومندان په توگه له ۱۳۶۰ تر۱۳۶۹ هجري لمریز کـال پـورې دروسانوپه ضـد دډیروبریـالیوپوځي عملیاتوقومانـده پـه غـاړه لرلـه چـې لـه املـه یـې روسانوته دسراومال ډیردرانه تلفات ورسیدل اوخپلـه ملامحمـدرباني هـم تـردرې (۳)

ځله زيات پکې سخت ټپي شوی دی . په دغوپوځي عملياتوکي دنوموړي فاتحانه قيادت ددې لامل شوچې هغه په ملي کچه دافغانستان دجهاد دمشهورو قومندانانوپه کتارکي شامل اودهغه وخت دجهادي تنظيمونودرهبرانودپاموړشخصيت وګرځي .
داهغه وخت ؤ چي دافغانستان دجهاد د (۷)جهادي تنظيمونورهبرانو په پاکستان کي دمجاهدينوعبوري حکومت اعلان کړی وو . په دغه عبوري حکومت کي دجهادي رهبرانوترمنځ داپريکړه وشوه چي دهيواد دداخل مشهوروجهادي قومندانانوته به هم په دغه حکومت کي فعال سهم ورکول کيږي . دمجاهدينودغه عبوري حکومت په رئيس اولومړي وزيرسربيره مکمله حکومتي کابينه هم لرله چي په هغې کي مرحوم ملامحمدرباني ته دحج اواوقافودوزارت دمرستيالۍ دنده سپارل شوې وه.که څه هم چې ملامحمدرباني په دغه وخت کي په تنظيمي لحاظ دمرحوم مولوی محمديونس (خالص)تر رهبري لاندي له اسلامي حزب سره تعلق درلود خوپه جهادي لحاظ يې دټولوجهادي رهبرانوپه زړه کي خاص ځای درلود. نوموړي له دغه لوي اداري مسؤليت سره سره بيا هم دهيوادپه داخل کي دخپلومربوطه مجاهدينودجهادي فعاليتونواوددښمن په ضددنظامي عملياتوقومانده شخصاپه خپله غاړه لرله چې په ډيروځايونوکي يې دوزارت دمرستيال په توګه له دښمن سره په مخامخ جګړه کې برخه اخيستې ده .

## دطالبانوداسلامي تحريک په تأسيس کې دده رول :

په ۱۳۶۹ هجري لمريزکال کي له افغانستان څخه دروسي ځواکونوله تيښتي اوبيا په ۱۳۷۱هجري لمريز کال کي دهغوی دلاسپوځي حکومت ترسقوط وروسته ملامحمدرباني دهيواد ديوه مخلص اومصلح شخصيت په توګه دتنظيمي ډلوټپلو دخپل منځي شخړوپه هوارولوکي خپلي ټولي هڅي په کارواچولې اوپه دې لار کي يې نه ستړي کيدونکي هلي ځلي وکړې . جنوب لويديځ زون چې يومهال دروسانوپه ضددجهاد اومقاومت محکم اوپياوړی جهادي سنګربلل کيده ،له بده مرغه چې دروسانوله ماتي اود نجيب په مشرۍ دکمونستي حکومت ترړنګيدو وروسته

دتنظيمي اختلافاتو اوجگړه مارووډلودخپل منځي جگړوپه ميدان بدل شو. دغه خپل منځي اختلافات اوجگړې يوازي په جنوب لويديځ زون كي نه ،بلكي په تدريجي ډول دهيوادله مركزنه پيل اوپه ډيرلږوخت كي دهيوادشمال ،جنوب،ختيځ اولويديځ ته وغزيدې ،چې له امله يې دمقدس څوارلس كلن جهادپايلې اوپه هغه كي ديونيم مليون سوركفنه شهيدانوټولي هيلې اوارمانونه دنفاق اواختلاف په كورورانوونكي اوركې وسوځيدل . دغه زړه دردوونكى حالت هيڅ مسلمان ته دتحمل اومنلووړنه و خودهغه دمخنيوي توان بيا هيچاهم په ځان كې نه ليد . يوشميرهغوكسانوچې دخپل اسلامي جهادپه حقانيت يې ايمان اوباوردرلود؛ دالله تعالى په دغه مقدس ارشاد باندې په باور :(ان الله لايضيع اجرالمحسنين) اوله هغه څخه په الهام اخيستلوسره داسلامي جهاد دنيمگړوآرمانونودتحقق لپاره بيا خپله مجاهده اومبارزه پيل كړه .

دغو دالله دلارې نه ستړي كيدونكومجاهدينوپه داسې حال كې چې دپخواني جهادله ستړياوواوستومانيوڅخه لا نه وو هوساشوي اوهمداراز دهغه جهادپه مهال په صورت لگيدلي زخمونه يې لاپوره نه و جوړشوي ، بيايې په هغه ستړي اوستومانه حالت كي دخپل رنځيدلي ولس دآرامۍ،خپلواكۍ اوسوكالۍ په غرض دمفسدينواومنافقينوپه خلاف جهاد پيل كړ. ملامحمدرباني دخپلوتيروجهادي فعاليتونوترڅنگ دطالبانو داسلامي تحريک له مؤسسينوڅخه هم گڼل كيږي .دطالبانوداسلامي تحريک دتأسيس پرمهال به چي كله دكوم ولايت ياكومي سيمي دتصفيه كيدوموضوع رامنځته شوه نوملامحمدرباني به لومړى شخص و چي دهماغي سيمي دسوله ييزي تصفيې په ترسره كولو به يې غوركاوه .نوموړي به هميشه ددې كوښښ كاوه چې څرنگه وكولاى شي هماغه سيمه په سوله ييزه توگه د طالبانو تركنترول لاندي راشي.

كله چې په ۱۹۹۵/۱۰/۱۰ طالبان دكابل تردروازو وورورسيدل ملامحمدرباني دمخالفينومشراحمدشاه مسعودته دخبرو دعوت وركړ هماغه و چي مسعود هم د ده په دعوت باور وكړ اوله ده سره دخبرو لپاره له كابل څخه ميدان ښارته راغى .د

ملامحمد رباني لومړی‌خبره له مسعودسره داوه چې په ګران هیوادافغانستان کې داسلامي حکومت دنافذیدولپاره یونیم ملیون شهیدانو قرباني ورکړې دي باید دهمدغو شهیدانو دوینو درناوی وشي اوپه افغانستان کې بې له کوم قید اوشرط څخه اسلامي نظام حاکم شي ،دطالبانواسلامي تحریک دافغان ولس ددې مقدس ارمان دتحقق ټینګ عزم کړی دی لهذا ته هم باید ورسره خپله ټوله همکاري ترسره کړې چې دیوه مستحکم اسلامي حاکمیت لپاره زمینه مساعده شي ،خومتأسفانه چې مسعودخپلوخبروته دعمل جامه بیخي په کومواردوکي وراغوستله هغه ترډیره حده په «میم زورماټول یې زما»فارمول باوردرلود.له شمالي ولایاتونو څخه پرته دافغانستان نورټول مرکزي ، جنوب لویدیځ ،جنوبي اوختیځ ولایتونه دمرحوم ملامحمد رباني په صلح امیزه هلوځلو دطالبانوترکنترول لاندې راغلي دي .

## دطالبانوپه اسلامي تحریک کې دنوموړي مسؤلیتونه

کله چې په کال ۱۳۷۳کي طالبانود کندهارولایت ترخپلې ولکې لاندې راوست نومرحوم ملامحمدرباني ته په دغه وخت کي دطالبانودعالي شورا مسؤلیت وسپارل شو.

په ۱۳۷۴کال دحمل دمیاشتې په ۱۳ــ ۱۴نیټه چې کله دهیواددپنځلس سوه (۱۵۰۰)علماووله لوري دطالبانوداسلامي تحریک مشرته دامیرالمؤمنین لقب اعطاء اواسلامي امارت بنسټ کیښودل شو بیاهم دملامحمدرباني رول ځانګړی اهمیت درلود اوداسلامي امارت دامیرترڅنګ یې په پوره اخلاص اوصداقت خپلو جهادي،اصلاحي اوملي فعالیتونوته دوام ورکړ.

په ۱۹۹۵/۵/۹چې دطالبانوفتوحاتودجنوب لویدیځ زون دنورولایاتو هلمند،اروزګان، فراه اوهرات په لوري مخه کړه نوملامحمدرباني په دغوټولوفتوحاتوکې دیوه برمیال فاتح په توګه سهم درلوداو دټول جنوب لویدیځ په تصفیه کولوکي دده تکتیکي هڅي دځانګړي اهمیت لرونکې وې .همداراز په۱۹۹٦/۹/۱۱ چې کله دهیواد دختیځ زون ولایتونه ننګرهارکونړاولغمان داسلامي

امارت ترولکې لاندي راغلل نوبيـاهم ملامحمـدرباني تـه دختـيځ زون دعمـومي مشرـ مسؤليت وسپارل شو.په ۲۷\۹\۱۹۹٦مطابق۱۳۷۵کال دتلي دمياشتي پـه شـپږمه نيټـه چي کله دهيوادپلازمينه کابل په بشپړه توگه داسلامي امارت ترحاکميت لانـدې راغـی نوداسلامي امارت دمشرتابه له خوا پـه کابـل کـي ددولتـي چـارودتنظيم اوترتيـب پـه غرض شپږ کسيزه سرپرسته شوراتأسيس اومشري يې بياهم دملامحمـدرباني پـه غـاړه ورواچول شوه. اوکله چې سرپرسته شوراپه حکومتي تشکيل بدله اوداسلامي امارت پـه چوکاټ کې رياست الوزراء تأ سيس شو نوملامحمدرباني درياست الوزراء درئـيس پـه حيث وټاکل شو.

## زهد او تقواى يې :

مرحـوم ملامحمـدرباني پـه عقيـدوي لحـاظ داهـل سـنت والجماعـت اوسـلف صالحينودسپيڅلي لاري پيروي کوله. نوموړي لـه خرافاتواوبدعتونوڅخـه ډيـره کرکـه کوله اوتل به يې خلگ دقرأن اوسنت نبوي پيروي ته دعوتول. مرحـوم ملامحمـدرباني دخپلونوروحسنه اخلاقو اوفضايلوترڅنگ دزهد،تقوى اودينداری يوه نمونـه وه، دشـپې قيام الليل اودورځي دځانښت لمونځ دده له خصوصياتوڅخه و.

## ايثاراوخودگذري يې:

په ۱۳٦٦ هجري لمريزکال کې دکندهارولايت ته دمجاهدينودجهادي فعـاليتونو دشنډولو په غرض دروسانوډيره درنه قـوه راغلـه ،اودکنـدهارولايت دمحلـه جـات پـه سيمه کي دملامحمدرباني په گډون يوزيات شمير مجاهدينومخامخ جگړه ورسره پيـل کړه په دغه جگړه کي چي تقريبايوه مياشت يې دوام درلود دجگړې دواړوخواته درانـه تلفات وواښتل چې خپله ملامحمـدرباني هـم پـه دغـي جگـړې کـي سـخت ټپـي شـو. دملاعبد القيوم په نامه ديوه مجاهدچي په دغوعملياتوکي يې برخه درلـوده پـه حوالـه چي دحاجي معاون صاحب په شمول زمونږدجبهې څلورتنه مجاهدين زخميـان شـول . کله چې نورمجاهدين دجگړې لـه ميـدان څخـه دټپيانودراپورتـه کولوپـه نيـت راغلـل

نولومړی حاجي معاون صاحب ته ورغلل ،خوحاجي معاون صاحب دوئ ته وویل چې زه ښه یم ترماهغه درې تنه نورمجاهدین سخت زخمیان دي لومړی هغه درواخلئ .

مجاهدینوچې کله هغه راپورته کړل اوبیاحاجي معاون صاحب تـه ورغلـل نوهغـه دومره سخت زخمي و چي بلکل دپورته کیدلواوحرکت کولونه و،خوده بیاهم دجنګ له صحنې څخه ترځان د مخه هغه نورمجاهدین چي زخمونه یې هم دده په نسبت ډیـرکم وو پر ایستلو اصرار کاوه .

## داسلامي نړۍ په قضایاوېې اهتمام:

داسلامي امت اړوندي ستونزي ملامحمدرباني مرحوم دخپل ژوند اهمـي قضـیې بللې اوداسلامي امارت دحاکمیت په مهال یې دفلسطین،چیچین ،کشمیراونورواسلامي قضایاووپه هکله ځانګړي بیانیې صادرې کړي دي .

## بې تکلفه ژوند یې :

مرحـوم ملامحمـدرباني سره لـه دې چـې دژوندزیاتـه برخـه یـې پـه لـوړواداري اوپوځي مسؤلیتونوکي تیرشوی خوله دې هرڅه سره سره یـې پـه طبیعـت اومـزاج کـې دتکبراوغرورهیڅ نوع نښانې نه لیدل کیدې. دهغه ناسته ولاړه ،حرکات اوسکنات ټول دیوه ډیرعادي شخص کړو وړوته ورته و اود خپلونوروملګرو په مقابل کي ځـان تـه پـه هیڅ امتیاز قائل نه و. درسمي کاراو وظیفې پرمهال به هرعادي سړي له ده سره ډیرپه اسـاني سره لیـدلای شـول پـه خپلـه دروازه کـي بـه یـې مسـؤل پیـره داریـوازي دمراجعینودنوبت دمراعاتولوپه منظوردراوه . دمجاهدینوپـه عبـوري حکومـت کـې د وزارت له مرستیالۍ نه بیاداسلامي امارت دریاست الوزراء ترمشرۍ پـوري نومـوړي شخصي محافظین اوباډي ګارډان نه لرل . هغه څوک چې له ده سر ه په سفراوحضرکي یوځـای اوسـیدل اوګرځیـدل هغـه دده جهـادي ملګـري اودرسي شـاګردان ول . لـه خپلوملګروسره یې تعامل اوبرخوردډیر بي تکلفه اوپه خوراک،څښاک،ناسته او ولاړه کې له هغوی نه هیڅ امتیازنه درلـود. دریاسـت الـوزراء دمسـؤلیت پـه مهـال کـي بـه لـه

وزیراکبرخان مېني څخه دکابل دارګ ترماڼۍ دریاست الوزراء تردفترپوري ډېروخت دخپلو دریو- څلوروملګروسره پلی روان و . لـه خپلـوملګروسره بـه یـې پـه ټولوجهـادي اوسپورتي نشاطاتوکي په ډېره خوښۍ ګډون کاوه اودهغوي دسپورتي لوبوله منځه بـه یې دچغ په نامه محلي لوبه ډېره خوښه وله.

## دشخصي ژوند اقتصادي حالت یې:

سره له دې چي مرحوم ملامحمدرباني دخپل عالي مسؤلیت او وظیفې لـه مخـې داسلامي امـارت پـه بودیجـه کـي دپـراخ اسـتعمال اختیـاردرلود خونومـوړي دعـادي هیوادوالوپه څېرژوندغوره کړی و. دژوندتراخیره پورې یې په خپل هماغه پلرني عـادي کوراکتفاوکړه او دبیت المال له بودیجې څخه یې ځانته شخصي- کورجوړنـه کـړ. کلـه چې په ۲۰۰۰ میلادي کال کي دملګروملتونودامنیت شوراله خوا په افغانسـتان ظالمانـه یوطرفـه اقتصـادي بندیزولګیـدل اودهمـدغي شـورى لـه لـوري داسـلامي امـارت دچارواکوبانکي حسابونه بنـد اعـلان شـول .خودامـارت دنوروچارواکوپـه څېرموحـوم حاجي معاون صاحب هم دده عالي منصب ته په پام سره هغه ځوک وچي کـوم بـانکي حساب یې نه درلود .

## دخلګوپه زړونوکې یې محبوبیت

مرحوم ملامحمدرباني دخپلونیکو اخلاقو له وجـې دهرچـا پـه زړه کـي ځـانګړی ځای درلود. په افغانستان کي میشتوقومونواومختلفوقشرونوملامحمدرباني تـه دخپـل یوخواخوږي اوپوه مشرپه سترګه کتل ،په جنازه کي یې په لسهاووزره خلګوګډون کړی ووحتی تردې چي ځینوبانفوذه شخصیتونویې پرفراق په لیولپواوښکي توی کړې .

## وفات یې:

بالآخره دغه دجهاداومبـارزې دلارې نـه سـتړی کیـدونکی لاروی،دتقـوی اوزهـد نمونـه، دایثاراوفـداکاری سـمبول، د اخلاقو،شرافـت اوفضـیلت څلـی دالهـي تقـدیر اوفیصلې سره سم دسرطان داوږدې ناروغۍ له امله دپاکستان درawalپنډۍ ښارپه یـوه

روغتون کې د۱۴۲۲ هق کال د محرم الحرام دمیاشتي په لومړۍ نیټه خپله روح خپل حقیقي مالک ته وسپاره اودتل لپاره یې لـه دې فـاني نـړۍ څخـه سترګي پټـې کـړې. روح دې ښاد اویاد دې تل وي.

## مرحوم حاجي معاون صاحب د ملګرو په یادونو کې

د حاجی معاون صاب مشر ورور هدایت الله اخندزاده صاحب وایـي چـې حـاجي معاون صاحب زموږ په پلار خورا ډیر ګران و ځکه ده ډیر لوړ اخلاق لرل او ښـه ذهـین و. دده تروش تندی زما نه دی په یاد،زما دمشرتوب او استاذي به یې ډیر احترام کاوو او چی کله به یي په مجلس کي له چا سره خبری کولې نوچي پـه دې بـه پـوه شـو چـې خبره د غیبت خواته ځي ده به دستي دا خبره ورته کوله چي غیبت به نه کوو.

دحاجي معاون صاحب بل وروږمولوي احمد رباني صاحب وایـي: حـاجي معـاون صاحب دومره ذهین و چې کله به یې کوم کتابونه ویل هم مهاله به یې نورو طالبانو ته درسول،دعلم دومره شوقی و چی آن دریاست الوزراء په وخت کې به یې سـبقونه ویـل او ښه کلکه مطالعه به یې کوله، په هیڅ وخت کې یې د تهجد لمونځ نه پریښـود حتـی ددې وروستۍ سختې مریضي په وخت کی به یې هم کاوو.

د کندهار ولایت پخوانی جهادي مسؤل ملا محمد عیسی آخند چې ډیر وخت له مرحوم حاجي معاون صاحب سره ملګری پاته شوی وایي:د اسلامي امـارت د واکمنـۍ په وخت کې چې نوموړی د افغانستان رئیس الوزراء او د هیواد په سطحه دوهـم مهـم شخص بلل کیده خو له دې لوړ منصب سره سره یې بیا هم پـه ارګ کـې عـادي ګـذاره کوله. د امارت په ټوله موده کـې د حـاجي معـاون صـاحب کـور پـه کنـدهار کـې و او نوموړی په کابل کې یوازې له څوتنـو محـافظینو او وظیفـوي همکـارانو سره اوسـیدو. لومړی یې د وزیراکبر خان په اتم نمبر قصر کې د اوسیدو ځای و او د وظیفې لپاره به د ورځې ارګ ته تلو، وروسته یې د کاري ضرورت په اساس په ارګ کـې یـوه حـویلۍ د سکونت لپاره انتخاب کړه.

حاجي معاون صاحب به چې سهار راویښ شو لمونځ به یې د ارگ په مسجد کې په جماعت اداء کاوو،وروسته یې عادي ناشته او د سهار چای صرف کاوو او ورپسې کاري دفتر ته تلو، دورځې په دوولس بجې به خپل اصلي میشت ځای ته راغی او دلته یې له خپلو همکارانو، محافظینو او حتی تر اشپز او خادم پورې له کارکوونکو سره په یوه دسترخوان ډوډۍ خوړله چې خوراک به هم بشپړ عادي و لکه لوبیا،کچالو یا سبزي.نوموړي ملگرو ته اجازه نه ورکوله چې بې ځایه مصارف وکړي یوازې د جمعې په شپه یې ملگرو ته د غوښو یا وریژو د تیارولو اجازه کړې وه.

د حاجي معاون صاحب یو ډیر بارز صفت د نوموړي عاجزانه او مؤدبانه لمونځ و، تردې چې د طالبانو په تحریک کې نوموړی په ښه لمونځ کولو سره مشهور و نوموړی به په خورا ادب، عجز او انکسار په لمانځه ولاړ و او هیڅکله یې لمونځ بې جماعته نه اداء کاوو.

ملا محمد عیسي اخند وایي چې د روسانو خلاف جهاد او بیا د امارت په دور کې یې کلونه کلونه له نوموړي سره تېر کړي خو هغه یې نه دی لیدلی چې د بل ملگري په شتون کې یې بي جماعته لمونځ کړی وي، حتی تردې چې د عمر په وروستیو کې د کینسر په رنځ اخته او د عربي اماراتو په مستشفی الراشد کې بستري و سره له دې چې ډیر ضعیف و او لمونځ یې په اشاره کاوو خو یو ملگری به همیشه ورسره و تر څو ورته امامت وکړي او لمونځ یې په جماعت شي.

قاري عزیز الله چې د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د ارگ د مسجد امام و خپله خاطره داسې بیانوي:

یو وخت موږ ډیرو طالبانو له حاجي معاون صاحب سره له کابله د کندهار په خوا سفر درلود،د ژمي موسم و او سخت سوړ باد لگېده کله چې د غزني د گیلان ولسوالۍ مربوط یوې صحرایي سیمې ته ورسیدو دلته مو یو لوی بارووړونکی موټر ولید چې د سرک په غاړه ولاړ دی. حاجي معاون صاحب خپل موټر ددې لوی موټر له بغل سره ودراوو هنداره یې ښکته کړه، د لوی موټر خواته یې وکتل او غږ یې وکړ. د لوی

موټر ډرایور ځواب ورکړ. له سلام او احوال پرسي وروسته یې تـرې وپوښـتل چـې ولـې دې موټر درولی دی؟

ډرایور چې له یخه ریږدېده او د ځان گرمولـو لپـاره یـې گـازي بخـارۍ ځـان تـه لگولې وه وویل چې موټر نه چالانیږي ځوک نشته چې راسره همکاري وکـړي او نـه هـم موټر په لویه لار پریښودلی شم.

حاجي معاون صاحب ورته وویل: موږ درسره څه همکاري وکـړو ترڅـو دې مـوټر چالان شي او سفر ته دوام ورکړې ځکه دلته د شـپې تیـرول بـه ډیـر سـخت وي. هغـه ځواب ورکړ چې موټر نور جوړ دی یوازې لږ ټېله غواړي چې چالان شي.ددې خبرې پـه اوریدو حاجي معاون صاحب خپل موټر ودراوو او نورو ملگرو ته یې هـم د توقـف امـر وکړ، کوم ملگري چې موټر یې وروسته پاته و په مخابره کې یې په هغوی غږ وکـړ چـې را چابک شي. کله چې ټول ملگري را یو ځای شول نو حاجي معاون صاحب ورتـه وویـل چې دغه لوی موټر ټېله کړي گنو طالبانو چې شمیر یې تر لسگونو رسیده دغه موټر ته یې په یوه وار ټېله ورکړ، حاجي معاون صاحب خپله د موټر یوه ټېر ته اوږه ورکړه او پـه پوره اخلاص یې زور ورکړ د طالبانو په یو ځای زور کرار کرار موټر حرکـت وکـړ او لـږ وروسته چالان شو او د غزني په خوا یې سفر ته دوام ورکړ.

قاري عزیزالله وایي د موټر له چالانولو وروسته چې حـاجي معـاون صـاحب خپـل موټر ته راغی نو ومې لیدل چې اوږه او ږیره یې د موټر ټیله کولـو لـه املـه پـه خټـو او خاورو ککړ دي خو دغه وخت یې ملگرو ته وویل چې دغه خلک په موږ حق لري، مـوږ یې اولوالامر یو او هر رنگه همکاري مو چې په وس کیږي باید ورسره ویې کړو.

ملا محمد نعیم چې د حاجي معاون صاحب له انـډیوالانو څخـه دی هـم دې تـه ورته یوه کیسه په یاد لري هغه وایي: یو وخت مـو پـه سـخت ژمـي لـه حـاجي معـاون صاحب سره له کندهاره د غزني په خوا سفردرلود،هوا ډیرې سړه او د ځمکې مخ سپینو واورو پوښلی و د غزني ولایت قره باغ ته نږدې د ملانوح بابا په سیمه کې دوه کسان په سخت یخ کې د لارې په غاړه ولاړ وو د حاجي معاون صاحب موټر ته یې لاس ورکـړ تـر

څو يې ورسره واخلي او تر غزني يې ورسوي. څرنګه چې د حاجي معاون صاحب په موټر کې ځای نه و موټر يې ورته ونه دراوو.موږ چې په وروستني موټر کې و او ځای مو درلودهم مو موټر ورته ونه دراوو خو چې کله مخکې راغلو حاجی معاون صاحب په لار کې موټر درولی و، موږ ته يې وويل چې ولې مو هغه کسان راپورته نکړل؟ ورشئ بيرته وروګرځئ او را سپاره يې کړئ چې بيا موږ همداسې وکړل.

رحمه الله تعالی



# د اسلامي امارت د پخواني دفاع وزير
# او مرستيال شهيد ملا عبيدالله آخند ژوند ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

د ۲۰۱۰ م کال دمارچ مياشتې په پنځمه نيټه داسلامي امارت پخواني د دفاع وزير او نائب الحاج ملاعبيدالله اخند دپاکستان په کراچۍ کې په يوه زندان کې په شهادت ورسېد.

شهيد الحاج ملاعبيدالله اخند چې دطالبانو داسلامي تحريک له لومړنيو اشخاصو او مؤسسينو څخه شميرل کيده، دروس ضد جهاد دمهال تکړه او مسلکي مجاهد، دتنظيمي انارشيزم او فساد په وړاندې وتلی او متعهد مبارز او دامريکا په ضد دجهاد له بنسټ ايښودونکو او احياء کوونکو څخه شميرل کيږي .

دنوموړي شهادت بي له شکه چې دافغانستان او دنړۍ دمسلمانانو او مجاهدينو لپاره يوه لويه ضايعه وه، چې په اسانه به يې ځای ډک نه شي، خو ددې لپاره چې دحق دلارې ددې ستر مجاهد بيلګې مو راژوندۍ کړې وي، او دنوموړي ارمانونه مو درک کړي او ترسره کړي وي راځئ دنوموړي ژوندليک او کارنامې په غور ولولو او دخپلې برحقې مبارزې په لاره کې ديوې بيلګې په توګه ترې استفاده وکړو .

## زوکړه او دژوند لومړني مراحل يې

شهيدالحاج ملاعبيدالله اخند دملايارمحمد زوی اودمرحوم ملا فتح محمد چې په خپل وخت کې خورا مشهور اوپياوړی عالم وولمسی په ۱۳۸۸ هـ ق کال کې دکندهار ولايت دژړۍ ولسوالۍ دنلغام سيمې دالکوزو په کلي کې په يوه ديندراه او علم پالونکې کورنۍ کې وزيږېد. لومړنۍ زده کړې يې له خپل پلار او د کلي په مسجد

كې سرته ورسولې او وروسته یې دخپلې سیمې په سطحه له بیلابیلو دیني پوهانو څخه دیني کتابونه ولوستل. کله چې دشوروي یرغلگرو په وړاندې په افغانستان کې دجهاد دتودېدو کلونه وو، الحاج ملاعبیدالله اخند هغه مهال نوی ځوان و چې په لومړي ځل یې په کندهار کې دطالبانوپه لویه جبهه ( دملامحمدصادق اخند جبهه ) کې د شوروي یرغلگرو او کمونیستانوپه خلاف جهاد پیل کړ .

الحاج ملاعبیدالله اخند له جهاد سره سره دینی زده کړې هم په مسلسله توگه تعقیبولې خو ډیر مصروفیت یې جهادي و نوموړی به سراوکال په کندهار کې په خپله مربوطه جهادي جبهه کې و او په دې لاره کې یې کله هم ستړیا نه احساسوله .

## دروسانو او کمونیستانو په مقابل کې جهاد

شهیدالحاج ملاعبیدالله اخند دشورویانو او دهغوی دمزدورانو ( خلقیانو او پرچمیانو ) په ضد دجهاد له وتلیو مجاهدینو او مشرانو څخه و نوموړي له کشرتوب نه په کندهار کې دشوروي یرغل په وړاندې وسله واخیسته او بیا یې ترهغه مهاله بې له کوم ځنډ او توقف څخه جهاد ته ادامه ورکړه، ترڅو د وروستي کمونیست واکمن ( ډاکټر نجیب ) حکومت سقوط وکړ .

الحاج ملاعبیدالله اخند خپل جهادي ژوند دیوه عادي مجاهد په توگه پیل کړ ، خو څنگه چې نوموړی دښه استعداد،جهادي حوصلې او استقامت څښتن او د بدني قوت له اړخه خورا مستعد او تیار و نو ډیر ژر دکندهار په سطحه دیوه تکړه او مسلکي مجاهد په حیث وځلېد .

دنوموړي جهادي ملگري وایي: دشورویانو په ضد د جهاد په مهال د ملاعبیدالله اخند دخوښې وړ وسله ۸۲ ملي متري توپ ( هشتادودو) و چې په ډیره مسلکي توگه یې کاروله، ملاعبیدالله اخند چې وروسته په کندهار کې دملامحمد صادق اخند دجبهې دعمومي نظامي قوماندان په توگه وټاکل شو، دروسانو او کمونیستانو په خلاف

يې په خورا ډېرو جگړو کې شرکت کړی او په ډېرو مشترکو عملياتو کې يې دمشر په حيث رول لوبولی دی .

نوموړي دکندهار دميوند، ژړی، پنجوايي ارغنداب او ښار په شمول په نورو سيمو کې هم جهادي عمليات سرته رسولي دغه راز دهلمند په کجکي، د زابل په شهر صفا او او دروزگان دمرکز ترين کوټ دبلاغ او سرخم په مناطقو کې هم دروسانو او کمونيستانو په خلاف دجهادي عملياتو برخوال پاته شوی دی .

دنوموړی يو جهادي ملگری ملا جان محمد وايي دزابل ولايت دشهرصفا په سيمه کې چې دکمونيستانو خوراستره قوه دمجاهدينو په يوه مشترک بريد کې له منځه لاړه، ملاعبيدالله اخند هم ددې سترو عملياتو برخوال و، ملاجان محمد چې ددې عملياتو په مهال له ملاعبيدالله سره په يوه سنگر کې پاته شوی وايي: په ياد مي دي چې ملاعبيدالله اخند په دښمن باندې پرته له وقفې د هشتادودو توپ ۳۰ مسلسل گوزارونه وکړل ، چې ددشمن گڼ ټانگونه او زرهپوښونه په کې له منځه لاړل .

دکمونيستانو په ضد دجهاد په مهال ملاعبيدالله اخند څو ځله ټپي شوی و له دې جملې نوموړی يوځل هغه وخت سخت ټپي شو کله چې دکندهار ښار دمحله جات په سيمه کې ديولړ تاريخي جهادي عملياتو په مهال له عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد سره په يوه سنگر کې ناست و، دهغه مهال دمجاهدينو په وينا په محله جات کې ددې جنگ په مهال ددښمن دومره ټانگونه اوموټر ويشتل شوي ، چې ددښمن له تيښتې وروسته په سبا ورځ له ليري نه کتونکوخلکوچي دا سوزول شوی کتار ليد نودزيات والي له وجي به يې گمان کاوه چې قوه اوس هم ولاړه ده، ځکه شميرې خورا زيات وحال داچې دقوې زيات موټر سوزول شوي او نور يې واپس خپلو مرکزو ته په شا شوي وو.ويل کيږي چې په دې جگړه کې ددښمن تر ۱۲ زيات ټانگونه له منځه تللي وو، دهغه وخت مجاهدين وايې چې په دي جنگ کې دموټرو او ټانگونو ويشتونکې غټه وسله يوازي عاليقد امير المؤمنين اوملا عبيدالله اخند چلوله .

وروسته دنجیب دحکومت دسقوط ترمهاله ملاعبیدالله اخند په کندهار کې په وسلوال جهاد بوخت پاته شو، دپنجوایي ولسوالۍ په فتحه کې یې ګډون درلود او دارغنداب ولسوالۍ دفتحې په مهال یې دمجاهدینو مشري په غاړه وه، ترڅو په دې توګه له کندهار څخه دکمونیستانو دواک لمنه ټوله شوه .

## داسلامي تحریک تاسیس او په امارت کې یې خدمات

په کندهار کې دکمونیستي واکمنۍ له سقوط وروسته ملاعبیدالله اخند هم دخپلو ډیرو نورو ملګرو مجاهدینو او طالبانو غوندې عادي ژوند ته مخه کړه او دکندهار په ژړۍ کې په عادي ژوند بوخت شو چې په څنګ کې یې ورسره خپلې دینې زده کړې هم کولې. خو د وخت په تیریدو سره ددرست افغانستان غوندې په کندهار کې هم حالات ډیر خراب شول، تنظیمونو ته منسوبو او خپلسرو ټوپکیانو او پاټکوالو په خپل منځي جګړو ، داولس په ځورولو او دهیواد په لوټ او تالان پیل وکړ، تردې چې دافغانانو سر، مال، ناموس او هرڅه دټوپکیانو لخوا له خطر سره مخ شول .

ددې حالت دپای ته رسولو په تکل دملامحمد عمر مجاهد په مشرۍ دکندهار په ژړۍ او میوند کې یوځل بیا پخواني مجاهدین او طالبان سره راټول شول او د ټولنیز فساد او هرج ومرج دختمولو لپاره یې دیوه نوي تحریک بنسټ کیښود، په دې لړ کې ملاعبیدالله اخند هم دهغو کسانو له جملې څخه و چې داسلامي تحریک په تاسیس کې یې مهم رول درلود، چې وروسته د ژوند ترپایه دیوه رښتیني او متعهد مبارز په توګه داسلامي تحریک په خدمت کې پاته شو .

دطالبانو لخوا دکندهار ښار له نیول کیدو وروسته نوموړی دکندهار دقول اردو دقومندان په صفت وټاکل شو، چې ورسره به دهیواد په لویدیځ کې جهادي لیکو ته هم تلو او کله ناکله یې دفراه په دفاعي خط کې دعمومي مسؤل دنده هم ترسره کوله، په فراه کې دمسؤلیت په مهال ملاعبیدالله اخند یوځل داسماعیل خان دناڅاپي برید په ترڅ کې چې داختر په سهار یې کړی و له خپلو څو تنو ملګرو سره ونیول شو، خو څلویښت ورځې وروسته دعمومي تبادلې په ترڅ کې واپس راخلاص شو، کله چې

داسلامي تحریک لخوا د ۱۳۷۵ لمریز کال د میزان په ٦ مه کابل ونیول شو، الحاج ملاعبیدالله اخند داسلامي امارت دمشرتابه لخوا لومړی ددفاع وزارت دسرپرست او وروسته رسما د دفاع وزیر په توګه وټاکل شو، چې بیا یې په افغانستان دامریکا دبریداوله کابل نه داسلامي امارت دمجاهدینو د شاته کیدو ترمهاله همدې وظیفې ته دوام ورکړ .

د دفاع دوزیر له دریځه څرنګه چې ملاعبیدالله اخند داسلامي امارت دټولو مسلحو قوتونو مشر او لومړنی مسؤل بلل کیده، خپله یې هم همیشه په مختلفو تعرضي او دفاعي عملیاتو کې برخه اخیسته، دکابل دشمال له دفاعي خطوطو یې همیشه لیدنه کوله او په همدې استقامت تقریبا په ټولو جګړو کې یې په خپله برخه درلوده .

دکابل په شمال کې دجګړو په ترڅ کې د زابل ولایت وتلی جهادي قومندان ملاعزیزخان په شهادت ورسید، دغه راز د روزګان ولایت یو جهادي قومندان چې په ثاني ملامشر مشهور و هم شهید شو ، ملاعبیدالله آخند او داسلامي تحریک وتلي قومندان ملادادالله آخند له نورو مجاهدینو سره په یوه چورلکه کې د دوی فاتحې ته لاړل ، دوی لومړی زابل ته لاړل او له زابل څخه روزګان ته رهي شول، خو د روزګان د مرکز مربوط د مراباد په سیمه کې ددوی هلیکوفتر دتخنیکي ستونزو له امله وغورځید، دا پیښه که څه هم خطرناکه وه خو دالله تعالی په فضل یادو مشرانو او ددوی ملګرو ته په کې هیڅ زیان ونه رسید.

دافغانستان په مختلفو سیمو کې دمخالفینو په وړاندې په جګړو کې ملا عبیدالله اخند ۷ ځله ټپی شوی چې وروستی ځل ټپي کیدل یې دکابل په شمال کې دکلکانو ولسوالۍ مرکز ته نږدې و، چې له امله یې نوموړی د ډیروژوروټپونوله امله تر ډیره وخته په تکلیف و.

کله چې دامریکایانو دبرید په پایله کې اسلامي امارت له پلازمینې کابل او نورو ښارونو څخه عقب نشیني وکړه، شهیدالحاج ملاعبیدالله اخند دعالیقدر امیرلمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد لخوا دامارت دمقام دنائب په توګه وټاکل شو، ددې درنې

وظيفې په مهال په داسې وخت چې دافغانستان او سيمې په سطحه شرائط سخت نامساعد و، ددښمن ديرغل او تبليغاتو توپان رالوتی و ، عامه حوصلې سختې ضعيفې شوې وې ، اسلامي امارت له مالي او تدارکاتي اړخه له سختو ستونزو سره مخ و او دنړۍ په سطحه يې له الهي فضل پرته هيڅ مرستندوی نه درلود، ملاعبيدالله اخند داسلامي امارت دنورو باعزمه مشرانو سره يوځای سخت تکاليف او مشقتونه په ځان ومنل، ترڅو يې د الله تعالی د فضل او نصرت په برکت په افغانستان کې ديرغل په وړاندې روان مقاومت ته نوې تشکل او روحيه ورکړه .

الحاج ملاعبيدالله اخند له سره داسلامي امارت دچارو دتنظيم لپاره نوي تشکيلات رامنځته کړل، چې له بيلابيلو کميسونونو څخه عبارت دي، په دې لړ کې دطالبانو لخوا دکابل له پريښودلو ليږ وروسته شهيدملاعبيدالله اخند دعاليقدر اميرالمؤمنين په هدايت د امارت دنورو مشرانو سره يوځای په لومړي ځل دجهادي تشکيلاتو دتنظيم کار پيل کړ ، دنوموړي يو نږدې ملگری وايي ، چې په دې وخت کې يې لومړی له ملادادالله اخند اوځينونورومسئولينو سره وليدل، دغه راز دافغانستان دمختلفو زونونو له بارسوخه جهادي مشرانو سره يې ليدل کتل پيل کړل. په دې توگه په لومړي ځل څلور کميسيونونه ( نظامي ، اقتصادي ، فرهنگي او سياسي ) رامنځته شول، دغه راز ترڅه مودې تيريدلو وروسته دافغانستان دټولو ولاياتو لپاره جهادي مسؤلين هم مقرر او لومړني تشکيلات له سره ترتيب شول، چې په دې کار سره دامريکا په ضد روان جهاد له نوي نظم او مؤثريت څخه برخمن شو .

دشهيد ملاعبيدالله اخند دنږدې همکارانو په وينا دامريکا په ضد دجهاد په لومړيو کلونو کې نوموړي دجهادي خوځښت دتقويې او سرتاسري کولو لپاره ډيرې هڅې وکړې، ډيرو زياتوسيمو ته يې سفرونه وکړل او د ډيرو هغو مجاهدينو دروازو ته ودرېد او جهاد ته يې راوبلل چې نوموړي به ترې دجهاد او مبارزې تمه درلوده ، دده او داسلامي امارت دنورو دردمنو مشرانو دهمدې هڅو په پايله کې په افغانستان کې

جهاد يوځل بيا پـه تـدريجي توګـه قـوت ومونـد، چـې اوس دادی د فتحـې تـر منزلـه رسيدونکی دی .

## شخصيت او ذاتي ځانګړنې يې

دهلمند ولايت اوسيدونکی مولوي محب الله (ګرمسيري) چې دشورويانوداشغال په وړاندې دجهاد په کلونو کې څه وخت له الحاج ملاعبيدالله اخنـد سره يوځـای پاتـه شوی او وروسته يې هم لـه نومـوړي سره نـږدې تعلقـات درلـوده ، وايـي چـې دالحـاج ملاعبيدالله اخند له ترټولو بارزو صفاتو څخه يو دنوموړي تقوی او قوي عزم و ، الحـاج ملاعبيدالله اخند دجګړې او مقاومت په حالاتو کې خورا حوصله ناک او باعزمه و او پـه عامه ژوند کې يې هم ډېره تقوی درلوده ، دمولوي محب الله په خبره پـه کنـدهار کـې دده ياددي چي نوموړي دخپلې جبهې ملګري ټول په نيک چلند، ديانـت او دجماعـت په لمانځه عادت کړي وو. او کوم څوک چې به ديني ارزښتونو ته په عمل کې ژمـن نـه و په خپله جبهه کې يې نه پريښود ، دجهاد په مهـال بـه ملاعبيـدالله اخنـد هـر سـهار دسورت ياسين ختم کاوو ، چې يوه مجاهد به تلاوت کاوو او نور به ورته غوږ وو .

دمولوي محب الله په خبره الحاج ملاعبيدالله اخند په ځانګړي توګه له ديني علم سره ډېر شوق درلود او دعلماء کراموېې خورا ډېر احترام کاوو، کلـه چـې نومـوړی پـه کابل کې ددفاع وزير و، نو که يو عادي ديني عالم به يې هم ملاقات ته ورغی، پـه ډېـر ادب به يې ورسره ملاقات کاوو او پوره هڅه يې کول چي عزت اودرناوی يي وکړي .

ملا صالح محمد اخند چې د روس ضد جهاد په مهال د ملاعبيدالله اخنـد نـږدې ملګری پاته شوی وايي: ملاعبيدالله اخند متقي سړی و، که به يي د مجاهدينو په مـوټر کې د موسيقي آلات وليدل سمدستی يي ماتول،دغه راز که به په کوم مجلس يا ولسي- مراسمو کې کوم ناروا عمل تر سترګو شو مجلس يي پريښود، نوموړی له قومي تعصـب نه پاک انسان و او د قوم پوښتنه سخته پرې غميدله او هيڅکله يي د قوم او قومبازۍ په اړه بحث نه خوښاوه.

ملا سردار محمد اخند چې كلونه كلونه يي د ملا عبيدالله اخند سره ملگرتيا كړې وايي: هيڅكله مي نه دی ليدلی چې نوموړي دې بې جماعته لمونځ كړی وي، حتی كه به دوه كسان وو خپله مخته كيدو يا يي بل ملگری مخكې كاوو او دجماعت لمونځ يي اداء كاوو،نوموړی ددفاع وزير و مگر ډير وخت به په جنگي خطونو كې وو اوپه ډيرو جگړو كې يي خپله شركت كاوه.

ملا عبدالصمد دنوموړي د خاطرو بيانولو په ترڅ كې وايي : يو وخت له خوست څخه كابل ته تلو چې د طالبانو د څو موټرو كاروان وو په كاروان كې ملاعبيدالله اخند هم و، له يو طالب څخه په موټر باندې د يوشپانه مېږه ووهله شوه چې په څړک باندې روانه وه، ملاعبيدالله اخند شپون راوغوښت، لومړی يي ښه اكرام وكړ او بيايي ترې وپوښتل چې ددې ميږې قيمت څو روپۍ و، كله چې هغه قيمت ورته وښود، ملاعبيدالله اخند هماغومره پيسې وركړې .

ملا اسرائيل اخند داسمعيل خان لخوا په هرات كې دنوموړي دبندي كيدو واقعه بيانوي او زياتوي: الحاج ملاعبيدالله اخند په فراه كې ددښمن لخوا ونيول شو، او بيا هرات ته انتقال شو، په هرات كې دتورن اسمعيل خان كسانو ترې غوښتل چې د تيلويزوني كمرې په مخكې دا خبرې وكړي چې طالبان له پاكستان سره تړاو لري يا پاكستان ورته پيسي وركوي، ترڅو دا خبرې د كابل د ټيلويزون له لارې نشر شي، خو ملاعبيدالله اخند ددښمن د هرڅومره فشار او زورزياتي سره سره دې خبرو ته حاضر نه شو، ملااسرائيل وايي: كله چې طالبانو هرات فتحه كړ يوه ورځ په هرات ښار كې له ملاعبيدالله اخند سره روان وم چې په يوه كس يي نظر ولگيد او غږ يي پرې وكړ، دا هغه كس و چې د زندان په مهال يي له ملاعبيدالله اخند څخه پوښتنې او استنطاق كاوو، ملاعبيدالله اخند ورته وويل : تا چې له ماسره كوم زياتی كړی دی، زما لخوا درته بخښنه ده، خو يوازې دا درته وايم چې موږ يوازې دالله تعالی درضاء په خاطر او اسلامي نظام د قيام لپاره راپورته شوي يو او په سوگند درته وايم چې په دې لاره كې د هيچا اجيران نه يو او نه له چاسره تړاو لرو .

الحاج ملاعبدالغفار چې داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال ددفاع وزارت دمخابراتو عمومي مسؤل و او له ملاعبیدالله اخند سره ډیر وخت نږدې اوسیدلی هم د ملاعبیدالله اخند دتقوی او له بیت المال سره د ډیر احتیاط یادونه کوي ، نوموړی وایي له ملاعبیدالله اخند سره دکندهار په ژړۍ کې دده کورته هم ورغلی په داسې حال کې چې ملاعبیدالله اخند ددفاع وزیر و ، خو دکور گوزاره یې دیوه عادي او فقیر سړي په شان وه .

ملاعبدالغفار اخند د دفاع وزارت داستخباراتو دمسؤل ملانورعلي له قوله وایي، چې یوه وخت هغه مهال چې دملاعبیدالله اخند خپل کور په کابل کې و، ملاعبیدالله اخند په نیمه شپه دروازه راوټکوله ، کله چې ورته راووتلم راته ویې ویل ، چې یو څه خپلې شخصي پیسې که درسره وي ، په قرض یې راکړه ، چې زوی مې ( محمد ) ډېر سخت عاجل مریض دی ، ملانورعلي وایي چې ماورته وویل ، چې ۴۰۰ بستریز روغتون ته یې ورسوه ، هلته دامارت دمربوطو کسانو علاج مفت کیږي ، او یا دبیت المال پیسې پرې مصرف کړه، ځکه دومره اجازه خو شته ، خو ددې خبرې له اوریدو وروسته ملاعبیدالله اخند راته وویل چې ، ته اوس ماته لارښوونې مه کوه، که شخصي پیسې درسره وي ، په قرض یې راکړه چې کله مې پیدا کړې واپس به یې درکړم ، ملانورعلي وایي ، چې بیاماورته ۲۰ زره روپې چې زما شخصي وې را وواېستې ، چې وروسته ددفاع وزیر ملاعبیدالله اخند دغه پور پیسې په یوه وار را اداء نه کړې ، بلکې په پنځه سوه ، زر او یا یونیم زر روپیو ادا کولو سره یې په کرار کرار دغه پور راخلاص کړ .

ملاعبدالغفار اخند وایي ، دملاعبیدالله اخند دکور پیردار دخپلو معلوماتو له مخې هغه وخت راته ویلیوو چې دملاعبیدالله اخند دکور په مصارفو کې په اونۍ کې یوځل یوازې ( نیمه کیلوغوښه ) شامله وه ، چې دادنوموړي لخوا له بیت المال سره په بې ساري احتیاط او عادي گوزاره باندې دلالت کوي .

ملاعبدالغفار اخند وایي ، ملاعبیدالله اخند دعاجزۍ هم خورا ښه صفات درلودل ، په لاره دتگ په مهال له چانه نه مخکې کېده ، او که به دکیناستو ضرورت وو هیڅکله

يې داتقاضا نه كوله چې څوک ورته يوشی اوار کړي ، بلكې په سپيرو خاورو کې ډېر بې تكليفه كيناستلی شوای ، دغه راز ملاعبدالغفار اخند ددفاع دوزير په توګه دوظيفې په مهال دملاعبيدالله اخند په اړه وايي .

هغه ډير متوكل سړی وو ، او خپلو وظايفو ته هم ډير متوجه و ، په ټول افغانستان کې به ترمختلفو ولاياتو او سيمو پورې په خپل موټر کې له خپلو څو تنو ملګرو سره يوازې ګرځيده ، معمول يې دا و چې داونۍ اکثره ورځې به په نيمه شپه له كابل څخه راونيدو، دكابل په شمال کې به يې په زاړه او نوي سرک پراته دفاعي خطونه له نږدې كتل، له مسؤلينو به يې وضعيت معلوماوو ، او چې كله به د دفتري رسمياتو دپيل وخت رارسيده ، بيرته به يې ځان وظيفې ته رساوو او رسمي كار به يې پيلاوو ، ملاعبدالغفار اخند وايي داسې مې هم په ياد دي ، چې ددفاع وزير ملاعبيدالله په يوازې سر چې موټر يې په خپله چلاوو ، دشمال تردفاعي كرښو تللی او دكرښو جاج يې اخيستی وي .

ملاعبدالغفار چې ددفاع وزارت دمخابرې خصوصي مسئوليت هم ور له غاړې وو وايي ، ددفاع په وزارت کې د وظيفې په ترڅ کې داسې مې هيڅكله نه ياديږي، چې ملاعبيدالله اخند دې له مسؤلينو او مراجعينو څخه نادركه شوی وي ، ځكه عمومي مخابره به ۲۴ ساعته خلاصه وه، چې دعمومي مخابرې مسؤلين به بيا له ملاعبيدالله اخند سره هميشه د مخابرې له لارې په رابطه كه وو او چې دهرچا به څه كار په شپه او ورځ پيداكيدلای شوای تردفاع وزير به رسول كيده .

د امريكا په ضد دنوي جهاد دپيل په شيبو کې چې ډير دمايوسۍ او ازميښت وخت وو ، شهيد ملاعبيدالله اخند به په مجالسو کې ملګرو ته هميشه دا آيت كريمه ددليل په توګه وايه ( والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا وان الله لمع المحسنين ) ده به هميشه ويل كه موږ يوځل په رښتيا دجهاد نيت ولرو ، نو الله تعالی حتما دجهاد اسباب او امكانات راته برابروي .

دهلمند ولایت دگرشک په ولسوالۍ کې یو تن جهادي مسؤل ملاعطامحمد چې په هماغو شیبوکې له الحاج ملاعبیدالله اخند سره نږدې پاته شوی، وایي چې نوموړي موږ ته همیشه توصیه کوله ، چې له خلکو سره ښه گوزاره کوئ ، اگر که تاسو په تکلیف یاستئ ، تاسو وږي یاستئ خو له خلکو به هیڅکله په زور او برلاسی څه شی نه غواړئ ، بلکې پریږدئ چې اولس مو خپله حال ووینې او په خپله درسره مرسته او همکاري وکړي .

دامریکا ضد جهاد په هماغو پیلیزو شیبو کې دشهید ملاعبیدالله اخند دارتباط مسؤل وایي ، چې سره له دې چې حالات سخت خراب وو او امنیتي خطر هر ځای موجود و ، خو شهید ملاعبیدالله اخند راته ویلي و ، چې ته به هیڅکله دتیلفون نمبر نه بدلوې او نه به یې بندوې ، او ده خپله هم یو نمبر همیشه فعال ساته ، چې مجاهدینو همیشه زما په واسطه پیدا کولای شوای، په دې برخه کې شهیدملاعبیدالله اخندپه دې نظر وو ، چې که موږ ونیول شو ، یا زندان ته ولویږو دا دومره بده نه ده لکه دمجاهدینو چې یو عاجل ضرورت وي ، او موږ ورته ځان حاضر نه کړو او یا ترې ناخبره پاته شو

داسلامي امارت نومیالي لیکوال ملا خبیراحمد مجاهد چې دامریکا ضد جهاد په لومړیو کلونو کې یې داسلامي امارت دمطبوعاتو په احیاء کې اساسي رول درلود او په دې مهال یې له ملاعبیدالله اخند سره نږدې رابطه او همکاري درلوده وایي یوه ورځ داسلامي امارت نائب ملاعبیدالله اخند داسې مخاطب کړم ( فی الحاله له مونږ سره وسایل په نشت حساب دي ، خو خدای جَلَّجَلَالُهُ مهربان او لوی دی ، دټولي دنیا کفار او داسلام دښمنان راته یو شوي ، ددنیا په مخ دیوې لویشتي ځای نلرو او نه هم په ټوله دنیا او گاونډکې داسې کوم هیوا د شته چې دڅه مرستي او خواخوږي ډاډ یې راکړي وي ، مطلب حامي ، مددگار او ساتونکی مو یو الله جَلَّجَلَالُهُ دی پرهغه به توکل او عزم کوو، مونږ به دیته نه گورو چې اول ښه ډیر او کافي وسایل، وسلي او پیسې پیداکړو نوبیا به جهاد شروع کوو که نور هیڅ هم په لاس رانغلل دځمکي کاڼي ( ډبري ) خوشته

داشغالګرو په لوربه يې ورغورځو او خدای جَلَّجَلَالُهُ ته به په ورځ دقيامت همداوايو چې همدومره مو په وس پوره وه چې ستا ددين دښمنان مو په ډېرو ويشتل خو ولې په ارام اوساکت کښيننناستلو او بله داچې په دې کارکې به د شهادت او بنديخانود زغملونيت خامخا کوو )

په پاکستان کې دزندان په مهال شهيدالحاج ملاعبيدالله اخند دقران کريم حفظ هم مکمل کړ او دزندان په موده کې يې هميشه په نفلي لمانځه کې دقرانکريم ختمونه سرته رسول او دزندان نورو ملګرو ته يې هم همدا لارښوونه کوله ، چې دقران کريم دعادي تلاوت په ځای دې دقرانکريم حفظ وکړي اوپه لمانځه کې دې تلاوت کوي ، ځکه ده به ويل چې په لمانځه کې تلاوت که له يوې خوا ډير اجر لري ، له بلې خوا ډير په توجه او حضور سره کيږي ، او ډير خوند پرې اخيستل کيږي . دنوموړي دکراچۍ دزندان يو ملګرى چې له شهيدملاعبيدالله اخند سره دځنګ په اطاق کې پاته شوى وايي: چې ملاعبيدالله اخند راته وويل ( قرانکريم مې په دوو کلونو کې مکمل ياد کړ ، په پيل کې مې څلور سورتونه ( سورت يس ، سورت الملک ، سورت الدخان ، سورت حم السجدة ) ياد کړل ، او دا مې معمول جوړ کړ ، چې دجمعې په شپه به مې په څلورو رکعتونو نفلو کې همدا څلور سورتونه لوستل او وروسته مې الله تعالی ته دعا کوله او دقرانکريم دحفظ توفيق مې ترې غوښت ، چې دادی الله تعالی دقرانکريم دحفظ نعمت راته نصيب کړ)

## شهادت يې

شهيدالحاج ملاعبيدالله اخند د ۲۰۰۷ ميلادي کال دجنورۍ دمياشتې په دريمه نيټه دپاکستان بلوچستان ته دسفر په مهال په کويټه کې دپاکستاني استخباراتي چارواکو لخوا ونيول شو، له نيول کيدو وروسته ترډيره وخته دنوموړي په هکله هيڅ معلومات نه ترلاسه کيدل ، ترڅو دنوموړي کورنۍ ته دپاکستاني چارواکو له خوا احوال ورکړل شو ، چې ملاعبيدالله اخند د ۲۰۱۰ ميلادي کال د مارچ په پنځمه دجمعې

په مبارکه ورځ دپاکستان په کراچۍ کې په یوه زندان کې په حق رسیدلی او مړی یې خاورو ته سپارل شوی دی .

دشهیدالحاج ملاعبیدالله اخند دشهادت خبر دټولو نړۍ دمسلمانانو او خصوصا افغانانو او داسلامي امارت دمجاهدینو لپاره یو دردوونکی خبر و ، داسلامي امارت دمشرتابه لخوا دنوموړي دشهادت په اړه په خپره شوه اعلامیه کې وویل شول (دافغانستان اسلامي امارت دالحاج ملاعبیدالله اخند دشهادت په اړه دنوموړي درنې کورنۍ ،ټولومجاهدینو،افغان ولس اوټول اسلامي امت ته دغمرازۍ ،تعزیت او تسلیت مراتب وړاندي کوي ، دغه راز څنګه چې نوموړي په جهادي ژوند او لاره کې خپل روح خپل خالق او مالک جَلَّجَلَالُهُ ته سپارلی، د الله تعالی له دربار څخه نوموړي ته دشهادت دقبلېدا او دفردوس جنت غوښتنه کوي دغه راز یې قریبانوته هم له اللهي دربار څخه جمیل صبر او عظیم اجر غواړي .

دافغانستان اسلامي امارت دشهید الحاج ملا عبیدالله اخند تشه دټولي اسلامي نړۍ خصوصا دافغانستان لپاره یوه نه جبرانیدونکي ضایعه بولي اودپاکستان له چارواکوڅخه جدي غوښتنه کوي چي دالحاج ملا عبیدالله اخند ددزنداني کیدو ، مریضي او وفات په اړه اسلامي امارت ته بشپړ او واقعي معلومات ورکړي ،داچي دنوموړي ترشهادت پوره دوه کاله وروسته دشهید کورنۍ ته خبر ورسیدموږ ددي څنډپه برخه کې دنړیوال سره صلیب اداره هم پړه بولو چي په پاکستان کې یې داسلامي امارت دبندیانو په اړه تر اوسه پوري هیڅ نو عه معلو مات دنوموړي شهید او نورو بندیانو کو رنیو ته نه دي رسولي او ورنه جدي غوښتنه کوو چي په را تلو نکي کې خپله دغه نیمګړ تیا پوره کړي څکه دا ددوی دنده ده )

شهیدالحاج ملاعبیدالله اخند څوارلس اولاده تر شا پرې ایښي ، چې د ۹ زامنو له جملې یې څوتنه حافظان او نور ددیني علومو زده کوونکي دي .

انا لله وانا الیه راجعون

# د شهيد مولوي عبدالسلام ژوند ته لنډه کتنه

لیکنه: قاري سعید

دطالبانو داسلامي تحريک دبرياليتوب ، استقامت او ثبات يو راز دا بلل کيږي، چې دا تحريک دمعاصر پُرفتن دوران له منځه دالله تعالى دهغو صالحواو نيکو بندگانو څخه جوړ تحريک دی چې په اوس وخت کې يې خورا لږ مثالونه موندل کيدای شي. دا تحريک چې لويه برخه يې ددیني مدارسو طالب العلمان او ديني علماء دي، له همدې څخه څرگنديږي چې په دې تحريک کې دمعاصر دور ترټولو متدين، پاک نفسه او سپيڅلي خلک راجمع شوي دي، دديني علومو دطالبانو په اړه سترمجتهد امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي ( که چيرې دقرآن او احاديثو دطالبانو په منځ کې هم اولياء الله نه وي، نو معنى يې داده چې دځمکې په مخ اولياء الله شتون نلري )

دطالبانو په اسلامي تحريک کې ډير داسې گمنام اشخاص تير شوي او لا اوس هم شته ، چې اعمالو ته يې په پام سره بې له شکه داولياء الله حکم وربانديې کيدلای شي. هغه دخدای تعالى دوستان چې ورځ په جهاد او دالهي دين په بي ريا او بې عوضه خدمت تيروي او دشپې دخدای تعالى حضور ته په سجده پراته وي . که له يوې خوا دعلم، تقوى، ديانت او اخلاص بيلگې وي له بله اړخه دايثار، شجاعت او جرأت مثالونه وي، دالله تعالى دلارې دداسې صالحو لارويانو له جملې يو هم شهيد مولوي عبدالسلام و چې الله تعالى ورته د سيرت او صورت ښکلاوې په يورنگ ورکړې وې. راځئ څو شيبې ددې شهيد له ژوند او کردار سره پاته شو .

## پیدایښت او دژوند لومړني مراحل

مولوي عبدالسلام اخندزاده دملامحمد صادق اخند زوی دمرحوم مولوي صالح محمد لمسی په قوم پښتون - بارکزی په۱۳۴۶دسرطان پر۱۵ مه دکندهار ولایت دنېش ولسوالۍ په شاویز کلي کې په یوه دینداره او علم دوسته کورنۍ کې زیږیدلی دی .

لومړنۍ زده کړې یې په خپل کور کې ترسره کړي دي ، او دابتدائي زده کړو په شمول یې ډیرې زده کړې له خپل پلار او ترونو مولوي عبدالخالق اخندزاده صاحب او مولوي عبداللطیف اخندزاده صاحب څخه ترسره کړي دي .

ددوی کورنۍ له ډیره وخته دعلم او دینداری کور پاته شوې او تر ۷ پیړیو یې نیکونه علماء پاته شوي دي. مولوي عبدالسلام لا دنوي ځوانۍ په مرحله کې و چې روسي یرغلگرو په افغانستان برید وکړ او دعمومي هجرت په مهال ددوی کورنۍ له خپل اصلي ټاټوبي څخه دپاکستان سرحدي ښار چمن ته کډه شول . هلته مولوي عبدالسلام صاحب خپلې زده کړې په نورالمدارس فاوقیه مدرسه کې پیل او ترسره ورسولې. نوموړي دحدیثو دوره په چمن کې د شیخ الحدیث مولوي محمد علي صاحب په مدرسه کې ترسره کړه او همدلته یې دحدیثو سند ترلاسه کړ .

## دروس ضد جهاد کې شرکت

مولوي عبدالسلام ځوان و چې په افغانستان کې د کمونیزم په خلاف جهاد پیل شو. نوموړي چې له جهاد سره بې کچې مینه درلوده ددیني تعلیم سره سره یې په جهاد کې هم شرکت کاوو ، نوموړی له پیله ترپایه په کندهار کې د ملاشیرین اخند په مشرۍ دطالبانو په لویه جبهه کې و ، دا جبهه چې دکندهار ښار په شاوخوا سیمو لکه محله جات، ارغنداب او ډنډ ولسوالیو کې یې فعالیت درلود ، مولوي عبدالسلام هم په کې دیوه مجاهد په صفت دنده اجراء کوله ، دډاکټر نجیب دحکومت په وروستیو کلونوکې نوموړي دکندهار- کابل په لویه لاره د جبار او دوستم ملیشو په ضد جگړو

کې هم شرکت درلود، مولوي عبدالسلام له ديني زده کړو سره په څنګ کې ترهغه مهال جهاد ته ادامه ورکړه ترڅو کمونيستي واکمني نسکوره شوه .

## د هرج و مرج په دور کې

دتنظيمي خپل منځي جګړو او ګډوډۍ په دور کې مولوي عبدالسلام صاحب چې دغه مهال فارغ عالم و، دکندهار ښار ته نږدې ددامان ولسوالۍ په خوشاب سيمه کې يې يوه مدرسه جوړه کړه او دديني علومو تدريس يې پيل کړ . دغه مهال نوموړي لسګونو مشرانو طالبانو ته ديني کتابونه تدريسول، په دې سربيره څرنګه چې دغه مهال دافغانستان دنورو برخو غوندې په کندهار کې عامه فساد او هرج ومرج پيل شوی، خپلسرو قومندانانو خلک ځورول، له خلکو يې پيسې اخيستې او يوه ستر اجتماعي فساد ته يې لاره هواره کړې وه، مولوي صاحب دخپلې سيمې خوشاب په سطحه د منکراتو دمخنيوي لپاره هڅې پيل کړې او په دې لړ کې يې په خپله سيمه کې څو ځله سرکشو او بدکاره خلکو ته دناروا اعمالو له امله سزاګانې هم ورکړې ، او دخپل توان په اندازه يې دخپلې سيمې په سطحه دښکاره منکراتو مخه ونيوله . مولوي صاحب دطالبانو داتحاد او نظم لپاره هم هڅې پيل کړې او له ډيرو مشرانو او ديني علماء کرامو سره يې ليدنې کتنې ترسره کړې، په همدې مهال دکندهار د ژړۍ دسنګ حصار په سيمه کې د ملامحمد عمر مجاهد په مشرۍ دطالبانو تحريک پيل شو، چې دپيل په ابتدايي شيبو کې مولوي عبدالسلام صاحب له خپلو ۷۰ تنه طالبانو سره له نوموړي تحريک سره مل شو .

## دطالبانو په اسلامي تحريک کې خدمات

د اسلامي تحريک دپيل په ابتدائي شيبو کې کله چې طالبانو د ميوند په ولسوالۍ ولکه ټينګه کړه، نو د مشرتابه لخوا مولوي عبدالکريم د ميوند دولسوال په حيث مقرر شو چې مولوي عبدالسلام صاحب يې دمرستيال په حيث دنده اجراء کوله.

تردې وروسته نوموړي په نورو عملياتو کې هم برخه درلوده، ترڅوچې کندهار ولايت په بشپړ ډول د طالبانو لخوا ونيول شو، دکندهار له فتحې وروسته مولوي عبدالسلام لومړی دکندهار دهوايي ډګر دمسؤل په حيث وټاکل شو او وروسته دکندهار دامنيه قومندان په حيث مقرر شو .

دغه مهال دکندهار امنيه قومنداني دټولو جهادي تشکيلاتو مرکز بلل کيده او له وظيفوي اړخه يو مهم مقام و له همدې امله خو داسلامی تحريک مشر- ملامحمدعمر مجاهد مولوي عبدالسلام صاحب چې دنوموړي خورا زيات اعتماد درباندې و او خورا نږدې تعلقات او تعارف يې ورسره درلود دکندهار دامنيه قومندان په حيث وټاکه .

دغه مهال مولوي عبدالسلام صاحب دکندهار دامنيه قومندانۍ له رسمي وظائفو سربيره داميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد ديوه نږدې مشاور او همکار په حيث هم دنده ترسره کوله. نوموړی جيد عالم، بادرکه مجاهد، مدبر مشر- او تروروستۍ کچې متقي او خدای ته تسليم انسان و. د ملامحمد عمر مجاهد لپاره يې د امين مشاور حيثيت درلود، دنوموړي ملګري وايي چې په دې مهال له مولوي عبدالسلام صاحب سره دملامحمدعمر مجاهد دومره هميشني تعلقات اور اشه درشه وه چې اکثره وخت به چې ملاصاحب په خپل دفتر کې نه و، نو ملګرو به يې دمولوي عبدالسلام صاحب په ځای کې پوښتنه کوله او ډير وخت همالته پيدا کيدو .

ملامحمدعمر مجاهد نوموړی دتيرجهاد له وخت څخه پيژاند، دنوموړي د علم ، ديانت ، تقوا او اجتماعي درک په اړه يې له نږدې معلومات درلودل ، نوځکه يې دشهيد مولوي صاحب منزلت پيژاند او په قدر ورته قائل و .

## دمولوی عبدلسلام صاحب شهادت

په ۱۳۷۴ هـ ش کال کې کله چې دهيواد په لويديځ کې دهرات واکمن تورن اسمعيل خان لومړی په ګرشک بريد وکړ او وروسته داسلامي تحريک مجاهدينو شکست ورکړ او دفراه ولايت ته يې په شا کړ ، دجګړو په همدې لړۍ کې په لويديځ

کې دطالبان عمومي نظامي قومندان ملامحمد اخند زخمي شو، په دې مهال مولوي عبدالسلام په خپله له یوشمیر مجاهدینو سره د جګړې لومړني خط ته لاړ، چې په همدې جهادي سفر کې نوموړی دفراه ولایت د آب خرما په سیمه دخوست په دره کې له دښمن سره په جنګ کې په شهادت ورسید .

## دشخصیت په اړه یې

شهید مولوي عبدالسلام صاحب داسلامي امارت په سطحه یو له هغو کسانو څخه و چې په بي ساري علمي استعداد او تقوی یې شهرت درلود. نوموړي ته الله تعالی په علمي استعداد او سیاسي درایت سربیره خورا متشرع شخصیت هم ورکړی و ، دنوموړي ملګري او متعلقین اوس هم دده د تواضع ، خوش اخلاقۍ او حسن تعامل یادونه کوي، همدا وجه وه چې نوموړی یې په ډیر کشر عمر کې د ډیرو زړونومحبوب ګرځولی و او دخپلې سیمې په سطحه یې بیساری محبوبیت او نفوذ درلود .

دنوموړي تره مولوي عبداللطیف اخندزاده صاحب چې مولوي عبدالسلام یې له کوچنیوالي شاګرد پاته شوی وایي ، چې مولوي صاحب دتقوا او دیانت له اړخه یوبي جوړې سړی و ،نوموړي وایي دمولوي صاحب دری صفات خورا ښکاره وو هغه داچې نهایي تقوا دار و ، شجاعت یې درلود او الله تعالی خورا ښه علم ورکړی و .

دشهید مولوي صاحب ددیانت او قرب الی الله اثار دنوموړي له شهادت نه وروسته هم ولیدل شول ، هغه داچې کله دنوموړي جسد دجنګ له میدان څخه هدیرې ته راوړل شو، نو د دفن په مهال یې دنوموړي اغوستی کوټ ترې ایسته کړ، مګر ددې کوټ داسې خوشبویي پورته کیدله چې د جنازې ټولو خلکو احساس کړه له همدې امله خو دنوموړي همدا کوټ جنازې ته حاضرو خلکو ترخپل منځ ټوټه ټوټه کړ او له ځانو سره یې یو ووړ، چې دهرې برخې یې خوشبویي پورته کیدله.

دشهید مولوي عبدالسلام پلار ملا محمدصادق اخندزاده وایي چې دنوموړي له شهادت څخه ۹ کاله وروسته یو وخت دده قبر ته ورغلم ، ګورم چې قبر یې لویدلی

دی ، نو مې يو سهار وختي له ځان سره اراده وکړه، چې دخلکو له راتګ وړاندې يې قبر جوړ کړم په همدې نيت مې قبر راوسپړه ، خو په دې وخت کې دمولوي صاحب جسد رالوڅ شو، نوموړی وايي چې دغه مهال يې وليدل چې دمولوي صاحب جسد له ۹ کاله تيريدو وروسته هم نه دی خاورې شوی او داسې سالم پروت دی لکه په همدې شيبه چې دفن شوی وي .

دملاسيف الله اخند په نوم يو طالب چې له مولوي عبدالسلام سره يې ۱۵ کاله ملګرتيا کړې وايي، چې نه يې ياديږي چې مولوي صاحب دې دجماعت لمونځ قضا ء کړی وي ، بلکې په هرډول حالاتو کې دجماعت دلمانځه سخت پابند وو ، نوموړي په ښه علم سربيره خورا ښه قرئت او حسن صوت هم درلود او په ډير زړه وړونکي ترنم به يې اذان کاوو .

دغه دالله تعالی صالح بنده په داسې مهال په شهادت ورسيد چې لا يې دځوانۍ عمر پای ته نه وو رسولی ، له نوموړي څخه يوازې يوه لور پاته ده .

انا لله وانا اليه راجعون



# د شهيد مولوي عزت الله عارف ژوند او کارنامو ته کتنه

**ليکنه: خبيراحمدمجاهد**

**په راتلونکو کرښو کې درسره د داسې چا په اړه خواله کوو چې هغه داسلام په غم غمجن اودمسلمانانوپه درد دردمند،داتفاق اواتحادپه هيله دسيدجمال الـدين افغـان اومولاناعبيدالله سندهی په څيرملنګ، دمسـلمانانودازادۍ اوخپلـواکۍ دقـافلومخکښ اوپـه عـين وخـت کـې دعلمـي، سـياسي اوجهـادي ميـدانونونوميالی اتـل، پـه نبـوي اخلاقوباندې مزين، هميشه يې په خوله باندې مسکا، نـوراني اودروڼ تنـدي څښـتن و. های ! څومره قيمتي انسان و چې دسختوتکاليفواومصايبوپه وخت کې هم دصـبراوزغم نه پرته پکې بل هيڅ نشوای ليدل کيدای .**

**دعلـم، عمـل، سياسـت اوجهاددا ځلانـده سـتوری دافغانسـتان دننګرهارولايـت دچهاردهي اوسيدونکی چې دخپل نوم نه زيات په خپل تخلص ( عارف صيب ) بانـدې مشهور و.**

**مرحوم مولانا حـافظ محمـدعزت الله ( عـارف ) نـورالله مرقـده، دننګرهارولايـت دمشهورجهادي اوعلمي شخصيت مولاناعبدالکافي صـاحب زوی پـه ۱۳۴۶هــ ش کـال پهچهاردهي کلي کې زيږيدلی، ابتدايي زدکړه يې د خپل کـلي پـه جومـات او ښـونځي کې ترسره کړه، له هغه وروسته دمتوسطې دورې لپـاره دبتـي کـوټ ولسـوالی، دفـارم غازي اباد په ښونځي کې داخل شو.**

**شهيدعارف صاحب ته الله پاک په وړوکوالي کې داسې اوصـاف وربښـلي وو چـې ليدونکي به يې په اسانۍ سره دا اندازه لګولی شوای چې دا ماشـوم پـه مسـتقبل کـې**

دټولنې دخدمت او رهبرۍ جوګه دی. دفارم غازي ابادښونځي کې يې نهم صنف کـې اول نومره کامیابي ترلاسه کړه اوله دې وروسته يې دجلال اباد‌په مشهوره دیني مدرسه نجم المدارس کې داخله واخیسته.

په دې مدرسه کې يې ایله یوکال زدکړه پوره کړي وه چې دروسي پلـوه ګـوډاګي رژیم لخوادګران هیوادپه حقاني علماووظلمونه شروع شول، چې پکې دنجـم المـدارس دمدرسې جید استاد او د عارف صاحب نږدې خپل ( مولـوي غـلام سـبحاني صـاحب) سره دخپلو نوروملګرومدرسینودظالم اوبې دینه حکومت لخواګرفتارشو. له بـل لـوري دمرحوم عارف صاحب والدګرامي چې دسیمې یومخورمشر، عالم اولـوی مجاهـد و پـه هیوادکې داوسیدو دائره پرې تنګه شوه نوګاونـډي هیـواد پاکسـتان تـه سره لـه خپلـې کورنۍ په ۱۳۵۸ کال کې په هجـرت کولومجبـوراو د اوسـنی خیـبر پښـتونخوا ایالـت اړوند دمټه مغل خیل په سیمه کې د خپل قوم سره یوځای کې میشت شو.

## دیني زدکړې

شهیدمولوي عزت الله عارف صـاحب چـې دمرحـوم مولـوي عبـدالکافي صـاحب کشرۍ زوی وهغه يې داسلامي علومودزدکړې لپاره په کـال ۱۳۵۹ ش کـې ددارالعلـوم احنـاف امیـرزو مدرسـه کـې داخـل کـړ چـې د لـومړۍ درجـې کتابونـه يـې هلتـه ولوستل.دویمه درجه يې دتنګي پـه دارالعلـوم اودریمـه درجـه کتابونـه يـې بیرتـه پـه دارالعلوم احناف کې ولوستل، څلورمه درجـه يـې دتخـت ابـاد پـه دارالعلـوم هـدایت الاسلام کې ، پنځمه درجه يې دپیښور د باړې پـه دارالعلـوم هاشـمیه کـې دوخـت لـه مشهورو علماء کرامو او ماهرو اسـتادانو هریـو سـیدقریش بابـا او قـاضي محمـدامین صاحب نه وویله. پـه دغـه کـال دخپـل جهـادي شـوق لـه مخـې د مدرسـې دطالبـانو دقومندان په حیث دهیواد د نامتو جهادي مشر مولوي جـلال الـدین حقـاني صـاحب جبهوته دجهادلپاره له لسګونوملګروسره دهغه وخـت د جهادتـاوده سـنګر د( د پکتیـا ستهوکنډو) ته لاړ .

تکمیلیه درجه یې دطورودارالعلوم سعادت خان مدرسه کې په ښه شوق اوذوق دمولاناغلام محبوب صاحب نه ترسره کړه، ریاضي اود فلسفې زدکړې یې د غزني ولایت له مشهورعالم دین مولانامحمدمستقیم صاحب نه حاصلې کړې. د میراث علوم یې دمردان په بخشایي کې دمیراثي باباڅخه ولوستل، موقوف علیه دورې لپاره بیا دارالعلوم هدایت الاسلام تخت اباد ته لاړ اوهلته یې کتابونه له شیخ الحدیث مولناعنایت الله صاحب (فاضل دیوبند) اوشیخ الحدیث مولانامطلع الانوارصاحب (فاضل دیوبند) څخه وویل. لویه دوره یې په کال ۱۹۸۹م کې داکوړه خټک په حقانیه دارالعلوم کې په داسې حال کې ترسره کړه چې دسوونوطالبانوله جملې نه هغه دصحیح مسلم شریف اوسنن ترمذي شریف قاري غوره شوی و. همدغه ډول یې دلویې دورې په دریوواړو امتحانوکې لوړې نمبرې اودویم نمره ګي حاصله کړه چې په ډېرامتیازسره دنامتواستادانوله لوري ورته دفضلیت دستار ورپه سرکړای شو.

دقران مجیدتفسیراوترجمه یې د پښتونخوا په صوابۍ کې له استادکل او شیخ القرآن شاه منصورباباجي رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه وکړه، دغه ډول یې دقرانکریم حفظ له قاري سیدغني صاحب څخه وکړ، دیادونې وړ ده چې عارف صاحب ته د خپلې قوي حافظې په برکت الله تعالی د ټول قرانکریم دحفظ توفیق په ۳میاشتو ورپه برخه کړي و .

**تدریس :**

دفراغت نه وروسته په اول کال یې د پیښور د فقیرابادپه ( رشیدیه ) مدرسه کې ددریمې، څلورمې اوپنځمې درجې کتابونه تدریس کړل، دهمدې کال په پای کې سعودي عربستان ته ولاړ اوالله تعالی دعمري اوحج سعادت ورنصیب کړ. دفراغت په دوهم کال دامدادالعلوم دمشهورې مدرسې داستادکل شیخ الحدیث شهیدمولانا حسن جان مدني رح په درخواست اولطف په نوموړې مدرسې کې دممتازو استادانوپه جمله کې شامل کړل شواوپه زړه پورې تدریس یې وکړ، په دریم کال یې دنمک منډیي دقاري فیاض صاحب په مدرسه کې داستادپه حیث په داسې حال کې چې یوزیات شمیرشاګردان ورسره و ومنل شواوتدریسي کال یې سرته ورساوو .

## جهادي اوسياسي ژوند

شهيدعارف صاحب چې داسلامي ټولنې يوبې ريا خادم اودعملي، جهادي اوسياسي فکر او عمل نه مالامال شخصيت و، کله به يې دسرو روسانوپه مقابل کې دجهادگرم سنگرته ځان رسولو، کله به يې دمسلمانانوترمنځ دوحدت اوخيرخواهۍ هڅې کولې اوستره هيله يې داوه چې مسلمانان بايدپه خپلو منځوکې متحدوروڼه اوديوه شعاراوهدف څښتنان وي .

کله چې خپل منځي تنظيمي جگړې په هيوادکې پيل شوې عارف صاحب دهغودخاموشولواو د سولې او روغي د راوستو په هيله يوځل اتحادعلمای افغانستان له مشرمولوي عبدالله ذاکري اوبل ځل دمولوي جلال الدين حقاني صاحب سره يوځای سفرونه کړي و او جگړه مارو تنظيمي رهبرانو ته يې د سولې د تأمين او خپل منځي نزاع د ختمونو خواستونه کړي وو.

د روس ضد جهاد په کلونو کې کله چې انقلاب اوړدشواودهجرت په کورکې دمهاجرينوپه کمپونوکې يوشميرفسادونه رامنځته شول نوهغه دخپلو استادانوپه مشوره او د ملگرو په مرسته په کمپونوکې يو دعوتي او اصلاحي منظمه جوړه کړه چې په علمای کرامو، طالبانو اومخلصومسلمانانوباندې مشتمله وه اودامربالمعروف ونهی عن المنکر دنده اوخدمت يې دکمپونوپه مساجدودجلسواودعوتي ناستوپه شکل کې سرته رساوو.

ددغواصلاحي هڅونتيجه داشوه چې دافغانستان په هرولايت کې داهل السنة والجماعة په نوم منظمې جوړې شوي اودهرولايت طالبانواوعلماءکرامودخپل ولايت په نوم دفساداومختلفو فتنوپه خلاف دعوتي اواصلاحي هلې ځلې جلسي اوعلمي غونډې وخت په وخت دايرولې، چې بالاخره الله تعالی همدغه اصلاحي ولايتي ټوليو ته چې په اخلاص سره يې د عمل ميدان ته رادانگلي و د يوه سرتاسري جهادي يون اومخلصانه حرکت ځواک اوفهم وروباښه .

دشهیدعارف صاحب دځانګړي کردار په پایله کې دټول افغانستان په سطحه داهل السنة والجماعة اتحادیه رامنځته اونوموړې اتحادیه دمسلمانانواومجاهدینو دخپل منځي شخړو د اواري او له منځه وړلو په برخه کې ستر رول ولوباوه چې شهیدعارف صاحب ترپایه دنوموړې اتحادیې دمرکزي شورا رئیس اومشر و.

کله چې په ۱۴۱۵ هجري قمري کال په لومړیو کې په کندهارولایت کې دعالیقدرامیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهدحفظه الله ترمشرۍ لاندې دافغانستان دطالبانواسلامي تحریک اعلان اوعملایې دفساد او منکراتو په خلاف مبارزه اوجهادپیل کړ، نوشهیدعارف صاحب دخپلې اتحادیې مجلس دپیښورپه ( دارالقراء مدرسه) کې راوغوښت او دافیصله یې په ډیراخلاص سره وکړه چې دافغانستان دطالبانو له اسلامي تحریک سره یوځای کیږو او مرسته به یې کوو، هماغه و چې عارف صاحب خپل تدریس ته دپای ټکی کیښود او داهل السنة والجماعة دزیاتره ولایتي مشرانو په ملتیاد طالبانو د اسلامي تحریک د لیدلو لپاره کندهار ته روان شوچې هلته په رسیدو نه یوازې د تحریک له شرعي کردار څخه مطمئن شو بلکې د ټولو علماء کرامو په ګډون یې د تحریک له مشر ملامحمدعمرمجاهدسره بیعت هم ترسره اواعلان کړ.

دعارف صاحب نیږدې ملګری او د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال دسرې میاشتې دټولنې مشر ښاغلی مولوي عصمت الله عاصم وایي چې کله مونږ له جناب عالیقدرامیرالمومنین سره بیعت ترسره کړ زمونږ په ډله کې د مشرقي ولایتواکثره مشران ملګري لکه ( مولانابرهاني صاحب ، مولوي نورجلال صاحب،مولوي عزت الله ، مولوي نجیب الله ، مولوي رستم ، مولوي رحیم الله اومولوي رحم الدین ) شامل وو.

په دغه وخت کې مولوي عبدالباقي حقاني اومولوي عبدالقدیر صاحب د ملګرو په مشوره په پیښورکې د ملګرو د تنظیم اوتشکیلاتو برابرولو په منظورغوره اوپاتې شوي وو. عاصم صاحب وایي: مونږ ټول ډیرخوشحاله وو ، خوعارف صاحب دومره متاثره و چې ترډیره وخته به یې ویل چې افغانانو او په خاص ډول علماء کرامو او طالبانو چې د کوم امیر تلاش کاوو هغه اوس الله تعالی پرې لورولی دی.

## دژوندوروستي ورځي

ځرنګـه چـې الله تعـالی عـارف صـاحب تـه داسـتعداداواطاعت ځـانګړې خزانـې اوانعامات وربښلي وو په عاليقدراميرالمومنين اومرحوم ملامحمد ربـاني صـاحب اود امارت په نورومشرانوباندې خورا ګران اوشفقت به يـې پـرې کـاوه ، ددعـوت اوجلـب کاربه يې ځينې اخيست،د سياسي او اداري اموروپه برخه کې به يـې مشـورې ورځخـه اخيستې د ختيځوولايتونو لـه ولـس سره دارتبـاط اوهلتـه دتحريـک د ورتـګ د زمينـه سازۍ په باب به يې دعارف صاحب رول اواغيزته په درنه سترګه کتل .

خوالله تعالی ته مقدره اومحبوبـه داګرځيـدلې وه چـې د بصـيرت ، تقـوا، عرفـان اوکمال دغه ستوری نورله دې فانې دنياځخه ابدي دنيا ته وغـواړي ، هماغـه وو چـې د ملاصـاحب او د حـاجي معـاون صـاحب رَحِمَهُمَااللَّهُ پـه مشـوره عـارف صـاحب سره لـه ګڼوملګرو د نيمروزولايت له فتحې وروسته نوموړی دې ولايـت تـه واسـتول شـوترڅو هلته د نوموړي ولايت اداري اوجهادي امورتنظيم اوهلته يوه فعالـه اداره جـوړه کـړي، خوچون داسلامي امارت هرملکي نظامي وي اوهرنظامي ملکي اوله هريوه تـن اومسـول سره دااحساس و ي چې ځنګه مصدر د خدمت اواطاعت وګرځي ، نوعارف صاحب بـه هم دولايت د نورو امورو د پرمخ بيولو ترڅنګ په جهادي اونظامي برخه کې هم فعالـه برخه اخيسته.

هماغه و چې په نيمروزولايت دشر او فساد د لښکرو له لوري ديوه سخت تعرض او مخامخ جګړې په نتيجه کې جناب عارف صاحب د۱۹۹۵م کال دمی مياشتې پـه ۱۵ نيټه دلوی اختر په ۴ ورځ دشهادت لوړمقام ته ورسيد( انالله وانااليه راجعون )

ديـادونې وړده چـې عـارف صـاحب پـه داسـې حـال کـې شـهيد شـو چـې لـه نيمروزولايت ځخه طالبانو عقب نشيني کـړي وه، کلـه چـې پـه دوهـم ځـل د نيمـروز ولايت فتح شـو، نوبيادعـارف صـاحب ددفـن ځـای پيـدا او جسـدمبارک يـې ړومبـی کندهارته نقل او بيا د هغه د والدګرامي په ډيراصرار خپلې پلرنۍ سيمې چهاردهي تـه راوړل شو، الله تعالی دې ددغې عظيمـي هسـتی جهـاد ي اوعلمـي کارنـامي ، سـياسي

اواجتماعي خدمتونه په خپل دربارکې قبول وګرځوي ،لاردې له لارویوډکه اوجنت الفردوس دې یې نصیب وګرځي آمین

په پای کې درسره د هیواد د وتلي او منلي شاعر فضل ولي ناګار صاحب هغه شعر شریکوو چې د شهید عزت الله عارف په اړه یې لیکلی دی.

## شهید عزت الله عارف ته!

کارنامو د ننګ او پت ته مو عنوان یې نوی نوی
رنګ دې واخیست له ایمانه ته داستان یې نوی نوی
ستا د وینو احسان منې د وطن د غرو ګلونه
د هر چا زړه کې غوړیږي یو ارمان یې نوی نوی
د روضې کوترو ټولو درته غومبر اچولی
لکه لال لکه شفق یې بدخشان یې نوی نوی
کونړی دې ده هنداره د سپین غره د بودۍ ټاله!
په فضا مو د رنګونو کهکشان یې نوی نوی
له جنګ سترې قام به چیرې هېر پیغام د سولې نکړي
چې جرس په چیغو چیغو د کاروان یې نوی نوی
زلمکي پکتیاني خرخ خوري د ایپي فقیر دوهۍ ته
د لالي وزیر په غوږ کې یا قربان یې نوی نوی
څه تلپاتې مقام درکړ شهادت ډک له ویاړونو
د تاریخ په هره پاڼه نقش افغان یې نوی نوی
د ژوندون واړه کیسې به شي زړې او تېرې هیرې
د ناګار د شعر شپیلۍ کې یو آذان یې نوی نوی

# دشهید ملامحمد آخند جهادي ژوندته کتنه

**لیکنه: شاهد غزنیوال**

اتل شهید اروابناد ملامحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ داسلامي امارت یوله هغو مهمو بنسټ ایښودونکوڅخه دی چې دده ترجهادي روزنې لاندې داسې پوځي اوجهادي شهکاران روزل شوي چې نن یې دجهاد اومقابلې په میدان کې دنړیوال کفر ټول روزل شوي پوځي جنرالان دهغوئ له ټولو پرمختللیو وسلو اوامکاناتوسره په ګونډوکړي دي.

ددغو جهادي اتلانو له هرې جهادي کارنامې اودهغوئ په عملیاتي محاذونوکې دهرپوځي بریالیتوب په مهال دشهید ملامحمد نوم نورهم ژوندی اودده دجهادي مدرسې شاګردان یې په نوم اخیستلو فخر کوي .

شهید ملامحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دطالبانو داسلامي تحریک دمؤسسینوپه جمله کې داسې یو شخصیت و چې دپخواني شوروي اتحاد دیرغلګر سره پوځ په مقابل کې دهیواد د جنوب لویدیځ زون په کچه ښه جهادي شهرت درلود اوبیا یې له همدغه جهادي شهرت نه په استفادي سره دطالبانو داسلامي تحریک دتاسیس په مهال دمفسدینو خلاف پاڅون کې بارز رول ولوباوو. دیرغلګرو شورویانو ،دهغوئ دمزدورانو اومفسدینو په خلاف مبارزې کې دغه نه ستړی کیدونکی جهادي متمایز شخصیت ددې مستحق دی چې جهادي کارنامې یې دافغاني تاریخ په پاڼوکې په زرینو تورو ولیکل شي ترڅوزمونږ راتلونکی نسل تري مستفید اوله یرغلګروسره دجهاد اومقابلې په ډګرکې ترې ګټه واخلي.

**پیژندنه :**

**اتل شهید ملامحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په ۱۳۸۲ هـجري قمري کال کې دکنـدهار ولایـت د ارغنداب ولسوالۍ دمنارکلي د مرحوم مولوي عبدالواحد په علمـي کـورنۍ کـې دغـې فاني نړۍ ته سترګې پرانستلې.**

**نوموړي خپله علمي زده کړه له خپل مهربان کاکا مرحوم مولوي نورمحمد څخـه پیل کړه او ویې کړای شول چې په ډیرکم وخت کې هغه تر منځنـۍ مرحلـې پـوري پـه کامیابي سره ورسوي .**

**جهاداومبارزه یې:**

**شهید ملامحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ لاهماغه مهال په دیني مدرسه کې په خپلوزدکړو لګیاوو چې شوروي یرغلګرو زمونږدهیواد په سپیڅلي حریم یرغل وکړ، که څه هم چې پـه دې وخت کې ملامحمدآخند دعمر له لحاظه کم سنه و خو غیرتي لوي زړه یـې دانـه منلـه چې خپلې زدکړو ته په داسې حال کې دوام ورکړي چې هیواد یـې دیرغلګـرو تراشـغال لاندې وي .**

**هماغه و چې زده کړې یې نیمګړې او له دغو یرغلګروسره دمقاومت اوجهاد لپاره دسیمې دمشهورجهادي قومندان شهید لالا ملنګ رَحِمَهُ ٱللَّهُ جهادي جبهې ته ولاړ .**

**شهید ملامحمد آخند په ډیرکم وخت کـې دمجاهدینوپـه مـنځ کـې دیـوه مـاهر جهادي مشرحیثیت خپل کړ او نورومجاهدینوبه دخپلو جهادي پروګرامونو دپلي کولو په مهال تل دده مشورې اولارښوونې په ډیرغورسره اوریدلې .**

**نوموړي دیرغلګرو روسي پوځونو په خلاف خپل جهادي فعالیت دکنـدهارولایت دمحله جات ،خوشاب ،پاشمول اوچارباغ له سـیموڅخه پیـل اوپـه دغوسـیموکې یـې د دښمن دځواکونو دپـوځي فعـالیتونو دمخنیـوي پـه غـرض دعملیـاتو لـومړنۍ حلقـوي کمربند ایجادکړ .**

ددښمن په مقابل کې دجگړې ددغې لومړۍ کرښې اداره اوتنظیم ټول خپله دده لخواترسره کیدل اودغه پوځي تکتیک ددښمن دځواکونو په محاصرې اودهغوئ دپوځي تحرکاتو په مخنیوي کې ډیر اساسي رول درلود.

نوموړي وکولای شول دهمدغه پوځي تکتیک په وسیله دلومړي ځل لپاره دکندهارولایت دبابا صاحب مشهوره ولسوالي فتح اوهالته ددښمن ټول موجود جنگي وسایل غنیمت کړي .

دشهید ملامحمد یوتن نیږدي اوهمیشنی ملگری حاجي رحمت الله دهغه دپوځي پوهي اوزړورتیا په اړه داسې وایي :

یوځل مو دکندهارولایت ښارته نیږدي دروسي ځواکونو یوې پوځي گزمې ته کمین ونیو ،دغه گزمه د ددریو روسي زرهپوشونوپه وسیله ترسره کیده، مجاهدینو دملامحمدآخند په مشرۍ په دغه گزمه ناڅاپي برید وکړچې په ترڅ کې یې دوه زرهپوشونه تخریب اویوپه تیښته بریالی شو نوموړي دهمدغه تښدیدلي زرهپوش عسکرهم تعقیب کړل اوویې لیدل چې هغوئ دسرک په سر توقف وکړ اودري تنه روسي پوځیان تري راکوز او دسرک بلې غاړې ته په یوه گوښه کې کیناستل .

دغه دری تنه پوځیان ټول په روسي وسله کلاکوف مسلح ول اودری واړوسره خپلې وسلې ترڅنگ ایښې وې .

شهید ملامحمد یوناڅاپه پرې دتکبیرپه ویلو سره فیرونه پیل کړل ، دری واړه یې ځای په ځای ووژل او کلاکوفونه یې ترې غنیمت کړل .

په جنوب لویدیځ زون کې دروسي یرغلگروپه خلاف دمقاومت مشهوره جبهه دشهید لالاملنگ جبهه وه چې د زون په کچه تر ټولومشهور مجاهدین لکه شهیدملا بورجان، ملامحمدحسن رحماني، حاجي لالا اوقومندان عبدالرازق ددغې جبهې پیاوړي مجاهدین ول .ددغونومیالیوپه جمله کې یوهم شهیدملامحمد وچې دټولوپه منځ کې یې په ښواخلاقو ،ښه عسکري مهارت ، ښه تقوی اوجهادي زړورتیانوم وړی و.

## دطالبانوداسلامي تحريک په تأسيس کې دشهيدملامحمد رول.

په افغانستان کې دکمونيستي رژيم لـه نسـکوريدو وروسـته پـه ټـول هيـوادکې تنظيمي نارواجګړې پيل شوي، دغوخونړيوجګړو افغان مجاهد ملت ټول هغه ارمانونـه خاورې کړل چې دترسره کيدولپاره يې ديونيم ميليون انسانانو پاکې وينې تـويې شـوې وې.

دغه نـاوړه حـالات دهـيڅ مسـلمان هيوادپـالونکي افغـان لپـاره دمنلـو وړنـه وو، اوهماغه وو چې دهغه دبـدلون لپـاره دطالبانوداسـلامي تحريـک دمؤسـس ملامحمـد عمرمجاهد لخوا دطالبانو د اسلامي تحريک بنسټ کيښودل شو.

ددغه تحريک دلومړنيوبنسټ ايښودونکوله جملې څخه يوهم شهيد ملامحمـد و چې په خپلـو بيسـارو قربـانيو او موفقـو پـوځي تکتيکونـو سره يـې د هيوادپـه جنـوب لويديځو ولايتونوکې د دغه اسلامي تحريک لپاره دموفقيت لاره پرانستله .

دشهيد ملامحمد يونيژدي ملگرى حاجي لالا دتحريک په تأسيس کـې دنومـوړي درول په اړه داسې وايي:

په کابل کې دنجيب دگوډاگي رژيم ترړنگيدو وروسته مونږ يوه سل کسيزه ډلـه مجاهدين کابل ته ولاړو اوهالته مو دافغانستان دجهاد له يومشـهورجهادي شخصـيت اروابنادمولوي محمديونس خالص صاحب سره وليدل.

مولوي محمـد يـونس خـالص رَحِمَهُ ٱللَّهُ چـې دروسي يرغـل پـه مهـال دافغانسـتان داسلامي حزب په نوم ديوه جهادي تنظيم مشر اوزمونږجبهـه هـم دنومـوړي دتنظـيم مربوط جبهه وه زمونږلپاره يې ديوه قابل قدرعالم جهادي لارښود حيثيت درلود.

مونږله نوموړي څخـه دکمونيسـتي نظـام لـه ړنگيـدو وروسـته دخپلـو راتلونکـو پروگرامونو په اړه مشوره وغوښتله چې نوموړي داسې راته وويل:

يواځې دکمونيستي رژيم په ړنگيدلوسره دجهاد اهداف نه دي ترسره شـوي اونـه هم دمجاهدينو آرمانونه پوره شوي.

تاسوبه خپلې وسلې اوټول جهادي امکانیات خوندي ساتئ اودهیڅا په پلوي به هم په تنظیمي نارواجګړوکې ګډون نه کوئ !

تاسو زما دغه پیغام په جنوب لویدیځ زون کې زمادتنظیم مربوط ټولو مجاهدینوته هم ورسوئ اوهغوئ ته ووایاست چې دکوم هدف لپاره چې مونږ جهادپیل کړی وو هغه نه دی ترلاسه شوی.

تاسو کوښښ وکړئ چې خپل جهادي تشکیلات اوعسکرجبهې همداسې محفوظې وساتئ اوله تنظیمي جګړو لیري اووسئ.

حاجي لالا وایي: کله چې مونږله کابل نه بیرته کندهارته راغلو او دخالص بابا مرحوم توصیې اولارښونې مو شهید ملامحمد ته ورواورولې نوموړي سمدستي خپل ټول مجاهدین راټول اوهغوئ ته یې دخپل جهادي مشر محترم خالص بابا توصیې اوهدایات ابلاغ کړل، اوترهغه وروسته یې دجبهې ټول پوځي وسائل رایوځای ،دهغه دساتنې اومراقبت لپاره یې ځانګړي کسان تعین کړل اوددې کارترڅنګ یې دمجاهدینو ددیني اوعلمي زدکړو دتدریس لپاره ددیني علوموپوښه ماهر استاد هم په جبهه کې مقرر کړ اوټول مجاهدین یې ددشرعي زدکړوپه تعلم مکلف کړل، تردې چې په ډیرلیږوخت کې زمونږ عسکري جبهه ددیني زدکړو دتعلیم په یوه ښه مدرسه بدله شوه.

دغومجاهدینوته به دشهید ملامحمد په لارښونه شرعي اوعسکري تعلیم ورکول کیده اودهغوئ دفکري روزنې خاص اهتمام به کیده.

داهغه مهال و چې ټول هیواد دخپل منځي ورانوونکوجګړو اورونوپه سراخیستی و، فساد ،غلا ،قطاع الطریقي اوبدامنۍ اوج ته رسیدلې وي .

دروسي اشغال په خلاف جنګیدونکي یوشمیرمخلص مجاهدین ددغو زړه دردوونکو حالاتو په لیدلو ډیرځوریدل ، هرڅوک له دغو ویرجنوحالاتو څخه دنجات په تمه ناست ول ،هماغه وو چې ددغه ملي نجات لپاره دملامحمد عمرمجاهد له لوري

دطالبانو اسلامي تحريک تاسيس اودهيواد له گوټ گوټ نـه ټـول مخلـص مجاهـدين دنجات اوژغورنې له دغې قافلې سره يوځاى کيدل .

شـهيدملامحمدآخند چـې دتحريـک دمشرـتابه لـه نيـږدي مخلصـو جهـادي ملگروڅخه و اوله ډيره پخوا لا دفساد له منځه وړونکي اسلامي تحريـک دتأسـيس پـه انتظار و لومړنی جهادي قومندان و چې چې له تحريک سره يوځاى او خپل ټول پـوځي امکانات اوتربيه شوي مجاهدين يې دتحريک خدمت ته وسپارل .

دشهيد ملامحمد روزل شوي مجاهدين لومړني کسان ول چې دخپلو نيکو اخلاقو اومجربو جهادي تکتيکونوپه وسيله يې وکولاى شول په ډيـره کمـه مـوده کـې دهيـواد دجنوب لويديځ زون ټولې سيمې دمفسدينو اوتنظيمـي جگـړه مـارانو لـه شره خلاصـې اوهالته دسولې او امن په فضاکې شرعي نظام پلی کړي.

هماغه و چې دطالبانو دتحريک مشرتابه شـهيد ملامحمـد دخپلـې پـوځي پـوهې اوښې جهادي سابقې له مخې ددغه تحريک دعمومي نظامي قومنـدان پـه توگـه تعـين اوډټولو عسکري سوقياتو مسؤليت يې همده ته وسپاره .

## دتحريک ترتأسيس وروسته دشهيد ملامحمد آخند پوځي کارنامې .

وروسـته تـردې چـې پـه ۲۱/۸/۱۳۷۳ هجـري شمسيـ نيټـه دکنـدهار ښـار دطالبانوترولکې لاندې راغی شهيد ملامحمدآخند دطالبانو دعمومي نظامي مسؤل پـه توگه دکندهار دگاونډيو ولايتونو دتصفيې لپاره يوپوځي پلان طرحه اودهغه په مټ يې وکړاى شول چې په ډيرې کمې مودې کې دهلمند ،فـراه او نيمـروز ولايتونـه يوپـه بـل پسې دتنظيمي جگړه مارانوله شتون نه تصفيه کړي.

نوموړي ددغو تصفيوي عملياتوپـه تـرڅ کـې دفـراه ولايـت دلارام ولسـوالۍ پـه سنجيلان سيمه کې ديوې درنې جگړې په تـرڅ کـې دمخالفينوسـلگونه تنـه وسـله وال کسان اسيران کړل چې له ډيرمحدودوخت وروسته سمدستي يې هغوئ ټول بيرته ازاد

اوخپلو ملگروطالبانوته يې له نومو ړيو اسيرانو سره دنيکې اسلامي رويې کولـو مکـررې توصيې کولې.

ددغو تصفيوي عملياتو په وروستيوکې دمخالفينو له خوا ديوه ځای په ځای شوي ماين په وسيله سخت زخمي اوهغه عملياتي پروگرام چـې ده دهـرات ولايـت دتصـفيه کولو په نيت پيل کړی وو همداسې نيمگړی پاتې شو.

شهيد ملامحمد لا له خپـل زخمـي حالـت نـه سم نـه وو روغ شـوی چـې بيرتـه دجگړې لومړۍ کرښې ته ولاړ اوهلته يې دمخالفينو په خلاف د پيل کړل شوې جگـړې مشرۍ په غاړه واخيسته اودخپل ځانگړي پوځې مهارت له مخې يې وکـړای شـول چـې دجگړې لومړۍ کرښه دهرات ولايت ته ورسوي .

دشهيد ملامحمد دجهادي ژوند ځيني ځانگړتياوې.

ديني چاپيريال اوکلکه ايماني عقيده هغه څـه دي چـې دمسـلمانانوپه مـنځ کـې دجهاد اوسرښندنې لپاره داسې کسان تيارکړي چې هغوئ وکړای شي دخپلو فـداکاريو اودالله په لاره کې دزحمتونوپـه گـاللو سره مستضـعفين اواسـکيرلي د مسـتکبرينو لـه استکبارڅخه وژغوري.

دغه جهادي اتلان دجهاد اومبارزې دقيادت لپاره په خپل ژوند کـې يـولړ خـاص امتيازات اوځانگړنې لري چې اروابناد شهيد ملامحمد آخند هم لـه دغـو امتيـازاتو بې برخې نه و.

مونږغواړوپه لنډه توگه دنومو ړي دجهادي ژوند ځينوځانگړتياووته اشاره وکړو.

۱ــ بي کچـې تقـوی اولـه الله تعـالی ويريدنـه دنومـوړي يوخـاص امتيـاز و،دغـه امتيازبه هغه وخت سړي ښه محسوس کاوو چې کله به دی دشپې مهال په تيـاره شـپه کې الله تعالی ته په رازاونيازولاړ اوياهم دقرآن کريم تلاوت کاوو .

۲ـ له دښمن سره دمخامخ کیدوپه مهال بي ساري زړورتیا او جـدیت اوپـه خپلـو مجاهدینو وروڼو دنوموړي شفقت اوخواخوږي بل هغه څه و چې هغه يې دنوروجهادي مسؤلینوپه جملې کې په یوه متمایز شخصیت مشهورکړی و.

۳ـ دعلماوو اومشرانويې ډیراحترام کاوو اوپه هرکارکې به يې لـه هغـوئ مشـوره غوښته .

۴ـ حلم ،حیـاء اوایثـار بـه یـې ډیرخوښـیدل اوپـه خپلـه یـې هـم پـه کور،جبهـه اومدرسه کې له خپلو ټولو ملگروسره له دغو غوره اسلامي اخلاقو څخه کاراخیست .

۵ـ دژوندپه هرحالت کې به یوه حال و ، نه له ډیرو مشکلاتوسره دمخـامخ کیـدو په مهال له وارخطایي سره مخ کیدو اونه به دډیرې خوښۍ اوسوبې په حـال کـې ځـان ترې ورکیدو.

٦ـ دژوند حالت يې ډیر ساده وو،عیش پرستي اوهوس رانۍ يې بلکل نه خوښـوله له ریااوتظاهر څخه يې ډیربدراتلل ، دبیت المال له پیسو څخه يې ځان ډیرلیري سـاتو اودژوند تراخیرې شبېې پوري يې له بیت المال څخه دخپلوشخصي کارونو لپـاره هـیڅ استفاده ونه کړه.

۷ـ له معاصي ووځخه يې ځان پاک ساته، دهیچا غیبت يې نه کاوو اونـه بـه یـې دچامخامخ توصیف کاوو .

۸ ــ په جهادي چارویې ډیرهتمام کاوو، دوسلو اونورو عسـکري وسـایلو اوپـوځي تکتیکونه زده کړه يې دژوند مشغله وه له پوځي وسائلوسره دنوموړي دبي ساري مینـې په اړه دده یونیږدي ملگري حاجي لالا داسې وایي :

ملامحمد مرحوم له هرډول وسلې سره بي کچې مینـه لرلـه ،خپلـه وسـله بـه یـې یوائې دلمانځه په مهال له اوږې ښکته کوله اونوربه يې په هرحـال کـې هغـه لـه ځانـه سره گرځوله، په کال ۱۹۹۰ کـې چـې کلـه مجاهـدینو دزابـل ولایـت پـه جگـړه کـې لـه کمونستانو ډیره وسله غنیمت کړه نودنـورو جبهـو اکـثرو مجاهـدینو دغنیمـت هغـه

وسلې چې ددوئ په سهم رسیدلې وي خرڅې کړې، خوملامحمد مرحوم بیا دهغوئ برعکس دخپل سهم په ساتلو برسیره ددي کوښښ کاوه چې دنورو سهمونه له هغوئ په قیمت واخلي اوداداسې مهال وو چې زمونږ دجبهې مجاهدین په اقتصادي لحاظ ډیرتنګ لاسي هم ول .

نوموړی وایي : شهید ملامحمد ددغو غنیمتونوله جملې څخه دوه روسي ډي سي ډوله توپونه په ډیره لوړه بیه واخیستل اوبیا یې یو خاص پوځي صاحب منصب هم په خپله جبهه کې مقرر کړ چې مجاهدینو ته ددغو توپونو ټریننګ ورکړي.

۹ ــ ملا محمد آخند چې د طالبانو د تحریک لومړنی عمومي نظامي قومندان او په عین حال کې یې د کندهار د قول اردو د قومندانۍ مسؤلیت هم درلود د هیواد په جنوب لویدیځ هلمند، نیمروز او فراه کې ډیری فتوحات دده تر مشرۍ لاندې د مجاهدینو په نصیب شول. دغه راز د میوند، پنجوایي او ډنډ له نیولو وروسته د کندهار ولایت په بولدک ولسوالي او د کندهار په ښار د طالبانو د فاتحانه هجوم په مهال هم نظامي مشري دده په غاړه وه. نوموړی یو ځیرک، تجربه کار او پرهیزګار نظامي مشر و او جهادي چارې یې په ډیر دیانت او هوښیارۍ سره پرمخ وړلې.

نوموړي چې د پاټکیانو او تنظیمي مفسدینو په ضد د جګړو مشري یې کوله عمده هدف یې د افغانستان مظلوم اولس د تنظیمي ټوپکیانو له شره خلاصول و. نوموړي به زیاتره جهادي عملیات او تعرضونه د شپې لخوا په تیاره کې ترسره کول.ده به ویل موږ دا نه غواړو چې په جګړه کې ډیر خلک ووژل شي.هغوی که څه هم زموږ مخالفین دي مګر زموږ پرې پیرزو نه ده چې په دې جګړه کې او د فساد په صف کې ووژل شي. موږ غواړو چې له دوی څخه وطن خلاص کړو او یوازې یې تیښتې ته اړ کړو. څرنګه چې په شپه کې دوی ته د تیښتې فرصت ډیر وي نو ځکه موږ ورباندې په شپه کې تعرض کوو، تر څو مقاومت ونه کړي او د تیښتې لار غوره کړي.

اوبالآخره شهادت يې.

لـه ډیروخـت جهـاد اوفـداکاریو وروسـته بـالاخره دغـه دالله دلارې نـه سـتړی کیدونکی مجاهد ،اتل غازی اوخواخوږي مسؤل هم خپل ارمان ته درسیدوپه لارکې لـه مخالفینو سره د یوې مخامخ نښتې په ترڅ کې په ۱۲/٦/۱۳۷۴ هجري شمسي نیټه کـې د هلمند او فراه په حدودو کې د شوراب دښـت پـه سـیمه کـې پـه شـهادت ورسـیدو اوخپله سترې روح یې په هیوادکې دیوه شرعي نظام دحاکمیت په هیله دهغې حقیقـي مالک ته وسپارله .

رحمه الله تعالی



# دنومیالي جهادي قومندان شهید ملا مشر اخند ژوند ته کتنه

لیکنه: قاري سعید

کله چې په افغانستان کې دفساد او فتنو په مقابل کې دعلماء کرامو پـه مشرۍ دطالبانو اسلامي تحریک راپورته شو، نو داسلامي تحریک په بیلابیلو وظـائفو کـې یـوه مهمه وظیفه دمجاهدینو دنظامي مشرتابه او په جګړه ایزو حالاتو کې دپـوځي رهـبرۍ وه .

ددې وظیفې دترسره کولو لپاره اسـلامي امـارت لـه پیلـه خـورا غښـتلي، زړور او فداکار جهادي مشران درلودلي دي ، چې له دې جملې یو پیژندل شـوی شخصـیت پـه ملا مشر مشهور شهید ملاعبدالقیوم دی .

شهید ملا مشر اخوند یو له هغو څیرو څخه دی ، چې داسلامي امارت په تأسیس او پراختیا کې یې خورا ستر کردار ادا کړی. ډیـره مـوده داسـلامي تحریـک دجهـادي لښکرو مشر پاته شوی او دنوموړي په مشرۍ مجاهـدینو خـورا ډیـر فتوحـات لاسـته راوړي. ددې په ځای چې دنوموړي په جهادي کردارونو او دشخصیت په ځـانګړنو رڼـا واچوو، له هرڅه وړاندې غواړو دنوموړي لنډه پیژندنه درته وړاندې کړو .

## پیدایښت او ابتدائي حالات یې

دملا مشر اصلي نوم ملاعبدالقیوم دی، نوموړی چې دپښتنو له ترین قوم څخه و په ۱۹۴۵ م کال کې دروزګان ولایت دګیزاب ولسوالۍ په مرکز چونۍ بازار سیمه کـې دنیا ته راغلی .

دشهید ملامشر دپلار نوم ملاعبدالشکور او دنیکه نوم یې مـلا مـؤمن وو ، ددوی کورنۍ له ډیر پخوا څخه دعلماء او نیکانو کورنۍ پاته شوې . دمـلا مشرـ اخونـد پـلار

ملاعبدالشکور دری زامن درلودل ، مشر يې ملاعبدالغني ( دروس ضد جهاد کې شهيد شوی ) دوهم يې ملاعبدالقيوم ( شهيد ملا مشر ) او دريـم يـې ملاعبـدالرؤف نومېـده چې هغه هم دشورويانو په ضد جهاد کې په شهادت رسيدلی .

ملامشر اخند خپلې ابتدائي زده کړې ، په خپل کور کې تـرسره کـړې او وروسـته يې دکندهار په بولدک او دبلوچستان په پښين سيمه کې په مختلفوکليوالو مدرسو کې خپلو ديني زده کړو ته دوام ورکړی، تردې چې خپل دزدکړو سفر يې تر سادسه درجـې پورې ورساوو، چې په دې مهال په افغانستان شورويانو يرغل وکړ ، او ملامشرـ اخونـد ددرس او تدريس په ځای دکفارو په مقابل کې جهاد ته خپل پاته ژوند وقف کړ .

## په ملامشر دنومېدو وجه

ډير لږ کسان به داسې وي ، چې دشهيدملامشر اصلي نوم ملاعبـدالقيوم بـه يـې زده وي ، ځکه نوموړي له تاندې ځوانۍ څخه بيا په ٥٠ کلنۍ کې دشـهادت تروختـه د هرچا لخوا يوازې په همدې نوم ( ملامشر اخند ) سره پيژندل کيده ، او همدې نوم يـې داصلي نوم ځای نيولی و .

کله چې ملامشر طالب و، نوموړي دطالبانو ترمنځ د زورآزمويلو او پهلوانۍ دلوبو په مهال هميشه په ډير قوت او بهادرۍ مشهور و، تردې چې پـه خپـل مهـال کلـه هـم کوم سيال په پهلوانۍ کې ماته نه وه ورکړې، لـه همـدې املـه نومـوړي دخپلـو ملگـرو ترمنځ په ملا مشر سره شهرت وموند، چې وروسته يې همـدې افتخـاري لقـب داصـلي نوم ځای ونيو او په ملامشر سره مشهور شو .

## دروسانو په خلاف جهاد

کله چې په افغانستان کمونيسـتي نظـام حـاکم شـو او ورپسـې دشـوروي اتحـاد يرغلگرو عسکرو په افغانستان بريد وکړ ، ملامشر اخند دا مهال دپاکستان دبلوچستان دپښين په سيمه کې په يوه کليواله مدرسه کې دينـې زده کـړې کـولې، چـې دجهـادي قيام په پيل سره يې دخپلو وروڼو غوندې ځان جهاد ته وقف کړ .

په دې مهال دافغانستان په جنوب کې یوه مشهوره جهادي جبهه دزابل په ولایت کې د آمر موسی کلیم جهادي جبهه وه چې ترډیره طالبان او علماء پـه کـې راټـول وو. ملامشر اخند هم لومړی خپل جهادي عملیات دآمر موسی کلیم ترمشرۍ لاندې دزابل ولایت په مربوطاتو کې پیل کړل .

په زابل ولایت کې له څـو کلـن جهـادي خـدمت څخـه وروسـته ملامشر اخنـد کندهار ته راغـی او دلتـه یـې دمولـوي عبدالسـتار او حـافظ عبـدالکریم پـه جهـادي جبهاتو کې څه موده جهادي خدمت وکړ او وروسته یې دقوماندان رازق په جبهـه کـې جهادي خدمت پیـل کـړ . دا جبهـه چـې مرکزونـه یـې دکنـدهار دارغسـان ولسـوالۍ دچغني په غره کې وو، زیاتره عملیات یې دکابل ــ کندهار په لویه لار او دکنـدهار پـه پنجوایي ، ډنډ او ژړۍ ولسوالیو کې کـول ، دغـه راز یـې د کنـدهار پـه ښـار کـې هـم چریکي ګروپونه درلودل .

دقوماندان رازق جبهه هاغه مهال یوه لـه مشـهورو جهـادي جبهـو څخـه وه چـې زیاتره په کې طالبان راټول شوي وو. دملامشر اخوند په شان د اسلامي امارت څـو نـور پیژندل شوي مشران لکه مرحوم ملامحمدرباني، شهید ملایارمحمد، ملامحمـد غـوث، ملامحمدعیسی او ملا احمدالله هم هغه مهال په همدې جبهه کې پـه جهـادي خـدمت بوخت وو .

دکندهار ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل ملامحمد عیسی اخند چـې دروس ضد جهاد په مهال دزابل او کندهار په جبهاتوکې دملامشر اخنـد سره یوځـای پاته شوی دی وایي. چې شهید ملامشر اخند دزابل او کندهار په دواړو جبهاتو کې پـه پوره متانت سره جهادي دنده ترسره کړه ، او په ډیر لږ وخت کې دیـوه غښـتلي ، زړور او مخلص مجاهد په صفت وپیژندل شو .

دملامشر اخند همدا فداکاري او لوړ جهادي استعداد و چې دخپلو ملګرو ترمنځ یې ډیر رسوخ وموند او دیوه جهادي مشر په حیث راڅرګنـد شـو، سره لـه دې چـې دا

مهال دجبهې عمومي قومندانان نـور وو خـو ډېـر ځلـه بـه دجگـړې پـه وخـت مشـري دملامشر اخند په غاړه وه .

د روس ضد جهاد په مهال ملامشر اخند څو ځله له سختو خطراتو سره مخامخ او ټپي شو، يو ځل دکندهار هوايي ډگر تـه نـږدې دخوشـاب پـه سـيمه کـې لـه شـوروي عسکرو سره په مخامخ جنگ کې ډېر سخت ولگېد او ژامه يې سخته ټپي شوه .

د کمونيزم ضد جهاد په وروستيو کلونو کې ملامشر اخوند له کندهار څخه خپل اصلي ټاټوبي روزگان ولايت ته ولاړ او هلته يې دمجاهدينو ديوه گروپ مشري په غـاړه واخيسته او ترهغه وخته يې مسلح جهاد ته ادامه ورکړه ترڅو جهاد بريـا تـه ورسـيد او کمونست رژيم له منځه لاړ .

## داسلامي امارت په صف کې خدمت

کله چې دکمونيزم په ضد جهاد بريالیتوب تـه ورسـيد مـلا مشرـ اخنـد د ډېـرو واقعي مجاهدينو غوندې خپله وسله په ځمکه کيښوده او په خپل اصلي وطن دارزگـان په گيزاب کې يې غريبانـه ژونـد پيـل کـړ. مگـر نومـوړي وليـدل چـې د يوشـمير بـې احساسه خلکو او ټوپکيـانو لخـوا دجهادپـه ارمـانونو لـوبې روانـې دي ، دقـدرت لپـاره دجنگ لويه فتنه رابرسيره شوه او په افغان اسلامي وطن کې دهيچا هم سر او مال پـه امن نه دی ، همدې حالت شهيد ملا مشر اخند هم دنورو واقعي مجاهدينو غوندې په دې فکر کې کړ، چې بايد د روان زياتيدونکي فساد او هرج ومرج دمخنيوي او محـوې لپاره يوه لاره وسنجول شي .

نوموړی له خپلو ملگرو سره په همدې فکر کې و چې په کندهار کـې دملامحمـد عمر مجاهد په مشرۍ دطالبانو اسلامي تحريک پيل شو. ملامشر اخند له هغو کسـانو وو چـې دپيـل لـه لومړيـو مراحلـو لـه دې تحريـک سره ملگـری شـو او پـه کنـدهار او دافغانستان په نورو برخو کې يې دتحريک په پراختيا کې خورا ستر نقش ولوباوو .

دتحریک له تاسیس وروسته کله چې دلوی کندهار حوزه دطالبانو لاس ته ولوېده، نو طالبانو دغزني، کابل او پکتیا په خوا پرمختګ پیل کړ. همدا کاروان چې وروسته غزني، وردګ، لوګر، پکتیا، پکتیکا، خوست او آن دکابل لمنو ته ورسیدو، ملا مشر اخند په کې دیوه مشر ملګري په حیث برخوال و . ملامشر اخند وروسته په میدان ښار کې دطالبانو ددفاعي خط مسؤل وټاکل شو، چې په پلازمینه کابل دبریدونو مسؤلیت به هم دده په غاړه و .

ملا مشر اخند چې د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد ډیر نږدې او اعتمادي ملګری و او په جهادي امورو کې یې په ده باندې ډیر باور درلود، ډیرځله به دملاصاحب لخوا هغو سیمو ته لیږل کیده چې مجاهدین به له مشکلاتو سره مخامخ وو.

د ۱۹۹۵ م کال داګست میاشتې په اواخرو کې کله چې دتورن اسمعیل لخوا په هلمند ستر برید وشو او مجاهدین له ډیرو مشکلاتو سره مخامخ شول، ملامحمدعمر مجاهد ملامشر اخند چې دا وخت د میدان ښار دخط مسؤل و کندهار ته وغوښت او ورته ویې ویل چې ګرشک ته ځان ورسوي .

د دلارام او بکوا په جګړو کې دملامشر اخند په ګډون طالبانو دتورن اسمعیل خان کسانو او د مسعود کومکي ټوپکوالو ته سخت شکست ورکړ، چې په تعقیب یې فراه او هرات ولایتونه هم دطالبانو لخوا فتحه شول .

دهرات له فتحې وروسته ملا مشر اخوند بیرته دکابل خطوطو ته راوګرځید او په پلازمینه کابل یې له غرب، جنوب او جنوب ختیځ څخه څوځله سخت بریدونه وکړل ، چې په وروستي ځل خو یې خورا ډیر پرمختګ هم وکړ او پلازمینه دفتحې په درشل کې وه، چې دکابل په جنوب ختیځ دقلعه فتح الله په سیمه کې ملامشر اخند خپله ددښمن دبمبار په نتیجه کې په شهادت ورسېد .انالله وانا الیه را جعون

دشهید ملامشر اخند جسد خپل پلرني وطن دروزګان ګیزاب ته انتقال شو ، او همالته په خپله هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .

دشهادت په مهال د شهيد ملامشر اخند عمر ٥٠ کاله و او تر شايي دوه اولادونه بسم الله او رحمت الله پاته شول ، چې دشهادت په وخت يې دمشر زوی عمر دری نيم کاله او دکشر زوی شپږ مياشتې و. دملامشر اخند زامن اوس لله الحمد ځلميان دي او مشر زوی ملابسم الله يې په خپله سيمه کې دامريکايي يرغلگرو په خلاف دمجاهدينو ديوه گروپ مشري کوي .

## دشهيد ملامشر اخند دشخصيت ځانگړنې

شهيد ملامشر اخند دنوموړي دنږدې ملگرو او متعلقينو له مشاهداتو سره سم دخورا عالي شخصيت خاوند و. که له يوې خوا داخلاص، تقوا، قوي عزم او توکل درلودونکی و له بلې خوا خورا فقير مزاجه او بې تکلفه شخصيت هم و .

دنوموړي ملگري وايي چې ملامشر اخند له ټول جديت سره سره هميشنۍ خوشطبعي هم درلوده او کله ناکله به يې دجهاد په ډيرو سختو حالاتو کې په خوشطبعۍ سره دملگرو حوصله لوړه ساتله .

ملامحمدعيسی اخند وايي د دشوروي ضد جهاد په وخت کې دزابل ولايت په تازي سيمه کې ديوه سخت جنگ په مهال يې دملامشر اخند زړورتوب او متانت په خپلو سترگو ليدلی، دده په خبره هغه وخت چې له روسي عسکرو سره سخت جنگ روان و او دمرميو باران وربېده ملامشر اخند هغه يوازينی ځوک و، چې بې له کومې ويرې مخ په وړاندې روان و او په روسي عسکرو يې حملې کولې .

ملامحمدعيسی اخند وايي: په پيل کې مجاهدينو په پخوانيو غيراتومات وسلو جهاد کاوو خو کله چې په کندهار کې جبهې ته په لومړي ځل يو ميل اتومات وسله کلاشينکوف راغله، نو دجبهې مشر د ټولو مجاهدينو له منځه ملا مشر اخند ته ورکړه ځکه چې په ده يې ترټولوډېر باور درلود او دښې وسلې مستحق ورته ښکارېدو .

ملامحمدعيسی اخند وايي: دملامشر اخند بله قهرماني دکندهار ښار په ښاري چريکي عملياتو کې وليدل شوه، يوځل دکندهار ښار د شکارپور دروازې په سيمه کې

دروسانو يو ټانگ چې روسي عسكر يې په سر ناست و، ملا مشراخند مخامخ حمله پرې وكړه، روسی عسكر يې مړ كړ، وروسته ورغی دوژل شوي روسي وسله يې هم ترلاسه كړه او ټانگ ته يې اور واچاوو .

د روس ضد جهاد دمهال غونډې داسلامي تحريک په وخت كې هم په مختلفو جگړو كې دملا مشر اخند زړورتوب، متانت او لوړه حوصله په بيا بيا مشاهده شوې ده. نوموړی تل دجهادي صف ترټولو سخت ځای ته ورمخته كيده، چې له همدې امله نوموړی څو ځله ټپي شو او بالاخره شهيد هم په داسې مهال شو چې نورو ملگرو ته په نجات وركولو بوخت و .

## دملامشر اخوند شهادت

په ۱۳۷۴ هـ كال كې طالبانو دپلازمينې كابل دفتحه كولو لپاره خورا ستر عمليات په لاره واچول. دا عمليات چې په كابل باندې له لويديځ، جنوب او جنوب ختيځ څخه په يوه وخت پيل شوي و، طالبانو دجنوب ختيځ په جبهه كې خورا ډير پرمختگ وكړ . په همدې استقامت مجاهدينو د چكرې، بندغازي او نورې گنې سيمې ونيولې او حتی په ختيځ كې دپل چرخي ترمحبس پورې ورسيدل . په همدې استقامت ملامشر اخند په خپله په عملياتو كې برخوال او دجگړې په لومړۍ كرښه كې يې شتون درلود. خو د مجاهدينو داعمليات هغه مهال نيمگړي پاته شول او دفتحې ترسرمنزله ونه رسيدل كله چې دقلعه فتح الله په سيمه كې دعملياتو عمومي قومندان ملا مشر-اخند په شهادت ورسيد . دعيني شاهدانو په وينا دكابل په جنوب ختيځ كې دقلعه فتح الله په سيمه كې د دښمن په بمبار كې ځينې مجاهدين ترنړيدلو ودانيو لاندې شول ، ملا مشر اخند چې عمومي مسؤليت يې هم په غاړه و له نورو مجاهدينو سره يوځای هځه كوله ، چې تر ودانيو لاندې پاته مجاهدين راوباسي چې په دې مهال دمسعود الوتكو بيا بمبار وكړ او نوموړی يې له څو تنو نورو مجاهدينو سره يوځای په شهادت ورساوو . انا لله وانا اليه راجعون

## د کابل د فاتح شهید ملا بورجان اخند ژوند ته کتنه

**لیکنه: شاهد غزنیوال**

شهید ملابورجان چې اصلي نوم یې مـلا امـین الله دی دحـاجي ملامحمـد صـادق زوي اودملا موسی جان لمسی پـه ۱۳۷۹ هـق ۱۹۵۸م کـي دکنـدهارولایت د پنجـوایي ولسوالۍ دتلوکان کلي په یوه دینداره اومجاهده کورنۍ کي دې فاني نړۍ تـه سـترګي غړولي دي .

**زده کړه اوتعلیم یې :**

داچې دنومـوړي تعلـق پـه یـوه علمـي کـورنۍ پـوري و نـو دهغـه والـد صـاحب داکوښښ کاوو چي دده زوی هم دخپلي کورنۍ داسلافو په څیر پـه علمـي سـلک کـي داخـل اولـه هغـې لاري څخـه دخپـل دیـن ، عقیـدې اووطـن لپـاره دخـدمت مصـدر وګرځي.خود الهي تقدیر له مخي نوموړی دخپل ژوند په دوهمه لسیزه کي و چي والـد صاحب یې وفات شو او ده خپل وروستی ژوند دهغه دشفقت اومهربـانۍ لـه سـیوري لیري په یوازیتوب کي دخپلي مور ترسرپرستۍ لاندي دعلم طلب اوحصـول تـه وقـف کړ.نوموړي دهغي بي ساري میني اوشوق له مخي چي له دیني تعلـیم سره یـې درلـود دژوند په ډیروستونزمنوشرائطوکي دسیمي پـه مدارسـو اومسـاجدوکي خپـل ابتـدایي اومنځني تعلیمات سرته ورسول.

**جهاد اومبارزه یې:**

شهید ملا بورجان تـازه ده خپـل آرمـان ( د اسـلامي تعلیماتـو )دحصـول منځنـۍ مرحلې ته داخل شوی و چي زمونږ په هیواد کې کمونستانودیوې پوځي کودتـا لـه لارې دقـدرت واګـي ترلاسـه کـړې .دامهـال شـهید مـلا بورجـان نـوی دځـوانۍ پـه موسـم ورګډشوی او په زړه کي یې ددرس اوښووني ترڅنګ د جهاد اوجهادي سـنګرونو مینـه

هم په جوش راغلې وه .داهغه وخت و چې دهيواد دجنوب لويديځ زون په شمول دافغانستان په ټولو ولايتونوکي دکمونستانوپه خلاف داسلامي جهاد اومقابلې بيرغ اوچت شوی و.کمونستانوپه ټول افغانستان کي دمدارسو ښوونکي، عالمان،استاذان اود اسلامي فکرلرونکي کسان ددولت اوکمونستي عقيدې ددښمنۍ په تور بنديانول اوبيابه يې دننيو صليبيانو اودهغوی دغلامانوپه شان همداسي له شواهدو او اسنادو پرته په ګوندي کمونستي محاکمو کي په شهادت رسول .شهيد ملابورجان هم هغه وخت له درس اومدرسې سره خدای پاماني وکړه اودجهادي جبهي په لوريې مخه کړه چي کمونستانو دنوموړي ددېني ښوونو ډېر استاذان په افغانستان کي دسوسيالستي ترقۍ دمخالفت په تور بنديان اوبيايي په مظلومانه توګه په شهادت ورسول.که څه هم داوخت شهيد ملابورجان دعمر په لحاظ کم سن و خودغيرت ،شهامت اوسرښندني په ډګرکي بياترټولوزړه ور،غيرتي اوسرشاره مجاهد و. جهادي خدمت يې په ۲۵ کلنۍ کي د کندهارولايت په پنجوايي ولسوالۍ کي دجنوب لويديځي حوزې دمشهور جهادي قومندان ملا حاجی محمد اخندله جبهې څخه پيل کړ .شهيد ملابورجان په ډيرلږوخت کي دخپلي بې کچي زړورتياله مخي په دغې جبهې کي ترټولو دبهادر او غيرتي مجاهد لقب خپل کړ،چي له امله يې په ټوله سيمه کي ديو شجاع،تکتيکي اوځيرک مجاهد په نوم مشهورشو.

له ۱۹۸۰ تر۱۹۸۹پوري دهيواد جنوب لويديځه حوزه په تيره دکندهار ولايت مرکز دمجاهدينو او روسانواودهغوی دغلامانو خلقيانواو پرچميانو دخونړيو عملياتو ساحه وه، دکندهار ولايت مرکز اودهغه په خواوشاسيموکي به هيڅ داسي ورځ نه تيريده چي په هغې کي دي په لسګونوروسي زغره وال وسائط او بي شميره روسي پوځيان دمجاهدينو دمرګانيو عملياتوپه ترڅ کي له منځه نه وي وړل شوي. دکندهارولايت دخپل سوق الجيشي حيثيت له مخي روسانواو په کابل کي دهغوی ګوډاګي رژيم ته لکه داوس په څېرامريکايانواوپه کابل کي دهغوی لاسپوڅي اداري ته

ډېر د اهمیت وړ ولایت بلل کیـده، همـدالامل و چـي د هغـه دسـاتنې اوپـه هغـه کـې دمجاهدینو دپوځي فعالیتونو مخنیوي ته یې ډېره پاملرنه کوله.

هغوی دکندهارښار دساتني لپاره دهغه خواوشا ډېرمستحکم امنیتي کمربندونه جوړ کړي وو اودهغوی ساتونکي روسي اوافغان پوځیان یې دوخت په ترټولو پرمختللیو پوځي وسائلو مجهزکړي وو.مجاهدینوهم کوښښ کاوه چـي پـه دغـه مهـم ښـارباندي خپلي حملې زیاتي اوهغه ترخپلي محاصرې لاندي وسـاتي .مجاهـدینو ددې کـار لپـاره دکندهارښار چارچاپیره اوپه خـاص ډول دمحلـه جـات ،پاشـمول خوشـاب او . . . پـه سیمو کېدکندهارښار دمحاصرې اوپه هغه باندې دتـرسره کوونکوعملیاتولپـاره پـوځي کمربندونه تشکیل کړل اوپه هغوکي یې دسیمي ترټولو مجرب اوباتدبیره مجاهدین لـه ښوپرمختللیو وسلوسره ځای پرځای کړي وو.دغه مجاهدین چي شمیریې سلګونو تنوته رسـیده دوخـت پـه بیلابیلوجهـادي تنظیمونوپـوري مربـوط وو ،خودلتـه دجګـړې پـه محاذکي دهغوی ټولومشري دشهید ملابورجان په غـاړه وه.نومـوړی کـه څـه هـم چـې تنظیمي وابستګي یې دمرحوم مولوي محمد یونس (خالص) په اسلامي حزب پـوري وه خودخپل جهادي شهرت له امله یې دوخت دټولوجهادي رهبرانوپه زړه کي خاص ځای درلود.ټولوجهادي رهبرانود نوموړي په پوځي لیاقت، زړه ورتیا اوعسکري پوهي بانـدي پوره باور درلود اوله همدې امله یې نوموړی دکندهارپه سطحه دکندهارښـار دجنـګ دلـومړی کرښــي دعمــومي مســؤل پــه توګــه ټــاکلی ؤ.دروسي یرغــل پــه مهــال دکندهارولایت دمشهورومجاهدینوپه شاهدي شهیدملابورجان لومړنی شـخص و چـي په رڼا ورځ یې په دغه سیمه کي دروسـانو او خلقیـانو (کمونسـتانو)په پـوځي مرکزونـو چریکي حملې پیل کړې.

ملابورجان شهید دغیرت، سرښندني، تدبیر اوزړه ورتیا یوه نمونه وه . دهغـه بـه پردښمن خاص رعب پـروت و،پـه کوموپـوځي عملیـاتوکي چـي بـه نومـوړی شریـک و دټولومجاهدینو به په هماغوعملیـاتوکي دځـان پـه بریـالیتوب بانـدې پـوره بـاور و. د روسي یرغل په مهال یوه شپه مجاهدینوپروګرام ترتیب کړچې دکندهارپه ښارکې دننه

دروسـانوپه يـوه مهـم پـوځي مرکـز عمليـات تـرسره کـړي ؛ ددغوعملياتوقومانـده د ملابورجان په غاړه وه .

نومړي دمجاهدينوله منځه څوتکړه مجاهـدين انتخـاب کـړل چـي دهغـوی لـه جملې څخه يوهم دافغانستان داسلامي امارت زعـيم عاليقـدراميرالمؤمنين ملامحمـد عمـر مجاهـد و.هماغـه پـوځي مرکزتـه لـه رسـيدوسره يـې نورمجاهـدين دمرکزپـه شاوخواکي ځاي پرځای اودی خپله دمرکز همجواره ديوې ودانۍ بـام تـه ورپورتـه شـو هلته يې وليدل چې ګڼ شمير روسان اوساتونکي خلقيان يې دمرکزپه دننـه کـي دپـرو (قطعو)په لوبو بوخت دي .سمدستي يې له خپلو ملګرومجاهدينوڅخـه هغـه توغنـدی چي مخکي يې لا دتوغولو لپاره چمتوکړي وې دبام سرته ورپورته او له هغه څخه يې په غافل ګيره توګه دروسانو په هماغه بنډاري مجلس باندي ورشارټ کړې چي له امله يې په يادمرکزکي ديره روسانواودهغوی مزدورانوته مرګونی تاوان ورواړاوه ،خو خپل ځـان او ورسره ټول مجاهدين يې په سالمه توګه بيرته خپل مرکزته راورسول .

همدارازکله چي په کال. (۱۹۸۸) کي دکندهار ولايت دارغنداب ولسوالۍ ته چي هغه مهال دمجاهدينو ترټولومحکم اومضبوط سنګرګڼل کيده دروسـانويوه ډيـره لويـه پوځي قوه راغله چي دهغـې مشرـي پـه افغانسـتان کـي دروسي قـواوود مشرـقومندان جنرال بوريس ګروموف په غاړه وه.دغه قـوه دروسي پـوځي چارواکوپـه وينـا دهغـوی د۱۲۰۰۰۰ کسـيزپوځ ترټولولويـه قـوه وه چـي پـه ډيـر شـمير روسي پوځيـانو دزيـات شميرالوتکو اوزغره والووسايطوپه ملتيا پکي برخه درلوده .

جنرال بوريس ګروموف په خپل کتاب (سرې لښـکري پـه افغانسـتان کـي )ددې لويې قوې اودهغې په مقابل کي دمجاهدينو دسـخت مقاومـت پـه اړه تفصـيلي بحـث ليکلی دی .دارغنداب ولسوالۍد کندهار ښار شمال لوېديځ ته په پنځه کيلومتري کي يوه ګڼ مېشته کرنيزه ولسوالي ده چي شمال ته يې شاولي کوټ، شمال لوېديځ تـه يـې خاکرېز ، لوېديځ ته يې ژېړۍ ولسوالي او جنوب ختيځ ته يـې کنـدهار ښـار موقعيـت لري . روسانوځکه ارغنداب ته په دومره لوی شـميرقوه راوليږلـه چـي دغـي ولسـوالۍ

دخپل ستراتیژیک موقعیت له کبله دکندهارولایت د مرکز په ساتلو اوبـایللو کـي ډېـر مهم رول در لود.

په دغه جګړه کي روسي ځواکونو په جنوب غربي حوزه کي یوبـل مشـهورجهادي قومنـدان او دارغنــداب دمجاهــدینو عمــومي مشرــ ملانقیــب الله دهغــه لــه ټولــو مجاهدینوسره ۳۳ ورځي محاصره کـړی ؤ. شـهید ملابورجـان چـي دامهـال دپاشـمول اومحله جات په سیمه کي دروسي ځواکونوله خوا د ور ته محاصرې ترتهدید هم لاندې و دایې و نشوای زغملای چي په ارغنداب کي دي دده نور مجاهـدین وروڼـه دروسـانو تروژونکو بمباریو لاندې محاصره پاتي شي .

هماغه و چي له خپلو ګـڼ شـمیرتکړه مجاهـدینو سره سـیمي تـه ورغـی د روسي ځواکونو په حلقوي کرښوېي دشاله لوري ناڅاپه تکتیکي حملې وکړې چي په پایلـه کـي یې دښمن تیـت وپـرک کړاومجاهـدین یـې دهغـوی دمحـاصرې څخـه راخـلاص کـړل .دشهید ملابورجان په مشری دارغنداب لـه ولسـوالۍ څخـه دروسي ځواکونـود دغـه سترې حملې په شاتمبول ددې لامل شو چي نوربیا روسي ځواکونوترهغوچې پـه ۱۵ ـ ۱ ـ ۱۹۸۹م کي له افغانستان څخه وتل ددې جرئت تر لاسه نکـړ چـي بیـادي پـه کنـدهار ولایت کي دمجاهدینوکوم مرکز محاصره اویـادي پـه هغـه بریـد وکـړي .دملابورجـان دغي تاریخي کارنامې دنوموړی شـهرت اومحبوبیـت نـورهم پسيـ زیـات کړ.دشـهید ملابورجان ټول جهادي دور دایو امتیازدرلود چي دښمن هیڅ کله په ده بانـدي دبریـد کولو جرئت په ځان کي نشوای پیداکولای ،برعکس زیاتره وخت به دده (ملابورجان )له خوا روسي او مزدورافغان ځواکونه یې تربرید لاندي نیـول کیـدل.نوموړي دجهـادټول وخت دجنوب لویدیځي حوزې دمجاهدینودیو تکړه اومشهورپوځي قومندان پـه توګـه له روسي ځواکونوسره په مخامخ جګړوکي تیرکړی او دوه ځلي په دغو جګړوکي سخت زخمي شوی هم دی .لومړی ځل په کال ۱۹۸٦ کي کله چـي مجاهـدین دکندهارښـارته خیرمـه دبـاغ پـل پـه سـیمه کـي دروسي ځواکونولـه لـوري محـاصره شـول اودی یـې دخلاصون په نیت ورغی هلته دمجاهدینودمحاصرې ترماتولو وروسته دیومځکني ماین

دانفجار په وسیله ټپي شو .دوهم ځل بیا په کال۱۹۸۷ م کي دمحله جات په سیمه کي له روسي ځواکونوسره په هغه خونړۍ جګړه کي زخمي شو کومه چي روسانوپه دغه سیمه کي دمجاهدینو دلومړیو جنګي کمربندونودله منځه وړلوپه غرض پیل کړې وه اودحاجي معاون صاحب (ملا محمدرباني ) په شمول دمجاهدینو یوشیرنورمهم مشران هم پکې زخمیان شول. خوپه دغو دواړو وارونوکي یې زخمي کیدل ددې لامل نشول چي دده په جهادي عزم کي دي کمزورتیا راولي ،بلکي له هغوزخمونوبه لا مکمل نه و روغ شوی چي بیا به دعملیاتو محاذ ته ولاړ . په افغانستان کې دنجیب په مشرۍ دکمونستي نظام تړ ړنګیدو وروسته ملا بورجان هم دنورومخلصو مجاهدینوپه څیر پرکورارام کښیناست اودتنظیمي اختلافاتوپه مهال یې دهیڅ کوم حزبي جهت په ګټه دهغوی په داخلي غورځوپرځوکي ګډون ونکړ.

## دطالبانو د تحریک په تأسیس کي دشهید ملابورجان مهم رول

په افغانستان کي دطالبانو اسلامي تحریک په داسي حالت کي رامنځته شو چي دشهید ملابورجان په څیر زیات شمیر مخلص مجاهدین دخوارلس کلن مقدس جهاددسپیڅلو ارمانونوله ترلاسه کولوڅخه مایوسه شوي وو.ټول هیواد دوررو وژونکي نارواجګړې سوځوونکولمبوپه سراخیستي ؤ اوپه کابل کي دیونیم ملیون ارمانجنوشهیدانودتوقع خلاف دنړیوالوکفري دسیسو په ترڅ کي منځته راغلې بیواکه اوفاسده اداره حاکمه وه.هغومجاهدینوچي په هیوادکي یې دیو سوچه اسلامي نظام دپلي کیدوپه غرض بیدریغه قربانۍ ورکړي وې ،تکلیفونه یې ګاللي وو، ډیرشمیر خپلوان اودسنګرخواږه ملګري یې له لاسه ورکړي وو، هغوی ته تربل هرڅا دغه ناوړه حالت دزغملو وړنه و هغوی که تربل هرڅا داسلامي حکومت دقائمولوپه لار کي ډیرکړاونه لیدلي هم وو، خودخپلوقوي عزائمو اوپخو ارادو له مخي د دغو ناخوالو اودهیواددناماسبوحالاتوپه مقابل کي تسلیمي اوآرام کیناستل ورته له خپلو شهیدانو ورونوسره جفا معلومیدله. ددغو راسخ العقیده، قوي عزمه اونه ستړي کیدونکوجهادي لارویانوله جملې څخه یوهم شهید ملابورجان و چي دخپل پیل کړي مزل دسرته رسولوپه غرض یې دطالبانوداسلامي تحریک

دمؤسس ملامحمدعمر مجاهد ننگه وکړه اوپه ډېر اخلاص اومیړانه سره دتحریک دتأسیس له هماغه لومړي سر څخه دهغه ترڅنګ ودرید.د۱۹۹۴ م دجولای دمیاشتي له پیل نه بیا د۱۹۹٦ دسپتمبر تر۲۷ مي ، دکابل ترتصفیې پوري چي دطالبانواسلامي تحریک په پوځي اوسیاسي ډګر کي کومي لاسته راوړني درلودلې په هغوکي بي له شکه دشهید ملابورجان دمخلصانه قربانیو، ستومانیو اوصادقانه هلوځلوستر رول و .په ۵ـ۱۱ـ۱۹۹۴ کي چي طالبانو دکندهارولایت مرکز ترخپلي سلطې لاندي راوست اوهلته یې دطالبانو داسلامي تحریک په نوم عالي شورى تأسیس کړه شهید ملابورجان ددغي شوراد دعضویت ترڅنګ په اسلامي تحریک کي دځینو پوځي امورو تنظیم اوترتیب هم په غاړه درلود.

هغه په لومړي سرکي دکندهار امنیه قومندان وټاکل شو ترهغه وروسته چي کله طالبانو دهیواد دنورو ولایاتو دتصفیې اقدامات وکړل نودهغه لپاره دپوځي سوقیاتوپه انسجام او ترتیب کي هم شهید ملابورجان دحاجي معاون صاحب ملا محمدرباني اودتحریک د عمومي نظامي قومندان شهیدحاجي ملامحمد اخندپه ملګرتیامخکښ رول ولوباوه.طالبانو وکولای شول چې دهغه دعسکري موفقوتکتیکونوپه مرسته په ډېر ه کمه موده کي له کندهارنه دکابل ترڅنډو چاراسیاب اومیدان ښارپوري ځان ورسوي .په ۱۴ـ ۲ ـ ۱۹۹۵ دکابل په جنوب دچار اسیاب په سیمه کي شهید ملابورجان شدید زخمي شو اودمعالجې لپاره کندهارته راغی. دلته ترلږ وخت استراحت او علاج وروسته بیرته دکابل جنوب چاراسیاب ته دجګړې دلومړیوکرښو دتنظیمولو لپاره ولاړ. د۱۹۹۵ دفبروري دمیاشتي له دوهمي نیټې بیا د۱۹۹٦ کال داګست ترمیاشتي پوري طالبانو ځوځله دکابل دنیولو کوښښ وکړ خو موفق نشول .وروسته شهیدملابورجان صاحب دطالبانو دقیادت په مشوره له ختیځ لوري دکابل دنیولو په یوه بدیل عسکري پلان کار پیل کړ . هماغه ؤ چي په ۱ـ ۸ ـ ۱۹۹٦ م کال یې ددغه نوي پوځي پلان دعملي کولو نقشه د پکتیا د اریوب او سپیني شګي له استقامت څخه پیل کړه اودسپیني شګي ، حصارک ،ازري،ننګرهارولایت ،کونړ،لغمان اوسروبي له تصفیه کولو وروسته یې په یوه میاشت او۲٦ورځوکي دجګړې لومړۍ کرښه دکابل ختیځي دروازي دماهي پر سیمي ته ورسوله.

## دشهید ملابورجان پوځي عبقریت.

سره له دې چي شهید ملابورجان په تعلیمي لحاظ نه په کوم حربي ښونځي کي جنګي تعلیمات ترلاسه کړي وو اونه هم دکوم حربي پوهنتون فارغ التحصیل و خو په موهوبوي لحاظ ورته الله تعالی یوځانګړ ی حربي مهارت ورکړی و .

دجنوب لویدیځي حوزې دمجاهدینو دشاهدۍ په استناد، چي کله به دپخواني جهاد په مهال شهید ملابورجان په کندهارښاربانديِ دعملیاتو پروګرام درلود په هغه ورځ به په ټول ښارکي دکمونستانو حرکت ،تګ راتګ تقریبا له بشپړ توقف سره مخامخ و ځکه هغوی په دې پوه وو، چي ملابورجان ددښمن داهدافو دله منځه وړلو اودهغوی داستهداف ډیر دقیق اوتکتیکي پروګرامونه طرحه کوي له همدې ویري به هغوی هیڅ یوه هم له خپل مرکز اوځای څخه دبهر راوتلو هڅه نشوای کولای .دطالبانو دتحریک په دور کي هم په کوم استقامت کي چي به شهید ملا بورجان شتون درلود هلته به دطالبانو پوځي پرمختګ ډیر ګړندی و او مجاهدین به له جنګي تلفاتوڅخه ډیر خوندي پاتي کیدل.هغه به دهرپوځي اقدام ترعملي کیدود مخه په هغه کي دخپل ځان دبریالیتوب اوناکامۍ په اړه یوه دقیقه وړاندوینه کوله.

دبیلګې په توګه ارواښادملابورجان به ویل چي : زما د پوځي تجربي له مخي مونږکابل دچار آسیاب اومیدان ښار له لوري نشو نیولای ، خوکه مونږ همدغه پوځي اقدامات دکابل له ختیځ استقامت نه عملي کړو نوکولای شو چي په لنډوخت کي کابل ترخپلي ولکې لاندي راولو.

رېښتیا هم کله چي دده دمشورې له مخي دکابل دنیولو لپاره له ختیځ لوري کارپیل شو هماغه و چي څومره وخت نومورې تعین کړی و په هغومره وخت کي کابل ښارپه مکمله توګه طالبانو ترخپل کنترول لاندي رواست .

## دشهید ملابورجان ترحم اوخواخوږي.

سره له دې چي شهید ملابورجان خپل ټول عمر په پوځي چاروکي تېرکړی و اوټول سر وکار یې له جنګي اموروسره ؤ، خو له اخلاقي لحاظه بیا ډیر حلیم ،نرم مزاجه

اوخوش طبیعته انسان و. دجهادي ژوندپه صحنه کي له خپلو ملگروسره دهغه تعامل دقران کریم ددې مبارک ارشاد (اشداء علی الکفار رحماء بینهم ) یوښکاره مصداق و.

هغه به دجگړې په سختوشیبوکي ددې ډیرکوښښ کاوه چي په ناحقه دچا وینه توي نه شي. دطالبانو پـه ټولـو پـوځي عملیـاتوکي ده دا هیلـه درلـوده چـي دطالبانو مخالفین ونه وژل شي ،هغوی ته باید داسي زمینه مساعده شي چې یاتسلیم اویاهم دطالبانوله مقابلې څخه دعقب نشیني لاره غوره کړي.پـه ۱۹۹۵ م ۱۰\۲۱مـه کلـه چـي طالبـانو دمیـدان ښـار اولـوگر ولایتونـه تـرخپلي ولکـې لانـدي راوسـتل دبي بي سي راډیودپښتو څانگې خبریال له ملابورجـان سره دطالبـانو دپـوځي پرمختگونوپـه هکلـه مرکه درلوده .دمرکې په ترڅ کي خبریال له ملابورجان څخـه پـه دې اړه هـم وپوښـتل چي تاسو ولي خپل ټول پوځي عملیات پـه ورځ کـي تـرسره کـوئ اودشـپې مهـال هـیڅ چیري ستاسوکوم پوځي تحرک نه وي؟.نوموړي په ځواب کې ورته وویل چي :«مونږ نه غواړوچي په غافلگیرانه توگه خپل مخالفین تر برید لاندي ونیسو ځکـه پـه دې طریقـه دهغوی په منځ کي مرگ ژوبله زیاته راځي اومونږ نه غواړوچي هغوی ووژل شي ، بلکي غواړو چي دهغوی دوژلوڅخه پرته سیمي ترخپل کنترول لاندي راولو». دتعجب خبره داده چي په وریښمین تنگي کي دده دشهید کیدلوپه ځای چیرته چي طالبانو لـه هغـه سره نژدې یومسجد جوړ کړی دی ، اوس هلته دکـرزي اداري محـافظینو یـوه امنیتـي پوسته جوړه کړې ده ،هغوئ دخپل ځان دحفاظت په غرض دپوستې په دیوال پـه لـوی خط لیکلي دي :دشهید ملابورجان امنیتي پوسته !!.

یوه ورځ شهید ملا بور جان په چار اسیاب کـي دجگـړې پـه لـومړۍ کرښـه کـي یوشمېرطالبانوته په کومه خبره باندي په قهر شو اوڅه تر خې خـبري یـې ورتـه وکـړې کله چي خپل ځای ته راغی په خپل دغه کار باندي ډیرخفه ؤ، بیر ته هغو مجاهدینو ته دعذرغوښتلو لپاره ورغی ،هغوی یې ټول راضي کړل ،له هر یوه څخه یې ځانته – ځانتـه ښښنه وغوښته اوله ټولوسره دغیږي ترروغبړ( معانقې )وروسته بیرته پـه خوشـالۍ سره خپل مرکزته راغی.

## دشهيد ملابورجان تقوی اودیانت.

ملابورجان لکه څرنګه چي په شهامت، زړه ورتوب، اوبهادرۍ مشهور و، همداسي د ديانت ،حسنه اخلاقو او پرهيزګارۍ يوه نمونه و.دبيت المال له پيسوڅخه يې دشخصي کارونولپاره په هيڅ ډول استفاده نه کوله نوروته به يې هم داخبره کوله چي :مجاهدين په بيت المال کي خيانت وکړي نو ستونزي يې ډيرېږي يعني بشري اومالي تلفات يې ډيرېږی .سره له دې چي ملابورجان ټول وخت په لويومسؤليتونوکي تېرکړی و، خو کورنۍاقتصادي وضعه يې ډيره کمزورې وه .

.په داسي حال کي چي ده خپل ټول عمر په جهادکي تېر کړی و او دخپل شخصي ژوند لپاره يې په اقتصادی لحاظ هيڅ کار نه ؤ کړی اونه يې هم له بيت المال څخه ناوړه استفاده کړې وه.نو دورځني ژوند ګذاره يې تر دې اندازې خرابه وه چي دکور د ورځنيو اساسي اړتياوو درفع کولو لپاره به يې له ملګرو څخه پيسې قرض اخيستې اوبيا به يې هغه مشکل باندي حل کاوه.

## دشهيد ملابورجان شهادت :

دجهاد اوشهادت دسنګرونودغه اسطوره يي شهکار، دغيرت،شجاعت اوفداکارۍنمونه، دتقوی، صداقت اواخلاص سمبول ،قهرمان بي ريا مجاهد محترم ملا امين الله صاحب ( شهيدملابورجان )د۱۳۷۵ هجري شمسي کال د ميزان د مياشتې په پنځمه نيټه دوريښمين تنګي په سيمه کي د مخالفينود ۸۲ ملي متري توپ د مرمۍ په پرزو دلګيدوله امله په شهادت ورسيد ،په دي سره دخدای بخښلی د( ۳۸ ) کلن اسلامي، جهادي او ملي وياړمن ژوند دعمربليدونکې ډيوه خاموشه شوه .اناالله وانااليه راجعون . روح دي ښاد ،ياد دي تل وي .

هرګزنميرد آنکه دلش زنده شد بعشق
ثبت است بر جريده عالم دوام ما
حافظ شيرازي

# د شهید مولوي محمد خوشحال ملنګ ژوندته کتنه

لیکنه: خبیر احمد مجاهد

دافغانستان د لوګرولایت دمرکزاړوند (سپیست ) په سیمه ، دپاینده خیلوپه قوم کې دلعل محمد په کورکې په ۱۳۴۸ هجري شمسي۔ کال له الهي لورینوډک هلک وزیږید، دهغه په مبارکه بشره کې دنبوغ او خوشحالی نښې له ورایه بریښیدي، نوځکه یې هلک په محمد خوشحال ونوماوه

محمدخوشحال، ابتدایي زدکړې دخپل کلي دجومات له ملا څخه ترلاسه دنورولپاره یې اوږده علمي سفرته ملاوتړله، په لنډ وخت کې یې ړومبني دیني اومروجه کتابونه خلاص اودلوړوزدکړوپه خاطریې دافغانستان اوپاکستان دډیروجیدو علماء کراماوشیوخوڅخه اړوند علوم او فنون ولوستل دطالبانو او خپلوهمځولوپه منځ کې دذکاوت او ذهانت نومیالی څیره وه ،له همدې وجې یې دهراستادپه زړه کې ځانګړی ځای درلود.

دهجرت په دیارکې یې دپیښورد چراټ په محمدیه اسلامیه جامعه کې په ۱۴۱۱هق کال کې دموقوف علیه ( وړه دوري) کتابونه ولوستل. په ۱۴۱۲ هق کال کې یې دحدیثو لویه دوره دپاکستان خیبر پښتونخواپه مشهوره مدرسه دارالعلوم حقانیه اکوړه ختک مدرسه کې ترسره کړه اوپه همدې کال په اعلی درجه اوممتازو نمبرو فارغ او د فضیلت دستار یې په سرکړ.

## دعلم له طلب سره په مسلح جهادکې ګډون :

مولوي محمدخوشحال ملنګ،دروسانواودهغودګوډاګیانوپه مقابل کې په عملي جهاد کې پوره ونډه اخیستله اوله فرصت نه په استفادي سره به یې تودوسنګرونوته ځان رساوو چې یوڅوبیلګې یې دلته را اخلو .

دتیـر جهـاد پـه مهـال دمجاهدینولـه لـوري دکمـو نسـتانو پـه ضـد د جـلال اباددڅمرخیلوپه لویه اوتاریخي معرکه کې مولوي صاحب شجاعانه برخـه اخیسـتي وه. دلوگر ولایت په مرکزاوشاوخوا سیموکې به دروسانو اوکمونیستانوپرخلاف دمجاهدینو په تعرضونو اوحملوکې هرکال سهیم اوگډون وال و، تردې چې یوځل یې دولایت دمرکز دگمبزی په قرارگاه چې دگردیز- لوگر په عمومي سرک واقع وه دورځي پـه ۱۲بجـود ۹ تنو طالبانو په ملتیاتعرض وکړاوترماښامه په داسې حال کې چې دښـمن څلوروخواتـه محاصره کړي ووسخته مقابله یې ورسره وکړه ، په نتیجه کې محاصره دالله ج په نصرت ماته شوه، ددښمن څوعرادي موټرېې تخریب اودرونـد ځـاني زیـان یـې ورواړاوه، اتـل مولوي صاحب په دغه جنگ کې په چپ لاس زخمي شو، له دغې پیښې یوه ورځ ورسته ددوستم گلم جم ملیشودلوگردتورغره په څوکوحمله وکړه اوهمدلته یې مهم سـنگرونه ونیول، مولوي صاحب پـه زخمـي وجـود لـه خپلـو همـدغو ۹ طالبـانو سره دورځـي پـه ۱۱بجوپـه دښـمن حملـه وکـړه، دسـختي مقـابلې پـه پـای کـې یـې لـه دښـمن څخـه دمجاهدینوسنگرونه بیرته ونیول چې ۸ نفره ملحدین اوگلم جـمان هـم پـه جگـړه کـې ووژل شول اوزیاته اندازه مهمات اووسلي مجاهدینو په غنمیت ونیولي

## درس او تدریس

دعلوموله فراغت وروسته مولوي محمدخوشحال ملنگ، د خیبر پښتونخوا صـوبې په دارالعلوم ضیاءالاسلام ورسک کې یوکال تدریس وکړ،دفراغـت پـه دوهـم کـال یـې دمانسهرې دخاکي دافغان مهاجرینوپه کمپ کـې پـه نعمانیـه مدرسـه کـې دمروجـه فنونومهم کتابونه طالبانوته تدریس کړل.

## دطالبانوداسلامي تحریک پیل

مولوي صاحب، په نعمانیه مدرسه کې لاتدریسيـ کـال نـه وخـتم کـړی چـې پـه افغانستان کې دطالبانوداسلامي حرکت وړانگي په خپریدو شوي

مولـوی صـاحب دتحریـک داعیـې تـه لبیـک ووایـه اودڅوتنونـورملګروسره دلوګرولایت دعلماوواوطالبانوپه نمایندګي کندهارته سفروکړ،هلته یې دتحریـک لـه مشرانوسره ترکتنې ورسته دده په مشری پلاوي تـه دنـده وسپارل شـوه تـر څـو لـوګر ولایت ته ولاړ شي او دخپل ولایت داړوند طالبانو لیکې منظمې کړي .

**دجهاد په لومړیو کرښوکې ځان ځارونه**

دخوست په ولایت کې دیولړ نظامي اوملکي مسولیتونوله ترسره کولووروسـته،له خپلو جهادي ملګرو اوطالبانوسره دمیـدان شـهراوکابل پـه پولـه واقـع ړومبـۍ جنګـي کرښـي ( د پریکـړي سـیمې) تـه ولاړاوهلتـه یـې دمیـدان ښـار دعمـومي جنګـي محاذونودقومندان ( ملامشراخند رح ) پـه هـدایت دمـدافعي سـنګر پـه ساتلوموظف شو،په داسې حال کې چـې هلتـه ۲۴ساعته دفـاع اوپهـرې تـه ضرورت و، خـو مولـوي محمدخوشحال صاحب څومیاشتي په ډېر شجاعت اومیړاني هلته تیري کړي

له څه مودي وروسته دکابل ولایت دچهاراسیاب ولسوالی کې داسلامي تحریـک اولنیوکرښـوته لـه خپلـو ملګـروسره ورغـی، هلتـه یـې دریشـخوروفرقي پـه سر پرتوحساسوڅوکوکې څه وخت تیر کړ، له هغه وروسته دکابل دچکـړي پـه سیمه کـې ړومبۍ کرښي ته ولاړاوپه هغه لوی تعرض کې یې په ډېر شهامت برخه واخیسـته چـې دکابل دنیولوپه موخه پیل شوی و.

دنوموړي تعرض په نتیجـه کـې دچکـړي، ملنـګ کلـی اوبنـدغازي ټـولي سیمي طالبـانو ونیـولي، دبنـدغازي پـه یـوه سـتراتیژیکه څوکـه کـې مولـوي صـاحب لـه څومحــدودوملګروسره پــه دفــاع بوخــت اودخپــل اسـتقامت پــه بنـایې ددښــمن څلورتعرضونه چې ددوی ټول قوت دمولوي صاحب دیوې پوستې پـه نیولوڅرخیـده پـه مکرر ډول په شاوتمبول شول اوددښمن دسختوحملوپه وجه چې له مولوي صاحب سره څومره ملګري وو اکثره زخمیان شول،هماغه ووچې دتحریک پیل شوي بریداوفتوحات مخ په وړاندې ولاړل اوتر( پل چرخي محبس ) پوري شاوخواټولي سیمي دطالبـانولاس ته ورغلي.

قهرمان مولوي صاحب ، له څه مودې ورسته دمشرانوپه لارښوونه دچهاراسیاب لیکوتـه مخـه کـړه اوهلتـه یـې پـه حساسوسـنګرونوکې واړول چـې یوځـل ددښـمن الوتکودمولوي صاحب په مورچل اوپوسـتي بمبـاري وکـړه چـې هغـه اونوروپنځـه تنـه ملګري یې شدیدټپیان اودخاورو له انبارونوڅخه ژوندي راوویستل شول.

له درملنې ورسته مولوي صاحب خوشحال ملنګ خوست ولایـت تـه سـتون شـو، دخوست ولایت وضعیت په هغه مهال داسې وو چې طالبان صرف دخوست په ښـار او نیږدې سیموکې میشت وواوولسوالیوته یې دعملي سلطې اراده نه وه کړې اودخوسـت په ولسوالیوکې چې ډېره ددښمن ترکلکي قبضې اونفوذلاندې و هغه دیعقوبیوولسـوالی وه، دتحریک مشرـانودهمدغې ولسـوالی د اراامولواونیولـو لپـاره مولـوي صـاحب هلتـه دولسوال په توګـه ولیـږه، مولـوي صـاحب پـه خپـل بیسـاري نظـامي او ولسيـ تـدبیر دیعقوبیو ولسوالی ارامه او دغه مهمـه ولسـوالی یـې دتحریـک ولکـې تـه راوسـتله ، د ولسوالی دامنیتي وضعیت لـه نورمـال کیدورسـته ،مولـوي صـاحب پـه ولسـوالی کـې محترم مولوي صاحب عبدالروف خدام دځان کفیل وټاکـه او پـه خپلـه دچهاراسـیاب کرښوته ستون شواوهلته یې له نظامي اوجهادي بوختیاسره سره دریشخورپه فرقه کـې طالبانوته دیني درسونه او دعظیم الشان قران ترجمه هم شروع کړه.

کله چې دطالبانوداسلامي تحریک فاتحانه کاروان د اتل اونومیـالي مشرـ شـهید (ملابورجان رَحِمَهُ ٱللَّهُ) ترمشري لاندې دلـوګردازري ولسـوالی ددیندارو‌خلکوپـه دعـوت اوملتیاپیل شو،محترم شهیدمولوي صاحب ملنګ دشهیدملابورجان په خـاص هـدایت دکاروان مل اوملګری وګرځید.

دازري ولسوالی فتحه شوه، خو دښمن دنوموړي ولسوالی دچوتري په کوتـل کـې په مقاومت شروع وکړه ،شهیدملابورجان پـه عمـومي سرک تعـرض پیـل کـړاو مولـوي صاحب ملنګ ته یې د غرونوپه څوکودحملي قومنده وروسـپارله، هماغـه و چـې کوتـل فتحه دښمن په تیښـته شـو، لـه هغـه وروسـته دمختلفـو محاذونولپـاره مشرـان تعـین شول،او شهید ملنګ ته هم د ملابورجان اخند لخوا د یوه محاذ مشرـي وسـپارل شـوه.

هماغه وچې الله تعالی دفتوحاتودروازي پرانیستي اوترجلال اباد‌پوري سیمي طالبـانو ونیولي، کله چې دجلال اباد ښار ونیول شـو،ملابورجان اخنـد، مولـوي ملنـګ دتـورخم دنیولولپاره ولیږه،چې خـدای تعـالی تـورخم پرتـه لـه کـومي جګـړي دطالبـانولاس تـه وروست .

دمشرقي ولایتونوله تصفیي اوفتحي ورسته ، دشهیدملابورجان په مشري دفتحـي کاروان دکابل په استقامت وخوځید، شهیدملنګ ورسره ځنـګ پـه ځنـګ روان و، کلـه چـې د وریښـمین تنګـي پـه خولـه کـې دغیـرت اومیـړاني سـتراتل ملابورجـان اخونـد شهیدشو دمولوي صاحب ملنګ هم ګـڼ ملګـري زخمیـان شـول، وریښـمین تنګـی الله تعالی فتحه کړ اوطالبانو سروبي ته مخه کړه، له لږمقاومت ورسته سروبی هم ونیـول شو، په ماهیپرتنګي کې مخالفینوکلک مقاومت کاوو اوپاخه سنګرونه يې نیولي وو، لـه دری ساعته جنګ وروسته طالبان لږ بې موراله شول اودشاتګ په لټه کې شول ، لـیکن مولوي ملنګ او په صحنه کې حاضرو نـورو جهـادي مشرـانو پـه طالبـان غـږ کـړ چـې حوصله ماته نکړي الله ج مهربانه دی ، په دې آن کې دری تنه طالبانو دغـره لـه داسـې څوکي چې هلته دانسان ختل سـخت دي دماهیپرپـه تونـل کـې پـه ولاړټانـګ دراکـټ فیروکړچې له هغې سره ددښمن په منځ کې دوارخطایي اوتیښتي لړی پیل شـوه اودالله ج په خاص نصرـت دفتحـې دروازه خلاصـه شـوه، دتحریـک دهغـه ځـای ګـڼ مشرـان شاهدي ورکوي چې هغه دری تنه فاتحین طالبان بیانه چاولیدل او نه يې هـم داڅـرک ولګاوه چې داڅوک وو، معلومه شوه چې هغه اسماني لښکري وي چـې دطالبانونصرـت ته راکوزي شوي وي

کلـه چـې کابـل ښـار تصـفیه اوحسـاس مراکـز اونقطـي ونیـول شـوي، محـترم ملاعبدالرزاق اخندچې دشهیدملابورجان له شهادت ورسته دکابـل دنیولوقومنـده لـه هغـه سره وه، شـهیدمولوي ملنـګ تـه دنـده وسـپارله چـې دخیرخـانې کوتـل سـمبال اودباګرام دهوایي ډګرپه لورحرکت وکـړي ، هغـه ووچـې د۱۲تنونورملګروپـه ګـډون

دباگرام هوايي ډګر ته ننـوت ،لـه ۲ ساعته تيريدوورسـته دتحريـک نورځواکونـه هـم باګرام ته راورسيدل اودښمن يې دپنجشيرترخولي پوري تعقيب کړ.

## دجبل السراج دولسوال په توګه

دعاليقدراميرالمؤمنين دفرمان له مخې شـهيدمولوي صـاحب خوشـحال ملنـګ، دجبل السراج ولسوالی دولسوال په توګه وګـمارل شـو، مولـوي صـاحب ترخپلـې وسـې ډيرې هلې ځلې وکړي ترڅوپه نوموړي ولسوالی کې عام ولس دتحريک همکاروګرځوي اودشراوفســادله منګولونجــات ورکــړي، خودښــمن دغــه ولــس دځــان لپــاره سپراوښکارګرځولی واودهغوی دکورونو، باغونواوکروندوله لاري به يې په غلچکـی ډول په طالبانوبريدونه کول ، هماغه ووچې دښمن په جبل السراج ، ګلبهـار اوچاريکـاروکې شديدي حملي پيل کړي ، دتحريک مشرانودولسي خلکودنجات اوڅه نورومصلحتونوله مخې خپل قوتونه دکابل دشکردرې ولسوالی کې ځای په ځای اوړومبی کرښه يې هلته جوړه کړه ،شهيدمولوي صاحب محمدخوشحال ملنـګ پـه نـوي کرښـه کـې هـم ديـوه باعزمه مشر اومجاهدپه توګه تريوې مودې پوري هلته پاتي شو

## دلوګردعلمای کراماوطالبانودصدرپه توګه

ددې لپاره چې دطالبانواسلامي تحريک دلوګرله جهاداوعلم خيزه ځمکي نه نـوره ښه استفاده وکړي، نودلوګرجيدوعلماء کرامو، طلباوواوامارتي مشرانوله لـوري پـه يـوه اتفاق دجلال اباد پـه ښـارکې محـترم مولـوي صـاحب محمدخوشـحال ملنـګ دلـوګر دعلماوو او طلباوودمشر، محترم شهيدمولوي محمدشريف سعيدي دهغه دمرسـتيال او محترم ملاميراحمدګل يـې دنظـامي مسـول پـه صـفت منتخـب اوبيادغـه انتخـاب دعاليقد راميرالمومنين له لوري هم تائيد شو.

## دکاپيساولايت دوالي په توګه :

داسلامي تحريـک دځواکونوخوځښـت بيادشـمال پـه خوادشـهيدمولوي صـاحب ملنګ په ملتياپيل شو، دکاپيسااوپروان ولايتونه فتحـه اوونيـول شـول ، هماغـه ووچـې

دعالیقدرامیرالمومنین په حکم شهیدمولوي ملنګ دکاپیسادوالي په توګه وټاکـل شـو، چون دولایت اداري چاري پـه مکملـه توګـه ویجـاړي شـوي وي اوټـول دولتـي اسـباب ددښمن له لوري چوراوچپاول شوي وي ، محترم مولـوي صـاحب دخپلـو نوروملګروپـه هلوځلوپه ډیر لږ وخت کې په نسبي ډول اداري فعالي اوامـارتي نظـم نسـق یـې هلتـه برپاوګرځاوه اوددښمن دزهرجنو تبلیغاتو دشنډولو په خاطریې دکاپیساولایت پـه هـره دره اوسیمه کې جلسي اوله ولس سره ناستې وکړي

که څه هم دښمن خپل انتهایي زور واچاووترڅوکاپیساولایت لـه طالبـانو ونیسي-خو دمولوي صاحب مدبرانه اوباشهامته اثر او د ملګرو میړاني ترډیـره وختـه ددښـمن ناولي موخي شنډي اوګڼ لوی تعرضونه یې بې نتیجې وګرځول

د ۱۳۷٦ هـ ش کال په جوزا کې دښمن په کاپیسادرنه حملـه وکـړه اودطالبانوپـه اوله کرښه کـې یـې لږبـدلون راووسـت، مولـوي صـاحب ملنـګ خپلـه منتظـره قطعـه ددښمن مخې ته ولیږله اوپه لنډوخت کې یې باغیان په شاوتمبول ، ددې ترڅنګ دشر او فساد عنـاصرو د ګلبهارپـه ولسـوالی بریـدکړي ووااو محـاصره کـړي یـې وه،مولـوي صاحب دګلبهارمحاصري دخلاصون پـه نیـت پـه همـدې لورحرکـت وکـړ، خـوکرغیړن اومکاردښمن دګلبهارنه مخکي د(دیبالي ) په بازارکې خپل کسان ځای په ځای کړي وو چې بازارته دمولوي صاحب د موټر له داخیلدو سره سم څوتنـوددین اوهیـواد غلیمانـو دمولوي صاحب موټر هدف وګرځاوو هماغه ووچې داسلام، هیـواداومیړانې دغـه لویـه هستی یې نښه وګرځیده اودعلـم ، نورانیـت اوغیـرت سـتره بیلګـه اوهسـتي ( مولـوي محمد خوشحال ملنګ له یـوتن بـل زړورملګـري ملاخلیـل احمـدسره پـه کـال ۱۳۷٦ل دجوزاپه ۸ دسهارپه ۹ بجودشهادت جامونه نوش کړل ( اناالله وانااليه راجعون )

دیادونې وړده چې دمولوي صاحب همدغه دشهادت او لـه دنیانـه درحلـت ورځ دهجرت په دیارکې دده دواده اودنوي ژونددشروع کیدونېټه اوتاریخ هم ټاکـل شـوی وواوکورته یې دسرې ډولۍ په ځای داتل شهیدپه سرووینورنګین تابوت اوجنازه وروړه!

## دمولوي محمدخوشحال ملنګ څانګړتیاوي

دخـالق جَلَّجَلَالُهُ اودهغـه دپیغمـبر صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ اوشریعـت مطهـره سره د مینـي اومحبـت نـه عـلاوه یـې لـه مسـلمانانوسره څـانګړی الفـت درلود،پـه خاصـه توګـه دسـنګراودرس ملګـري پـري بـې حـده ګـران وودخپلـو اسـتادانوبه یـې ډیرقـدرکاوو، دامیراطاعت یې په ټولوجهادي اواداري اموروکې لازمي باله اودخپلو مشرانو دحکم یې ډیر اطاعت کاوو.

شهیدمولوي صاحب ، په ملګروکې دومره اخلاص اوصمیمیت لاره چې هرملګـري به یې په اړه داپوخ یقین اوباوردرلودچې له بل هرچاله ده سره زیات محبـت اواخـلاص لري

دمدرسـې اوجومـات نـه عـلاوه بـه یـې پـه سـنګر کـې هـم د دیـن پـه تـدریس اودقرانکریم په ترجمه مشغول و، تردې چې اکثره ملګـري لـه ده څخـه پـه سـنګر کـې دکتابونوپه ویلومستفیدشوي اودسلهاووطالبانومشفق استادپاتي شوی .

دبیت المال سره داحتیاط په اړه یې هروخت خپلو ملګرواوعاموطلبه ووته توصیه کوله چې دبیـت المـال پـه سـاتنه کـې ډیراحتیـاط وکـړي اود هیچادخفګـان پرواونـه ساتي،سره لدې چې ګڼ شمیر وسایط یې پـه خـدمت کـې ولاړ وو مګردخپـل شخصيـ کاریاکورته دتګ په وخت کې به یې دبیت المال له وسایطوڅخه حتی الوسع اسـتفاده نکوله .

مولـوي صـاحب سره لـدې چـې پـه مـالي اوشخصـی لحـاظ ډیرغریـب و،خوایثاراوشفقت یې دومره زیات وچـې هـیڅ یـوملګری یـې بـې نـوااوبې احسـانه نـه پریښود

دیادونیکواوصافواوغوره خصلتونوله وجې داسلامي امارت په مسولینواوپه خاصـه په عالیقدرالمومنین زیات ګران وو

دشهادت نه ورسته يې ډېرو خلكوته كرامت معلوم شوی و، مثلادده د مدفن ترڅنګ يوكوراباد و، څښتن يې يادونه كوله چې كله شهيدمولوي صاحب په قبركې دفن شوپه اوله شپه زه بهرراووتلم ،ناګهان مې دقرانكريم خوږتلاوت ترغوږونوشو، سوچ مې وكړچې په دې نيمه شپه اوهديره كې تلاوت چيرته اوڅوک كوي ؟؟وايي چې متوجه شوم دشهيدمولوي صاحب دقبر له لوري دتلاوت اواز راته نووررروان شوم، چې كله قبر ته نيږدي شوم تلاوت يوناڅاپه بندشو، هغه كس وايي چې كله بيرته دخپل كورخواته راتلم تلاوت بياپيل شو، هغه كس ويل زه په صدق شاهدي وركوم چې دغه عمل څوځله تكرار او هغه واوريد.

رب جَلَّجَلَالُهُ دې هميشنی سعادت په نصيب اومونږ دې هم دده په قدم روان او د شهادت له سعادته برخمن كړي.



# دشهيد مولوي احسان الله احسان صاحب ژوند اوکارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

اسلامي خوځښتونو هميشه د هر بخش لپاره ځانګړي، ورزيده او با استعداده رجال درلودلي دي. که د خوځښت ځيني برخوال د تورې او جنګ د ډګر نوميالی وي ځينې نور بيا د سياست، دعوت، خطابت او د خلکو د زړونو د فتحه کولو په چاره کې داسې مهارت او استعداد لري چې هره خبره او چلند يې د زرګونو مرميو په تناسب ستره نتيجه او فتحه په لاس راوړي.

الله تعالی خپل اشرف مخلوق انسان ته بيلابيل استعدادونه ورکړي دي چې په دې استعدادو کې يو مهم استعداد د نطق او بيان استعداد دی چې انسان له نورو مخلوقاتو څخه ممتاز ګرځوي. خو کله چې همدغه د بيان او وينا استعداد د فصاحت او بلاغت له کمال سره همغاړی شي او ورسره د اخلاص او صميميت مرسته هم وي نو بيا د ويناکوونکي وينا په نورو خلکو د سحر غوندې اغيز کوي، خبرې يې په زړونو کې لارې باسي او د افکارو په توجيه او تهذيب کې ستر نقش لوبوي.

شهيد مولوی احسان الله احسان صاحب د افغانستان په سطحه يو له همداسې خطباوو او ويناوالو څخه و چې د اغيزناکې وينا يادونه به يې تر ډيره د افغانانو په اذهانو او زړو کې خوندي وي. شهيد احسان صاحب د هيواد د تاريخ په يوه حساس پړاو کې د سياست ميدان ته راودانګل، هغه مهال چې افغانستان د حتمي تجزيې له ګواښ سره مخ و، اولس د ذات البيني جګړو او فساد په لمبو کې کبابيدو او په هر اړخيزه توګه د فساد او هرج و مرج توپان را الوتی وو. مولوی احسان الله احسان صاحب د ګڼ شمير نورو علماء کرامو او طالبانو په شمول د فساد د محوه کولو لپاره د جهاد ميدان ته راوړاندې شو،د طالبانو اسلامي تحريک او په تعقيب يې د افغانستان

اسلامي امارت تأسيس کړ، هيواد يې له فساد او ګډوډيو وژغوره او د جهاد ثمره يې د ضياع له خطر څخه خوندی کړه.

## شهيد مولوي احسان الله احسان

شهيد مولوي احسان الله احسان د مولوي اغا محمد زوی د مولوي ميرزا محمد لمسی په قوم پوپلزای چې اصلي ټاټوبی يې د کندهار ولايت د شاولي کوټ ولسوالۍ د بورې د علاقې لوی کلي دی په کال ۱۳۸۱ هجري قمري کې د محرم د مياشتې په پنځمه نيټه د زابل ولايت دميزاني ولسوالۍ د سليم په کلي کي په يوه متدينه علمي کورنۍ کې زيږيدلی دی. دشهيد مولوي احسان الله نيکه مولوي ميرزامحمد صاحب دکندهار ولايت له مشهوروجهادي اوعلمي شخصيتونو څخه بلل کيږي؛ نوموړي دافغان انګليس د دوهمي جګړې په مهال دانګريزانوخلاف په ډيرو جګړوکي فعال سهم درلود اودخپل همدغه فعال جهادي مساهمت له امله دکندهار ولايت په سرحدي ولسوالۍ سپين بولدک کي له انګليسي پوځونوسره په مخامخ مقابله کي په پښه زخمي شوی و چي له همدې امله دسيمي دخلګوپه منځ کي دګوډ ملا ميرزامحمد په نوم مشهور و.

## زدکړه اوتحصيل يې :

شهيد مولوي احسان الله احسان له وړکوالي څخه دفطری نبوغ اوسرشاره علمي ذکاوت څښتن و. نوموړی په يوه متدين علمي خاندان کې زيږيدلی و د پلار په شان يې والده شريفه هم د ديانت او زهد څښتنه وه چې ويل به يې شهيد احسان ته مې هميشه په اوداسه شيدې ورکړي دي. د شهيد احسان صاحب مور به د نوموړي د ذکاوت په اړه ويل چې له کوچنيوالي د نبوغ او ذکاوت څښتن و د پنځو کلونو و چې آيت الکرسي يې ياد کړې او ماته يې هم را ياد کړه. د شهيد احسان والد صاحب له هماغه وړکتوبه څخه دده علمي اوتربيوي روزني اوپالني ته ډيره توجه کوله .لومړی يې په خپل کورکي په هغه باندي دابتدايي ديني علومو زده کړه پيل کړه اوبيا وروسته يې دشرعي علومو دتحصيل لپاره د پاکستان لوړوشرعي مراکزواومدارسوته وليږه .شهيد

مولوي احسان الله صاحب خپل لوړشرعي تحصيلات ددارالهجـرت پـه بـيلا بيلـو دينـي مدارسوكي په ډيرزيار اوكوښښ سره حاصل كـړل. د پاكسـتان د خيـبر پښـتونخوا لـه سوات علاقې نيولې بيا د بلوچستان تر مختلفو سيمو لكه، ميزۍ اډه،پښين، كچلاغ،لور لايي او مركز كوټه كې يې د خپل وخت له زبده عالمانو او مدرسينو لكه مولـوي سـعد الدين اخندزاده،مولوي عبدالغفور صاحب،مولوي شرف الدين صاحب، مولوي عنايـت الله مشهور په غبرگي اخنـدزاده،مولوي عبيـد الله قنـدهاري، مولـوي ابوالفضـل معـين الدين صاحب او نورو څخه يې ديني علوم او فنون حاصل كړل تر دې چې د احاديثو تر وړې او لويې دورې پورې ورسيد.

وړه دوره يې د كويټې په مشهوره مدرسه جامعه اشرفيه كـې لـه شـيخ الحـديث مولوي عبدالباري او مولوي عبدالحی څخه ولوسته او لويه دوره يې په همدې مدرسـه كې له شيخ الحديث مولوي عبدالغفور صاحب څخه پيل كړه. خو د كال پـه اوږدوكـې شيخ الحديث مولوي عبدالغفور صاحب وفات شو، نو ځكه يې پاتې سبقونه د كويټې د شالدرې په مدرسه كې له شيخ الحديث حافظ عبدالواحد صاحب څخه تكميل كړل او له ديني علومو د فراغت سند يې ترلاسه كړ.

## د كمونيزم په خلاف جهاد

شهيد مولوي احسان الله صـاحب لادخپلـو دينـي تعليماتـو دحصـول پـه ابتـدايي مرحله كي و چي په افغانستان كي كمونستانو ديوې پوځي كودتا له لاري دقدرت واگي ترلاسه كړې چي سمدستي يې پرخلاف مؤمنو افغانانو اسلامي جهاد پيل كـړ. پـه دغـه مقدس جهاد كې دافغانستان ټول ملت په بيساري ميړاني اوشهامت سره سهم درلـود، خودهغه دقيادت او درهبرۍ مسؤليت دشرعي اومذهبي مكلفيت لـه مخـي تـر ډيـره دعلماوو په اوږو ورلويدلی و. شهيد مولوي احسان الله صاحب هم چي دخـپلي سـيمي پـه كچـه يـې پـه يـوه علمـي اوجهـادي كـورنۍ پـوري تعلـق درلـود نوتربـل هرچـايې دروسانواوكمونستانو خلاف جهاد خپل ديني مسؤليت باله .

نومړي دهمدغه ديني مسؤليت له مخي لومړی دزابل ولايت دميزاني ولسوالۍ دشهيد مقيم ترمشرۍ لاندي ديرغلګرو روسانوپه ضد جهاد پيل کړ.له هغه وروسته هلمند ولايت ته ولاړ اوهلته يې دوه کاله دهماغه ولايت په مختلفوجبهاتو کي دکمونستانوخلاف جهاد وکړ.په هلمند ولايت کي د بېلابيلو جهادي اوپوځي تکتيکونوترلاسه کولو وروسته بيرته زابل ولايت ته راغی اودلته يې دمولوي عبد الظاهرپه ملګرتيا ددې ولايت دميزاني ولسوالۍ په ارغسو غره کي ديوې فعالي جهادي جبهې بنسټ کښېښود.شهيد مولوي احسان الله به دخپلي نوي تأسيس شوي جبهې مجاهدينوته دپوځي اوعسکري زده کړي ترڅنګ د دعوت په حلقوکي دفکري پوهني اواسلامي ثقافت درسونه هم ورکول اوهغوی به يې دپوځي زده کړي ترڅنګ په علمي اوفکري لحاظ هم دالحاد اوبيدينۍ په خلاف جهاد اومبارزې ته چمتو کول .

نومړي وروسته ډيره توجه دديني زدکړو تکميل ته واړوله خو بيا يي هم د خپل توان او فرصت په اندازه په جهادي فريضه کې ونډه اخيسته او د جهادي داعيې يو مخکښ داعي او عملي مجاهد و.

## د طالبانو په اسلامي تحريک کې شموليت

د ۱۴۱۵ هجري قمری کال د محرم الحرام په مياشت کي چي په هيواد کي دجهادي نيمګړو آرمانونو دتحقق لپاره داسلامي امارت دمشرتابه له لوري دطالبانو اسلامي تحريک تاسيس شو نوشهيد مولوي احسان الله صاحب يوله هغو لومړنيوکسانوڅخه و چي په خورا اخلاص اوصداقت دتحريک دمؤسس ترڅنګ ودريد اوپه خپلونه سترې کيدونکو هلوځلوېې دهغه ملاتړ وکړ.دتحريک دتأسيس په هماغو اوائلوکي چې لا د طالبانو تحريک د ميوند او ډنډ ولسوالۍ له حدودو نه و تېر شوی مولوي احسان الله صاحب نه يوازې عملا د اسلامي تحريک غړی شو بلکې دخپلي سيمي ټول جهادي قومندانان اوعام ولسي خلګ يې دې ته وهڅول چي په سوله ييزه توګه له تحريک سره يوځای اوله خپلو وسلوسره دطالبانو په ليکوکي په هيواد کي ديوه سوچه شرعي نظام دحاکميت لپاره قربانۍ ورکړي.هماغه ؤ چي دشهيد احسان

صاحب ددغو حكيمانه هلوځلو له بركته دسيمي ډېر پخواني جهادي قومندانان او عـام خلګ دې ته تيارشول چې له تحريک سره يوځاي شي . مولوي احسان صـاحب د علـماء كرامو د هغې شورا غړيتوب هم درلود چې د مرحوم شيخ مولوي عبـدالعلي ديوبنـدي صاحب په مشرۍ يې به بولـدک کې ټـوپكي قومنـدانانو تـه دعـوت وركـړ تـر څـو لـه پاټكمارۍ او ظلم زياتي لاس واخلي او د طالبانو د تحريک داعيه ومني خو دا چې هغو ټوپكيانو له ډيرو دعوتونو سره سره هم خپل ناروا حاكميـت تـه دوام وركـاوو نـو ځكـه طالبانو د شهيد ملا محمد اخند په مشرۍ د هغو په ضد عمليـات وكـړل او د بولـدک ساحه يې ترې تصفيه كړه.

## د مولوي احسان الله صاحب ستره كارنامه

د كندهار له فتحي وروسته د ۱۳۷۳ هـ ش كال د جدي د مياشتې په ورستيو کې د طالبانو لښكر له كندهار څخه د زابل پـه خـوا حركـت پيـل كـړ. مولـوي احسـان الله احسان صاحب هم د امارت د نورو مشرانو تر څنګ ددې لښكر برخـوال و، د زابـل پـه ولايت کې موجوده مجاهدينو او طالبانو د دوی هركلی وكړ او واک يې په بشپړه توګـه وروسپاره. له زابل وروسته همدغـه لښـكر غـزني ولايـت تـه ورسـيد. د غـزني مركـز، ولايت، فرقه او نور مهم مراكز په غزني کې يو شمير خيرخواه قومنـدانانو طالبـانو تـه وسپارل، خو د غزني په يونټ او روضه سيمو کې د حزب اسلامي او حـزب وحـدت لـه ډلو سره جنګ وشو چې وروسته هغوی تيښتې ته اړ او سيمه مكمله د طالبانو تـر واک لاندې راغله.

كه څه هم د طالبانو د همدې لښكر لويه برخه د ميدان وردګو په خوا لاړل او تـر ميدان ښار، لوګر او چهاراسياب پورې ورسيدل خو د همدې كال د دلوې د مياشتې په ۲۷ نيټه د طالبانو يوه لويه ډله د مولوي احسان الله احسان صاحب په مشرۍ له غـزني د پكتيكا په خوا لاړه . د پكتيكا ولايت ځايي علـماء او مشرـانو ورتـه د ولايـت واک پـه بشپړ ډول وسپاره. له همدې ځايه مولوي احسان الله احسان صاحب د لـويې پكتيـا لـه جهادي قومندانانو او مطرحو مشرانو لكه ستر مجاهد مولوي جـلال الـدين حقـاني،ملا

عبداللطیف منصور، مولوي فرید الدین محمـود او نـورو مجاهـدینو سره خـبرې پیـل کړې تردې چې دمولـوي احسـان صـاحب د مدبرانـه تګـلارې، قـوي اسـتدلال او قـانع کوونکو وضاحتونو په نتیجه کې د لویې پکتیا یعني پکتیا، پکتیکا او خوست ولایاتو ټول مجاهدین د اسلامي امارت په واکمنۍ قانع او په پـوره اخـلاص یـې خپـل تشـکیلات د اطالبانو د اسلامي تحریک په صفوفو کې مدغم کړل. چې په دې توګه نـه یـوازې دغـه درې مهم ولایات پـه مکمـل ډول د اسـلامي واکمنـۍ برخـه وګرځیـدل بلکـه د ځـایي مجاهدینو، طالبانو او له هغوی سره د موجودو امکاناتو او وسلو او عام اولسي ملاتړ په مټ اسلامي تحریک نور هم قوي شو چې ددغې پروسې پـه کامیـابۍ کـې ډیـر رول د مولوي احسان الله احسان صاحب و چې په خپل فصیح او بلیغ استدلال سره یې اسلامي تحریک خلکو ته د یوه واقعي اسلامي او افغاني تحریـک پـه حیـث ورمعـرفي کـړ او د هغوی بشپړ قناعت او ملاتړ یي حاصل کړ.

## په اسلامي تحریک مسؤلیتونه

مولوي احسان الله احسان صاحب چې د اسلامي تحریک په اوائلو کې یې د جنوب ختیځ زون په ولایاتو کې د طالبانو سرپرستي او مشري په غاړه درلوده د هرات ولایـت له فتحې څه موده وروسته د عالیقدر امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ په امـر د هـرات ولایـت د والي په حیث وټاکل شو هغه مهال چې هرات ولایت په پوځي لحاظ فتحه شوی و مګـر په ذهني لحاظ لا هم ډیر خلک د طالبانو په اړه شکمن و او له همدې امله ډیر خطرات موجود و او همیشه به په ښار او اطرافو کې د طالبانو په خلافت مزاحمـت او بریدونـه کیدل. مولوي احسـان الله احسـان صـاحب پـه خپلـو عالمانـه قـانع کوونکـو وینـاوو او مدبرانه برخورد سره په دې وتوانید چې ددې ولایت د خلکو باور او زړونه را خپل او په دې توګه په هرات کې د اسلامي امارت په خـلاف موجـود مشـکلات او مخالفتونـه لـه ریښې ختم شي.

د ۱۳۷۵ هـ ش کال د حمل په میاشت کې کلـه چـې پـه کنـدهار کـې د اسـلامي امارت د تأسیس غونډه دائره او د طالبانو تحریک د افغانستان په اسلامي امـارت سره

تبديل شو. د علماء كرامو په دې عظيم الشانه غونډه کې چې شاوخوا يونيم زر تنه علماء كرامو په کې ګډون کړی و مولوي احسان الله احسان صاحب په کې کليدي رول درلود د غونډې په جريان کې مولوي احسان الله صاحب دغې شورى ته د ملا محمد عمر مجاهد لپاره د اميرالمؤمنين لقب عرض کړ چې د شورى لخوا د رأيو په اتفاق سره تصويب او له کلونو وروسته يو ځل بيا دغه نوم د اسلامي سياست په قاموس کې راژوندی شو.

د همدې کال د ميزان په مياشت کې چې طالبانو د کابل د فتحې عمليات پيل کړل د افغانستان د ختيځ د فتوحاتو په سلسله کې مولوي احسان الله احسان صاحب لومړی د ننګرهار ولايت د والي په حيث وټاکل شو خو وروسته چې کابل فتحه شو نوموړی د اسلامي امارت د لومړنۍ کابينې د تعين په مهال د افغانستان بانک د لوی رئيس په حيث وټاکل شو.

د ۱۳۷٦هـ ش کال د جوزا د مياشتې په لومړيو کې چې طالبانو په شمال ولاياتو کې له جنرال مالک سره ناکامه موافقه وکړه چې په لړ کې يې د لنډو ورځو لپاره د فارياب،جوزجان سرپل او بلخ ولاياتو ته طالبان ور داخل شول مولوي احسان الله احسان صاحب د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد په امر له څو تنو نورو امارتي مشرانو سره مزار شريف ته لاړ تر څو هلته د وضعيت په برقرارۍ کې همکاري وکړي. خو له موافقې دوه ورځې بعد جنرال مالک اړخ بدل کړ او له حزب وحدت سره د شريکې دسيسې په پايله کې يې د طالبانو په خلاف غدارانه اقدام وکړ چې په نتيجه کې يې په زرګونو په پاک نيت ورغلي طالبان په شهادت ورسيدل چې له دې جملې د امارت څو تنه زبده مشران من جمله مولوي احسان الله احسان صاحب هم و.

## د شهيد مولوي احسان الله احسان صاحب د شهادت واقعه

دلته به د شهيد مولوي احسان الله احسان صاحب د شهادت واقعه د نوموړي د ورور مولوي عبدالغني احسان صاحب له قوله درسره شريکه کړو چې ددې پيښې عيني شاهد پاته شوی دی. نوموړی وايي: د ۱۳۷٦ هجري شمسي کال د جوزا په پيل

کې زه کابل ته د مولوي احسان الله صاحب د لیدلو لپاره لاړم. خو هلته مې دی ونه لید ځکه پاکستان ته يې سفر کړی و تر څو د مزار له سقوط وروسته پاکستان هیواد د افغانستان د اسلامي امارت په رسمیت پیژندلو ته وهڅوي چې په اسلام اباد کې د اسلامي امارت د هغه وخت د سفیر مولوي شهاب الدین دلاور صاحب په خبره پاکستان هیواد بالاخره همدې ته تیار هم شو او د د جوزا د میاشتې په څلورمه نیټه یعني د مزار له تحول سمدستي وروسته یې اسلامي امارت د افغانستان د رسمي حکومت په حیث په رسمیت وپیژاند چې په تعقیب یې سعودي عربستان او عربي متحده اماراتو هم اسلامي امارت په رسمیت وپیژاند.

مولوي عبدالغني صاحب زیاتوي: زه بیا کندهار ته راغلم او مولوي احسان صاحب هم له پاکستان څخه کندهار ته او له هغه ځایه د اسلامي امارت د بهرنیو چارو د وزیر ملا محمد غوث او څو نورو مشرانو په ملګرتیا مزار ته لاړل. زه هم ددوی په تعقیب په الوتکه کې شبرغان او له هغه ځایه مزار شریف ته لاړم، په مزار کې د ښار د امنیت لپاره د طالبانو او جنرال مالک تر منځ ګډ پلان جوړ شو چې شپږ اعضاء یې درلودل. د طالبانو لخوا د فاریاب والي سیدجانان اغا، دهرات امنیه قومندان ملا عبدالحق او زه و او د جنبش لخوا شیرعرب،جنرال مجید روزي او مولوي عثمان وو.

یوه ورځ چې تیره شوه په ښار کې جنګ شروع شو. سره له دې چې جنګ جنرال مالک شروع کړی و خو موږ ته یې ویل چې دا د حزب وحدت کسانو شروع کړی دی.مازدیګر جنګ شروع شو تر سهار پورې د سهار په وخت کې ډیر طالبان څوک د شبرغان خواته او څوک د سیلو خواته له مزار ښار نه ووتل. په همدې ورځ سهار اته بجې چې د ۱۳۷٦ لمریز کال د جوزا د میاشتې ۷ مه نیټه وه زه د روضې شریفې له مسجد سره ولاړ وم چې په جیپ موټر کې څو طالبان راغلل او راته ویې ویل چې مولوي احسان الله صاحب او نور ملګري د مخابراتو په ریاست کې دي ما په ډیر تکلیف ځان ورورساوو. هلته مولوي احسان الله صاحب،ملا محمد غوث اخنداو په کندهار کې د امارت د خارجه چارو رئیس حاجي فضل محمد موجود و بیا له دې ځایه

له نورو طالبانو سره یوځای په موټرو کې سپاره شو د سیلو سره نږدې یې د ملا محمد غوث اخند موټر وویشت بیا مو هغه په بل موټر کې سپور کړ او په مخ مو حرکت وکړ. د تنګي شادیان په نوم سیمې ته چې ورسیدوپه مخکې د چارکنت د ولسوالۍ د هزاره ګانو د مشر سید اسد نفر ولاړ وو. هغوی زموږ لاره بنده کړه او زموږ د خلع سلاح کولو لپاره یې لاس واچاوو. بالاخره همدلته له هغوی سره خبره تر جنګ ورسیده او ټکان شروع شول. دغه وخت به د ورځې تقریبا لس بجې وې همدلته په جنګ کې مولوي احسان الله صاحب ولګېد او وغورځېد موږ د غره په خوا حرکات وکړ، همدا شپه موږ په غره کې شوه سهار د لوړې او تندې څخه د هلاکیدو له امله بیرته کلي ته راکوز شو هزارګانو له ټولو څخه پیسې، ساعتونه او قیمتي شیان واخیستل او موږ یې بندیان کړو. بیا یې بندیان څو ځایه سره جلا کړو زه چې د کومو بندیانو په ډله کې وم شپیته کسان و موږ یې مزار شریف ته یوووړو څلورو ورځې بعد یې بیرته همدلته په تنګي شادیان کې د حزب وحدت یوې قرارګاه ته راوړو پنځه ورځې بعد یې موږ لس کسان را وایستو تر څو هغه شهیدان راباندې راټول کړي چې همدلته دوی شهیدان کړي وو.

په دې ورځ موږ پنځه څلویښت شهیدان چې تراوسه په لاره شاوخوا پراته وو او څو ورځې ورباندې تیرې شوې راټول او دفن مو کړل په دوی کې مې خپل ورور مولوي احسان الله احسان صاحب وپیژاند او له نورو شهیدانو مې جلا دفن کړ. بیا چې کله مزار شریف او ټول سمت شمال دوهم وار فتحه شو د مولوي احسان الله صاحب جسد له هماغه قبر څخه کندهار ته را انتقال او د کندهار ښار په لویه ویاله کې د طالبانو په هدیره کې دفن شو چې په دغه هدیره کې د مشرانو د قبرونو له جملې د مشرق لخوا لومړی قبر د شهید ملامحمد اخند، ورپسې شهید ملا بورجان اخند، ورپسې شهید مولوي احسان الله احسان صاحب، ورپسې شهید ملا یار محمد اخند او د سر خواته یې د رئیس الوزار مرحوم ملا محمد رباني صاحب قبر دی. رحمهم الله تعالی

باید ووایو چې د شمال په همدې ستره غمیزه کې د مولوي احسان الله احسان صاحب یو بل ورور مولوي ولی الله صاحب هم شهید شو نوموړی چې د میمنې لخوا له

طالبانو سره راغلی و د جنرال مالک کسانو د زرگونو نـورو طالبـانو پـه شـان لـه نيولـو وروسته د جوزجان د فيض اباد ولسوالۍ په دشت ليلي کـې پـه ژورو ځاگـانو کـې پـه شهادت رسولی وو. انا لله و انا اليه راجعون



## د شهید مولوي نسیم الله صدیقي ژوند ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

مرګ حق دی، له الله تعالی پرته هرشی د مـرګ څکـه کوي،خـو لکـه څنګـه چـې هرنفس له مرګ سره مخامخیدل یو محکم حقیقت دی همدارنګه دا هم یوه منل شوې خبره ده چې د ځینو کسانو له دنیا څخه رحلت په ظاهره مرګ بلل کیـږي امـا حقیقتـا هغوی د تلپاتې ژوند په انعام ویاړل شوي وي.

الله تعالی د حق دلارې د شهیدانو په اړه فرمایلي دي : ژباړه: او تاسو د الله تعالی په لار کې په وژل شویو کسانو د مړو ګـمان مـه کـوئ، بلکـې هغـوی ژونـدي دي د الله تعالی په نزد رزق ورکول کیږي .۱٦٩سورة آل عمران

د الله تعالی په نزد هر هغه څوک شهید بلل کیـږی چـې دالله تعـالی پـه لار کـې ورته مرګ حاضر شي،که څـه هـم پـه مخـامخ جنـګ کـې د دښـمن پـه مرمـۍ نـه وي لګیدلی،ځکه رسول الله ﷺ فرمایي: من فصل ( أي خرج ) في سبیل الله فمات أو قتل فهو شهید ، أو وقصه فرسه أو بعیره أو لدغته هامـة ، أو مـات عـلی فراشـه بـأي حتف شاء الله فإنه شهید وإن له الجنة ) أخرجه أبو داود

شهید مولوي نسیم الله صدیقي چې د حق دلارې یو مخلص مجاهد و کله چې پـه جهادي سفر کې زخمي شو الله تعالی ورته شفاء نصیب کړه اما په همدې سفر کې ورته داسې مرض پیښ شو چـې دده د وفـات سـبب شـو او خپـل روح یـې اصـلي مالـک تـه وسپاره،څرنګه چې نوموړي ته د ددې مرض عارضېدل د جهادي خدمت په وخـت کـې و نوځکه نوموړي ته د شهید ویاړمن لقب ورکولای شو.

## مولوي نسیم الله

مولوي نسیم الله صدیقي د مولوي حمیدالله زوی د مولوي عبدالحکیم لمسی په ۱۳۴۸ هـ ش کال د افغانستان د تخار ولایت د فرخار په ولسوالۍ کې دنیا ته راغلی.

نوموړی چې په یوه علمي او دین دوسته کورنۍ کې زیږیدلی و، والدین یې له کوچنیوالي دیني تربیې ته متوجه و چې په دې لړ کې یې نوموړی د ماشومتوب په مهال د فرخار ولسوالۍ په خسده سیمه کې د مولوي حبیب الله اخندزاده په نوم له عالم سره شاګرد کړ تر څو خپلې ابتدایي دیني زده کړې ترې حاصلې کړي .

په افغانستان د شورویانو له یرغل وروسته کله چې په ملیونونو افغانان د خپل هیواد پریښودلو او هجرت ته مجبور شول د مولوي نسیم الله کورنۍ هم په ۱۳۵۹ هـ ش کال له خپلې اصلي سیمې تخار څخه د پاکستان د خیبرپښتونخوا د صوابۍ سیمې ته هجرت وکړ او هلته په درګي نومې کمپ کې ځای په ځای شول.

مولوي نسیم الله چې دغه مهال ماشوم و، دیني زده کړو ته یې دوام ورکړ او دپاکستان په مختلفو مدارسو کې یې دیني کتابونه ولوستل تردې چې د فنونو کتابونه یې خلاص او وړې دورې پورې یې خپله تعلمي سلسله ورسوله .

## د طالبانو له تحریک سره پیوستون

مولوي نسیم الله صدیقي په ۱۳۷۳ هـ ش کال د پاکستان په مردان کې په یوه مدرسه کې د وړې دورې کتابونه لوستل،نوموړی د یوه خواریکښ او د علم د عاشق طالب په حیث یوازې دیني تعلم ته متوجه و او ددنیا په نورو جریاناتو یې کار نه درلود. همدغه مهال د افغانستان په کندهار ولایت کې د طالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ او له بیلابیلو مدارسو څخه د طالبانو د پیوستون بهیر ورسره پیل شو.

په همدې شپې ورځو کې د احادیثو او تفسیر طالب مولوي نسیم الله په خوب کې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ویني چې ورته وایي: لاړ شه او د طالبانو د تحریک ملګری شه!

مولوي نسیم الله چې له خوبه راپاخیږي په هماغه سهار خپل کتابونه کت کوي او له څو تنو نورو ملګرو سره یوځای د کندهار په خوا روانیږي ترڅو د طالبانو له اسلامي تحریک سره ملګری شي،دغه وخت طالبانو د کندهار ښار او په جنوب کې ګڼې نورې سیمې فتح کړې وې او د کابل په خوا د پرمختګ په حال کې وو.

## په اسلامي امارت کې خدمتونه

مولوي صاحب نسیم الله چې د تخار،کندز، بغلان، سمنګان اولغمان ولایاتو یو شمیر طالبان ورسره وو د طالبانو د اسلامي تحریک سره ملګری شو. دزابل، غزني او میدان وردګ له تصفیې وروسته دوی کابل ته ورسیدل او د لوګر لخوا د چهاراسیاب په خط کې ځای په ځای شول. دلته د مولوي نسیم الله د مسؤلیت ساحه د ریشخورو فرقې ته څیرمه وه،همدغه مهال نوموړي ته د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا د تخار ولایت د طالبانو د مشرۍ چاره وسپارل شوه،مولوي نسیم الله صاحب د چهاراسیاب په جهادي کرښه کې خپل مسؤلیت په ډیره ایمانداری ترسره کړ،همدلته یې دوه تنه تکړه او نږدې ملګري مخدوم لطیف صاحب او ملا موسی جان شهیدان شول.د چهاراسیاب او محمدآغې په سیمه کې دجهادي چارو سره هم مهال نوموړي ته د شهید مولوي احسان الله احسان صاحب لخوا چې هغه وخت د خوست والي ود خوست ښار د امنیت مسؤلیت وسپارل شو،چې ددې ښار په امن کولو او د نظم په اعاده کې یې د یاد وړ نقش ولوباوو.

د کابل له فتحې څه موده وړاندې چې کله د پکتیکا په اورګون ولسوالۍ کې د خالد فاروقي او یوشمیر نورو مخالفو وسلوالو لخوا تعرض پیل شو، مولوي نسیم الله صدیقي له خپلو ملګرو سره اورګون ته لاړ او د شروفساد د ټوپکیانو د ټغر ټولولو په عملیاتو کې یې برخه واخیسته.

مولوي نسیم الله صدیقي لا په پکتیکا کې و،چې د پلازمینې کابل د فتحې لپاره د شهید ملابورجان په مشرۍ عملیات پیل شول، دغه عملیات چې د پکتیا د سپینې شګې سیمې له نیولو سره پیل شول مولوي نسیم الله ورسره له همدې ځایه ملګری شو.

نوموړي او تر قومانده لاندې ملګرو يې د دننګرهار او لغمان ولايت د تصفيې په عملياتو کې عملي ونډه درلوده، د لغمان په ولايت کې د عليشنګ ، علينګار او دولت شاه ولسواليو د تصفيې او د شروفساد له عناصرو څخه د خلاصولو مسؤليت د مولوي نسيم الله صاحب په غاړه وه چې خپله دغه وظيفه يي په ډيره ښه توګه انجام کړه .

د پلازمينې کابل د فتحې په تعقيب چې کله دپروان ولايت مرکز هم فتحه شو،مولوي نسيم الله صديقي له لغمان څخه پروان ته راغی او د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د پروان د امنيه قومندان په حيث وټاکل شو.

د مولوي نسيم الله نږدې ملګري مولوي محمد محسن هاشمي چې هغه مهال يې له نوموړي سره د امنيه قومندانۍ د مرستيال په حيث دنده اجراء کوله وايي: مولوي صاحب په هغو پيچيده شرايطو کې خپله دنده په ډيره ښه توګه ترسره کړه،د نوموړي په هڅو په شمالي کې ددښمن ډير قومندانان او افراد په سوله ييزه توګه له جګړې لاس په سر شول او له اسلامي امارت سره يوځای شول، زما په ياد دي چې د مخالفينو يو مشهور قومندان چې آصف نوميده د مولوي نسيم الله صاحب د دعوت په برکت نه يوازې د خپلو وسلوالو په ګډون له مخالفت څخه لاس په سر شو بلکې يو موټر مهمات او وسلې يي هم اسلامي امارت ته تسليم کړې .

د افغانستان د کار او ټولنيزو چارو د لوی رياست پخوانی رئيس مخدوم عبدالسلام سعادت صاحب د مولوي صاحب همدې صفت ته اشاره کوي او وايي: مولوي نسيم الله ته الله تعالی ډير جذاب شخصيت او حسنه اخلاق ورکړي و، د عوامو خلکو د جلب او د خلکو د زړونو د راخپلولو لپاره يو اغيزناک شخصيت و، د نوموړي په توسط ډير زيات طالبان او عام خلک د اسلامي امارت له صفوفو سره يوځای شول چې بيا يي د اسلامی نظام او جهاد په لاره کې لوی لوی خدمتونه وکړل.

کله چې په شمال کې د طالبانو جنګي خط له ګلبهار او جبل السراج څخه راپر شا شو او دکابل حدودو ته راورسيد دغه وخت نوموړي د شکردرې او ګلدرې په سيمو

کې جهادي مسؤليت په غاړه واخيست او د شراو فساد عناصرو په وړاندې يې پرلپسې مقاومت ته ادامه ورکوله.

نوموړي د کابل د شمال د بيلابيلو سيمو سربيره په غوربند او بادغيس ولايت په جنګي خطوطو کې هم جهادي دنده اجراء کړې ده .

**وفات يې**

مولوي نسيم الله صديقي د شکردرې په جنګي خط کې لـه دښـمن سره پـه جګـړه کې زخمي شو. د جګړې له سيمې د علاج لپاره انتقال شـو چـې الله تعـالی ورتـه شـفاء نصيب کړه،اما څه موده وروسته چې نوموړی په جهادي خدمت بوخت و ناڅاپه په يوه سخته ناروغي مبتلا شو،څرنګه چې د نوموړي علاج د هيواد په داخل کې ممکن نه و د علاج لپاره د پاکستان پيښور ته انتقال شـواو هلتـه پـه کـويټي شـفاخانه کـې بسـتر او عمليات شو. خو د مرض د سختوالي له املـه ډاکټرانـو مشـوره ورکـړه چـې دپاکسـتان کراچي ته انتقال شي،نوموړي له پيښور څخه کراچي ته د تګ په مهال په طياره کې پـه نيمه لاره خپل روح اصلي مالک ته وسپاره او د شهادت جام يي نوش جان کړ.

انا لله وانا اليه راجعون .

د مولوي صاحب جنازه کابل ته انتقال شوه د کابل په عيدګاه کـې يـې د اسـلامي امارت د لوړپوړو چـارواکو د رياسـت الـوزراء مرسـتيال مولـوی عبدالکبيرصـاحب او دفاع وزيرملا عبيدالله اخند په ګډون جنازه اداء شوه او بيا يي جسد د کابل په شهدای صالحين هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

**رسمي وظايف**

مولوی صاحب نسيم الله صديقي د اسلامي امارت په ليکو کې د خدمت په مهـال لاندې مسؤليتونه ترسره کړي:

- د تخار ولايت د طالبانو مسؤل
- د خوست ښار د امنيت مسؤل

- د پروان ولایت امنیه قومندان
- د پروان ولایت اداري رئیس
- د شکردرې په جنګي کرښه کې د یوه محاذ مسؤل
- د شپاړسمې فرقې قومندان
- د ۲۲ مې لواء قومندان
- د مولوي نسیم الله کورنۍ

د مولوي نسیم الله کورنۍ دده له والـدینو او څـو ورونـو او خوینـدو جـوړه وه، د مولوي صاحب مشر ورور چې قاري انعام الله نومیده او مولوی نسیم الله صدیقي څخـه وروسته دده ځایناستی وټاکل شو دامریکایانو دیرغل پـه لومړیـو شـپو کـې د خوسـت ولایت په متړه چینه سیمه کې د یرغلګرو په بمبار کې په شهادت ورسید، مولوي نسیم الله صاحب واده کړی د وفات تر وخته یي د واده دوه کاله وتـلي و، لـه نومـوړي څخـه کوم اولاد نه دی پاته شوی .

## د مولوی نسیم الله صدیقي د شخصیت په اړه

د افغانسـتان د کـار او ټـولنیزو چـارو د لـوی ریاسـت پخـوانی رئـیس مخـدوم عبدالسلام سعادت صاحب وایي:

زه د مولوي نسیم الله صاحب سره لومړی هغه مهال شناخته شوم چـې د طالبـانو خط په چهاراسیاب کې و. په لومړي ملاقات کې ما درک کړه چې نوموړي ته الله تعالی په ژور علمي استعداد سربیره، د اخلاص ،تقوی او دیانت شرف هـم ورپـه برخـه کـړی دی،نوموړی ډیر له خلوصه ډک او محبت کوونکی شخص و چې ټـول مجاهـدین تـرې ډیرې ښې خاطري لري .

نوموړي د خلکو په جلب او جذب او داسلامی امارت له لیکو سره په وصـل کولـو کې لوی لاس درلود،نه یوازې یي جهادي تجربه او همت درلـود بلکـې ښـه عـالم او پـه شخصي لحاظ متقی انسان و، د نوموړي له کورنۍ او نږدې ملګرو څخـه ډیـرو کسـانو

دفساد او وروسته دامريكايي اشغال په مقابل کې جهاد کې فعاله ونډه اخيستې ،ډيرې قربانۍ يي ورکړې دي او لا هم خدمتونه ترسره کوي.

د تخار ولايت پخوانی جهادي مسؤل او د مولوي نسيم الله صاحب نږدې ملګری مولوي محمد محسن هاشمي وايي :

مولوی نسيم الله واقعا د زهد،اخلاص،نيکواخلاقو، سخاوت او ميړانې نمونه وه،هغه د رفاقت او اخلاص يو ځانګړی خصلت درلود، هميشه به يي په شونډو موسکا خپره وه، په دې سربيره ورته الله تعالی ښه استعداد ورکړی و،او په تقرير کې يي ځانګړی تاثير پروت و.

نوموړی د خپل اخلاص له امله د اسلامي امارت د زعيم ملامحمد عمر مجاهد سره خورا نږدې تعلقات او حسنه روابط درلودل او په ده يې کامل اعتماد درلود نو ځکه يي ورته هميشه مهم مسؤليتونه سپارل، الله تعالی دې په نوموړي رحم وکړي او الله تعالی دې دده خدمتونه په خپل دربار کې قبول وګرځوي .

رحمه الله تعالی



## د شهید ملا یارمحمد اخند ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

شهید ملایار محمد اخند دافغانستان په جنوبي ولایاتو کې دروسانو په خلاف دجهاد دمهال له مهمو ځیرو څخه شمیرل کیږي، چې وروسته یې داسلامي امارت په قیام او واکمنۍ کې هم ستر رول لوبولی دی. که په دې حوزه کې دپخواني جهاد، دطالبانود تحریک او اسلامي واکمنۍ یادونه کیږي نودملایارمحمد اخند له یادونې پرته به نیمګړي وي، ځکه نوموړی هغه شخصیت و چې دکمونیستانو په خلاف د جهاد دمرحلې غوندې یې داسلامي امارت په قیام کې هم کلیدي رول درلود.

په دې لیکنه کې هڅه کوو چې دافغانستان دجهاد ددې وتلي شخصیت او قهرمان مجاهد په ژوند او کارنامو وغږیږو .

**پیدایښت او دژوند ابتدائي مراحل**

ملایارمحمد اخند دحاجي خان محمد زوی دنیازمحمد لمسی په ۲۱/۸/۱۹۵۹ میلادي نیټه چې د ۱۳۳۸ هـ ش کال د اسد میاشتې له ۲۹ سره سمون خوري دکندهار ولایت د دامان ولسوالۍ دمرغان کیچې په په سیمه کې دنیا ته راغلی. نوموړی په ختې پښتون - پوپلزی او په سیمه کې یې له یوې دینداري او مخورې کورنۍ سره تعلق درلود .

ملایارمحمد تنکی ځوان و چې دیني زده کړو ته یې مخه کړه، ابتدایي کتابونه یې په خپله سیمه دغه راز دکندهار ښار، ارغسان او نیش ولسوالیو په مختلفو کلیوالو مدرسو کې ولوستل. هغه مهال چې نوموړی دځوانۍ په درشل پل ایښی و، په افغانستان کې کمونیستانو کودتا وکړه، چې له همدې سره نوموړي خپل پاته ژوند دکمونیزم په خلاف جهاد ته وقف کړ .

## دكمونيزم او شوروي يرغل په خلاف دجهاد پيل

دزابل ولايت اوسيدونكى پخوانى مشر- مجاهد او دملايارمحمد اخند نږدې ملګرى ملا عبدالمنان وايي، چې دكندهار ولايت دارغسان ولسوالۍ په چغني غره كې دقومندان عبدالرازق اوحاجي ملا محمد ربا ني په مشرۍ مجاهدينو ستر جهادي مركز درلود. په لومړي ځل ملايارمحمد چې تقريبا شل كلن و، همدې مركز ته دځو نورو مجاهدينو سره يوځاى دجهاد لپاره راغى، له همدې مهاله نوموړي دكمونيستانو په خلاف جهاد پيل كړ او ورسره يې په فارغ وخت كې ددينى كتابونو لوست ته هم ادامه وركوله .

ملايارمحمدپه لومړي ځل دارغسان په ولسوالۍ دمجاهدينو په لوى تعرض كې برخه واخيستله او وروسته يې دكابل ـــ كندهار دلارې په اوږدو كې دكندهار او زابل مربوط په مختلفو ساحو كې جهادي عملياتو ته ادامه وركړه .

په دې وخت كې دهمدې سيمې دمجاهدينو زيات عملياتي تمركز دكندهار او كلات ترمابين په غزيدلي لاره و، او ډير ځله به يې دهمدې لارې په امتداد كې ددښمن په كتارونو بريدونه كول .

ملاعبدالمنان وايي په دې وخت كې مجاهدينو په مختلفو سيمو كې په دښمن بريدونه كول، دلويې لارې په اوږدو كې دشهرصفا او كلات ترمابين دغشي- ، خاران ، خوارزانه كوټې او په نورو سيمو كې مجاهدينو دښمن ته كمينونه نيول او هميشه كمونيستانو ته سخت تلفات اوښتل تردې چې دشهرصفا مربوط يوه سيمه له دې امله د ( سويو موټرو سيمه ) باندې ونومېده، چې مجاهدينو ددښمن خورا زيات موټر په كې وسوځول .

ملايارمحمد اخند په دې ټولو عملياتو كې ديوه مخكښ مجاهد په صفت برخوال و، نوموړى چې د ٧- RPG راكټ او توغنديو عيارولو مسلكي و، وروسته يې دطيارو

ضد ستېنگر میزایل په ویشتلو کې ډېر مهارت وموند او دکمونیستانو هوایي ځواک ته یې درانه تلفات واړول .

## د دښمن په لاس بندي کیدل

ملایارمحمد اخند دډاکټر نجیب دحکومت په لومړیو کې دشهرصفا او دامان ترمابین دپوټي په کلي کې دکمونیستي عسکرو لخوا ونیول شو او دکمونیزم زندان ته ولوېد. ددې بند په مهال کمونیستانو نومووړي ته په پښو د راځړولو په شمول خورا سختې شکنجې او تعذیبونه ورکړل او تریوه کال پورې په کندهار کې دکمونیستي حکومت په زندان کې و، تردې چې د حبیب اکا په نامه دارغسان ولسوالۍ یوه سپین ږیري او مخور په خپلو هڅو راخلاص کړ او په دې توگه یې دکمونیزم له پنجو نجات وموند اویوځل بیا جهادي صف ته ستون شو .

باید وویل شي چې ملایارمحمد اخند دطالبانو داسلامي تحریک په مهال هم یو ځل ددښمن په لاس بندي شو.کله چې د ۱۳۷۳ لمریز کال په حوت کې طالبانو دجنوب او جنوب لویدیځ لخوا په کابل برید وکړ، چهلستون ته نږدې د درې اړخیز جنگ په پایله کې یوشمیر مجاهدین محاصره شول، همدلته دڅو نورو طالبانو سره یوځای ملایارمحمد هم داحمدشاه مسعود لاس ته ولوید ، ملایارمحمد اخند ٦ میاشتې ۴ ورځې په جبل السراج کې بندي و،تردې چې ددلارام په خط کې داسمعیل خان او مسعود له کسانو سره دتبادلې په پایله کې راخلاص شو.

## د جهادي مسؤل په توگه

کله چې ملایارمحمد اخند دکمونیستانو له زندان څخه ازاد او جهادي صف ته ستون شو، دغه مهال دارغسان د جبهې عمومي مشر- قومندان عبدالرازق دمختلفو سیمو لپاره جهادي گروپونه تشکیل کړل، چې په دې لړ کې یې دکندهار ددامان ولسوالۍ دشیخزو په سیمه کې دمجاهدینو دځایي گروپ مشر- ملایارمحمد اخند وټاکه، په همدې سیمه کې په جهادي فعالیت سربیره وروسته نوموړي خپل فعالیتونه

نور هم وغځول او دکندهار په هوايي ډګر چې ددښمن ډيرې قواوې په کې وې عمليات يې پيل کړل. دهمدې عملياتو په لړ کې ملايارمحمد اخند په لومړي ځل ددښمن مېګ جنګي طياره رانسکوره کړه، ملاعبدالمنان چې ددې صحنې شاهد دی وايي ، ميدان تـه په نږدې سيمه کـې جنګـي الوتکـو پـه مجاهـدينو بمبـار کـاوو، مجاهـدينو ددښـمن دقومندې دمرکز مخابره کشف کړه، چې پيلوټانو ته يې ويل چـې ډيـر احتيـاط وکـړي ځکه کيدای شي دمجاهدينو لخوا وويشتل شي. خو يوه پيلوټ ځواب ورکړ چې دی له مجاهدينو نه ويريږي ، همدا طياره دبمبار لپاره په مجاهدينو راټيټه شوه او بمونه يـې وغورځول، خو بيرته دپورته کيدا په مهال ملايارمحمد اخند په ستينګر ميزايل په نښـه کړه او رانسکوره شوه. دعبدالاحد په نامه د طيارې پيلوټ چې مجاهدينو يې خبرې په مخابره کې اوريدلې وې، له يوبل ملګري سره ژوندی دمجاهدينو لاس ته ورغی .

تردې عملياتووروسته دکندهار مجاهدينو دريګ په سيمه کې ددښمن په پوسـتو باندې سرتاسري عمليات پيل کړل. ملايارمحمد اخنـد پـه دې عمليـاتو کـې هـم ديـوه مخکښ مجاهد په حيث برخوال و، چې په نتيجه کـې يـې دريـګ لـه سـيمې ددښـمن کمپله په بشپړ ډول ټوله شوه .

## د جبار او دوستم مليشو په خلاف جنګونو کې شرکت

د نجيب دحکومت په وروستيو کلونو کې د درست افغانستان غوندې په جنوبي ولاياتو کې هم جهادي عمليات دهرکله په نسبت تشديد شول او لـه اطـرافي سـيمو ددښمن کمپله ټوله شوه په دې وخت کې دزابل ولايت مرکز کـلات ښـار دمجاهـدينو ترمحاصرې لاندې راغی او دلويې لارې پرسر دمجاهدينو عمليـات دهرکلـه پـه نسـبت زيات شول .

دزابل او کندهار ولايت مجاهدينو په ګډه دزابل په مرکز کلات باندې بريد پيـل کړ،دهمدې لارې دخلاصولو او دکلات دمحاصرې دماتولو لپاره حکومت په جنوب کـې دسترې حکومتي مليشې مشر عبدالجبارقهرمان ته قومنده ورکړه چې کـلات تـه ځـان ورسوي. دجبار مليشه چې ددوستم دګلم جمي مليشې غوندې يـې پـه جنـوبي ولايـاتو

کې په سختو ظلمونو شهرت درلود او زرګونه يې جلبه مرتزقه ټوپکوال پـه کـې راغونـډ شوي وو، له کندهارڅخه يې دکلات په خوا پرمختګ پيل کړ، کله چې دجبار قـوه چـې سلګونه پوځي موټر او وسايط ورسره وو د شهر صـفا لـه سـيمې تېـره شـوه، مجاهـدينو دجلدک په سيمه کې بريد پـرې وکـړ او دوړانـدې تـګ مخـه يـې ونيولـه او دکنـدهار دمجاهـدينو يـوه مشرـ ملامحمـد ربـاني اخنددغـه وخـت دملايارمحمـد پـه مشرـۍ مجاهدينو ته وظيفه ورکړه چې د کنـدهار لـه دامـان سره نـږدې دشهرصـفا ولسـوالۍ دشيرعلي خان په سيمه کې په دښمن بريد وکړي او دسيمې ولکه په لاس کـې واخـلي، په دې توګه مجاهدينو په دې سيمه کې په دښمن بريد وکړ او د جبار مليشه يې کلات ته نارسيده د شهرصفا او کلات ترمنځ محاصره کړه .

ددې جنګ په مهـال چـې دزابـل او کنـدهار ولايـت ګڼـو مجاهـدينو او جهـادي ګروپونو په کې شرکت درلود، دشهرصفا او جلدک په سيمو کې له دښـمن سره سـخت جنګونه وشول، چې په نتيجه کې يې دجبارمليشه يو مخ ختمه شوه او يوازې مشرـ يـې په تيښته ځا ن خلاص کړ . له دې وروسته بيا دې حکومتي مليشې سرپورته نکړ، بلکـې ټول عسکر يې د کندهار او زابل ترمنځ دمجاهدينو پـه سـختو بريـدونو کـې لـه منځـه لاړل.

په دې پراخ جنګ کې دملايارمحمد مسؤليت دشهرصفا ولسوالۍ د شيرعلي خان په سيمه کې و، چې له دښمن سره يې سخت جنګونه وکړل. ددې جنګ پـه مهـال هـم دده ملګرو ددښمن يوه جنګي چورلکه رانسکوره کړه او بله يې هغه مهال روغه ونيولـه، کله چې دمجاهدينو دپرمختګ له امله پيلوټ خطا شو او دمجاهدينو په ساحه کې يـې ځرخکه کينوله چې مجاهدينو ورباندې حمله کړه او له درې تنه عملې سره يوځای يـې ونيوله .

ملاعبدالمنان وايي د مجاهدينو مشر قومنـدان عبـدالرازق غوښـتنه وکـړه، چـې نيول شوې ځرخکه دې په ارغسان کې دمجاهدينو مرکز ته راوسـتل شي. خـو دامهـال چې د دښمن ځرخکې هم ډيرې ګرځيدې او هرځای يې بمبارونه کول، ددې لپاره چـې

دمرکز مجاهدین دغه څرخکه وپیژني ملایارمحمد اخند خپله لنګوټه د نښې په توګه په څرخکه پورې وتړله ، او په دې ډول يې له شهرصفا څخه په ارغسان کې دمجاهدينو مرکز ته نقل کړه.

په همدې مني چې دجبار مليشه ختمه شوه، په ورپسې ژمي دجنرال دوستم ګلم جم مليشې په همدې لار دتيريدلو هڅه وکړه. په دې جګړه کې مجاهدينو ددوستم مليشې ته سخت تلفات واړول ، خو څرنګه چې ديخ موسم و او دمجاهدينو شمير کم و، نوځکه دوستم وتوانيد چې يو شمير عسکر يې دمجاهدينو له بريدونو روغ ووځي، ددوستم په خلاف دجنګ په مهال ملايارمحمد اخند د شهرصفا ولسوالۍ د کوټيزو په سيمه کې ددښمن په خلاف جنګيده .

## دکندهار ښار په شاوخوا کې جهادي فعاليت

دجبار او دوستم مليشو له شکست وروسته په اکثره اطرافي سيمو دمجاهدينو ولکه راغله او ددښمن شتون يوازې دکندهار ترمرکز پورې راغونډ شو . دغه مهال ددښمن اکمالات هم ټول دهوا له لارې کيدل او دمجاهدينو په خلاف ددښمن يوازيني مؤثر عمليات هم دجنګي الوتکو او چورلکو بمبار و، نوځکه مجاهدينو په کندهار کې ددښمن دهوايي ځواک ځپلو ته توجه زيات کړه. دغه مهال مجاهدينو ددښمن دجنګي طيارو او هوايي ډګر دويشتلو لپاره يو ځانګړې ډلګۍ وټاکله چې مشري يې دملايارمحمد اخند په غاړه وه، دوی که له يوې خوا په هوايي ډګر او ورسره نږدې (بري غونډ ) باندې تهاجمي عمليات کول له بلې خوايې په دوامدار ډول هوايي ډګر دتوغندويو تربريد لاندې ساته .

ددې عملياتو په مهال به ملايارمحمد اخند دنورو ملګرو مجاهدينو په مرسته له ۱۰ تر ۲۰ ميزايل په مسلکي ډول عيارول او بيا به يې شارت ورکاوو او په دې توګه به يې په ميدان کې ناستې څرخکې او جنګي طيارې په نښه کولې. داسې ويل کيږي چې دافغانستان په جنوب کې دکمونيست رژيم جنګي هوايي ځواک چې د کليوالو سيمو د بمبار او ولسي قتل عامونو عامل بلل کيده تر ډيره په دې طريقه له پښو ولويد او

لسگونه جنگي طیارې او څرخکې یې په ځمکه ناستې له منځه یووړل شوې چې پـه دي کې د شهید ملا یار محمد اخند رو ل تر هر چا زیا ت و .

دکندهار ښار په شاوخوا کې ملايارمحمد اخند دمحله جات په سیمه کـې یوځـل په اوږه باندې ولگېد، چې له معالجې وروسته یې ټپونه روغ شول .

## په کندهار کې دکمونیستانو او غدارانو مشترکه دسیسه

کله چې جهاد دبریالیتوب پړاو ته ورسید او دنجیب کمونیست حکومت دنړیدو په درشل ولاړ و، داځل کمونیستانو یوځل بیا هڅه وکړه، چې دخپل شیطانت په کارولو اویوشمیر محلي غدارانو له جفا نه په استفاده واک ته دربښتیني مجاهـدینو درسـیدلو مخه ونیسي .

دا مهال په کندهار کې یوه ډله هغـه مجاهـدین وو، چـې پـه رښـتیني معنـا یـې قربانۍ ورکـړې وې ، جهـاد یـې کـړی و او ډیـر مشـقات یـې گـالللي وو. پـه دوی کـې دکندهار په سطحه قومندان عبـدالرازق ، ملامحمـد ربـاني، مـلا محمـدعمر مجاهـد، ملامحمــد صــادق،معلم فدامحمد،ملامحمــد شــیرین، شــهید ملايارمحمــد، شــهید ملابورجان، شهید ملامحمد او داسـې نـور گـڼ شـمیر د کمـونیزم ضـد جهـاد دمهـال نومیالي مجاهدین وو .

خو له دوی سره په څنگ کې د مجاهدینو دقومي شورا په نامه یوه بله ډله هم وه، چې زیاتره شعاري مجاهدین او هغه کسان په کـې راټـول وو چـې لـه جهـاد څخـه یـې دقدرت او دنیوي اعتبار دلاسته راوړلو لپاره استفاده کوله. په دوی کې مطـرح کسـان گل اغاشیرزی، خـان محمدمجاهـد، اسـتاد عبـدالحلیم، امیرلالـی، فضـل الـدین اغـا، حامداغا او ځیني نور کسان وو، چې دکمونیزم په خلاف په عملي جهاد کـې یـې کومـه دپامور ونډه نه درلوده، خو دجهاد په نامه دمرستو او وسلو پـه پیـدا کولـو ډلبـازۍ او قوم پرستۍ باندې ښه غښتلي وو، چې زیاتره ورسره بې جلبه ټوپکـوال رایوځـای شـوي وو .

هغه مهال چې کندهار لا د کمونيستانو په لاس کې و، دې قومندانانو له حکومت سره پټې اړيکي درلودې او حتی داسې ويل کيدل، چې دحکومت له استخباراتو ( خاد) سره يې روزمره ليدل کتل کول او دغه مهال دوی کمونيستانو ته ددښمن په سترگه نـه کتل .

کله چې کمونيستي رژيم په دې پوه شو چې نور په کندهار کې واک ته ادامه نـه شي ورکولای ، نو يې دکندهار والي جنرال اکرم ته دنده ورکـړه، ترڅـو واک پـه داسـې شکل پريږدي، چې رښتيني مجاهدين هغه چې دکمونيزم ملا يې ماته کړې وه، واک ته ونه رسيږي. په دې توگه جـنرال اکـرم پـه پټـه دقـومي شـورا لـه شـاملو مجاهـد نمـا قومندانانو سره خبرې اترې پيل کړې او ناڅاپه يې دکندهار ټوله اداره همدې تـش پـه نامه جهادي قومندانانو ته وسپارله .

چې همدې يادو شويو دقومي شـورا قومنـدانانو دکنـدهار ولايتـي ادارې ترخپـل منځ سره تقسيم کړې، چا هوايي ډگر ونيو، چا ولايت قبضه کړ اوڅوک په قومندانۍ يا قول اردو ننوتل. په دې توگه دکندهار رښتيني مجاهدين او جهادي مشران ټول له ښار څخه بهر په جهادي جبهاتو کـې پاتـه شـول، ملايارمحمـد اخنـد چـې دغـه مهـال يـې دکندهار هوايي ډگر ته څيرمه دبري غونډ له کمونيستانونيولی و، په همدې غونډ کـې يې خپل مجاهدين ځای په ځای کړل.

له همدې ورځې دکندهار په ښار او شـاوخوا کـې دتـاريخي بـې نظمـۍ او هـرج ومرج دوران پيل شو. واکمنو قومندانانو چې پخوايي ځانونه مجاهدين او دقومي شورا غړي بلل، په خپل منځ کې يې جگړې پيـل کـړې. نـه يـوازې جگـړې بلکـې داولـس پـه وړاندې يې هم سخت ظالمانه چلند پيل کړ . غلا ، قطـاع الطريقـي ، فسـاد او هـرډول مظالمو ته يې لاس واچاوو او بې سابقې فساد يې رامنځ ته کړ ، چې بالاخره ددوی همدا فساد او د مجاهد اولس بدې ورځې دکندهار ښتيني او پاک مجاهدين پـه دې مجبـور کړل، چې دغه بې جلبه ټوپکيان له سيمې وشـړي او اولـس دسـولې او عـزت ژونـد تـه ستون کړي .

## په اسلامي تحریک کې شرکت

کله چې په کندهار کې دملامحمدعمر مجاهد په مشرۍ دطالبانو اسلامي خوځښت پیل شو، دغه مهال ملایارمحمد اخند دکندهار هوایي ډګر ته څیرمه په بري غونډ سیمه کې له خپلو مجاهدینوسره و. هغه مهال چې تحریک ډنډ ولسوالۍ ته راورسید نوموړي دوړاندیني شناخت او تعلق له مخې دتحریک له مشرانو ملامحمد عمر مجاهد او ملاعبدالغني برادر سره ولیدل. په دې مجلس کې چې ملامحمدرباني او ملاعبدالمنان هم حاضر و، ملایارمحمد اخوند له خپلو ټولو مجاهدینو او امکاناتو سره یوځای له اسلامي تحریک سره وصل شو، چې تردې وروسته بیا دعمر ترپایه داسلامي تحریک په بیلابیلو نظامي او ملکي بخشونو کې په خدمت بوخت پاته شو، ترڅو یې چې په همدې لاره کې دشهادت جام هم نوش کړ .

دکندهار له فتحې وروسته ملایارمحمد اخند دطالبانو په هغه لښکر کې جهادي خدمت سرته رساوو، چې زابل ، غزني، وردګو او لوګر ولایاتو ته ورسید. نوموړی په کابل دلومړني بریدپه مهال داحمدشاه مسعود له خوا ونیول شو او کله چې راخلاص شو بیا یې جهادي دندې ته ادامه ورکړه . کله چې دهرات ولایت دطالبانو لخوا ونیول شو، نوموړی دهرات دوالي په حیث وټاکل شو .

هغه مهال دهرات ولایت وضعیت خورا کړکیچن و. دتورن اسمعیل خان کسان چې په هرات ښار او شاوخوا کې یې پراخ نفوذ درلوده او له بلې خوا ددښمن تبلیغات هم روان وو، همیشه به یې دبرید او بغاوت هڅه کوله . دشپې مهال به یې دښار په مختلفو سیمو کې ډزې پیل کړې او هڅه به یې کوله چې مجاهدین وارخطا او دهرات پریښودو ته اړ باسي. مګر ملایارمحمد اخند په ډیر شجاعت او استقامت له دې حالاتو سره مقابله وکړه، ددښمن هیڅ فشار ته تسلیم نه شو او نه یې په ګواښونو پروا وکړه، تردې چې وروسته دهرات وضعیت کرارکرار نورمال شو او ددښمن تحرکات ختم شول .

په هرات ولايت کې ددندې په مهال ملايارمحمد اخند خورا ډېر عمراني کارونه ترسره کړل. دهرات ولايت په تاريخي جامع مسجد يې ډېر کار وکړ دغه راز يې ګڼې نورې تاريخي او حکومتي ودانۍ ، جوماتونه، مدرسې او عام المنفعه ودانۍ جوړې او ترميم کړې او دولايت په مقام کې يې نوی جامع مسجد جوړ کړ .

په هرات کې له دندې وروسته نوموړی دغزني ولايت والي وټاکل شو، چې هلته يې هم د پام وړ عمراني خدمات سرته ورسول. په غزني کې دوظيفې په مهال دنوموړي ډېر تعلق دغزني په شلګر کې له تاريخي مدرسې نورالمدارس فاروقيې سره و. هميشه به دې مدرسې ته ورتلو، په طالبانو به يې احوال اخيست، مرسته يې ورسره کوله او ځانګړې مينه يې ورسره درلوده .

ملايارمحمد اخند که څه هم دجهادي ژوند له امله خپله تعليمي سلسله ترې نيمګړې پاته شوې وه، خو دعمر ترپايه يې له ديني علم ، علماء او مدارسو سره ځانګړې مينه درلوده دزابل د شهرصفا اوسيدونکی ملاعبدالمنان اخند چې دملايار محمد اخند سره ډېر وخت ملګری پاته شوی وايي، چې ملايارمحمد اخند څو بارز صفات درلودل.

جواد سړی و او په مجاهدينو او اړو کسانو يې په ډېر سخاوت پيسې تقسيمولې، هيڅ قومي يا دانډيوالۍ تعصب يې نه درلود او که به يې له چاسره جنجال وکړ هم، عقده يې نه درلوده، بلکې لږ شيبه وروسته به بيرته داسې و لکه هيڅ چې نه وي پېښ. په جهاد کې غيرتي او بااستقامته و، تقودار او پاک نفسه وو، په ځان ښه حاکم و، او له بداخلاقۍ نه يې ډېره کرکه کوله .

## شهادت يې

هغه وخت چې ملايارمحمد اخند په غزني کې والي و، دغزني ښار په شمال کې دخواجه عمري په ولسوالۍ کې دحزب وحدت کسانو بريد وکړ. ملايارمحمد اخند په خپله دجګړې ډګر ته لاړ چې همدلته دخواجه عمري ولسوالۍ دقياق درې په سيمه

کې دحزب وحدت له کسانوسره دجګړې په مهال په ۱۸/۵/۱۴۱۹ هـ ق نيټه دغرمې په ۱۲ نيمې بجې د ثقيل ماشيندار په مرمۍ ولګېـد اود ۳۹ کلنـۍ پـه عمـر پـه شـهادت ورسېد.

دنوموړي جنازه کندهار ته انتقال شوه او دکندهار ښار دشـهيدانو پـه مشـهوره هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

له ملايارمحمد اخند څخـه شـپږ اولادونـه پاتـه دي، دنومـوړي ورونـه اوجهـادي ملګري اوس هم دنوموړي په لاره روان او دنوي امريکايي يرغل په مقابل کې په جهادي خوځښت کې دپام وړ رول لري .

انا لله وانا اليه راجعون



# د شهید ملامحمدنعیم نافذ ژوند ته کتنه

لیکنه: قاري سعید

## نوموړکي اتلان

داسلامي مبارزوبهیر اساسا دهغو گمنامو اتلانو دکارنامو او جانبازیو مرهون دی چې موږ یې له نومونو، ژوندلیکونو او څیرو سره آشنا نه یو. دا یو حقیقت دی چې دتاریخ پاڼې ترډیره دمشهورو او سرکرده اشخاصو په تذکرو راځرخي او هغه گمنام اتلان یې په هر دور کې هیر کړي دي چې دانقلابونو په راوستلو، کارنامو جوړولو او حماسو زیږولو کې یې لومړی لاس او مباشر رول درلودلی وي .

داسلامي تاریخ دغه اتلان که څه هم په دنیایي لحاظ نوموړکي او ناپیژندویه بلل کیږي ، مگر باور دادی چې دآخرت برخه به ددوی درنه وي. ځکه دوی دالله تعالی حضورته دخپل سوچه عبادت او خدمت پانگه وروړې چې دهیڅ ډول شهرت ، ریاء او ځانښودنې شائبه په کې نه شته . دغه راز رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم داسلام د لارې دغه ډول نا پیژندویه، گمنام او بې تقاضا سپاهیان د بشارت وړ بللي او د هغوی د مقام ستاینه یې کړې. په حدیث شریف کې راځي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي: طوبى لعبدٍ آخذ بعنان فرسه في سبيل الله، أشعث رأسه، مغبرة قدماه، إن كان في الحراسة كان في الحراسة، وإن كان في الساقة كان في الساقة، إن استأذن لم يؤذن له، وإن شفع لم يشفع ) رواه البخاري

بشارت او خوښي ده د هغه بنده لپاره چې د جهاد په لاره کې یې د خپل آس ملونې نیولې وي. ببر سر، سپیرې پښې او دا باک نه کوي چې که په پیره ودرول شي په پیره ولاړ وي او که د لښکر وروستۍ برخې ته واستول شي همالته خدمت کوي، دومره

گمنام او نا پيژندويه وي چې كه اجازه وغواړي اجازه نه ورکول کيږي او که د چا سپارش وکړي سپارش يې نه قبليږي.

په افغانستان کې داسلامي امارت قيام په معاصره اسلامي نړۍ کې يوه لويه پيښه وه ، په لومړي ځل له لسيزو وروسته دالله تعالی په ځمکه په صحيح معنی ديوه سوچه اسلامي نظام دنفاذ غږ پورته شو، ددې ارمان دترسره کولو په لاره کې ډيرو متعهدو ځوانانو خپلې وينې نذرانه کړې ، هغوی چې خپل پور يې اداء کړ، دحق دمعركې ميدان ته راغلل او لاړل ، داممكنه نه ده چې ددوی ټولو سوانح راغونډ او تدوين شي ، خو په دې بايد اعتراف ولرو ، چې همدغه دحق دسنګر ګمنام شهيدان هر يو ددې حق لري، چې امت يي يادونه په سينو کې ژوندي وساتي. ځکه همدوی دي چې خپلې وينې يې داسلام ډيوې ته ورکړې دي، خو په مقابل کې يې هيڅ دنياوي خونبها ونه غوښته .

راځئ دهمدې قافلې ديوه بل لاروي شهيدملامحمدنعيم نافذ په ژوند او ژوند پيښو سره وغږيږو .

**شهيد ملامحمدنعيم نافذ**

محمد نعيم نافذ د حاجي گل محمد زوی دمرحوم سعيدجان لمسی په قوم پښتون /ميرانۍ په ۱۹۷۲ ميلادي کال کې د روزګان ولايت دخاص روزګان ولسوالۍ په شيره نومي علاقه کې په يوه ديندارە کورنۍ کې دنيا ته راغی.

نوموړي خپل دکوچنيتوب عمر په خپل کلي کې تير کړ، دکلي دمسجد له ملاامام څخه يې لومړنۍ الفباء ولوسته اووروسته دروزګان ولايت دمركز ترين کوټ چرمستان سيمې ته لاړ او هلته يې په ديني مدرسه کې داخله واخيسته .

په همدې سيمه کې يې يوکال درس ووايه او وروسته دزابل ولايت د دايچوپان ولسوالۍ هزاربوز سيمې ته لاړ چې هلته يې په يوه کليواله مدرسه کې ديني زده کړو ته دوام ورکړ. په دې مهال چې په افغانستان روسي يرغلګرو بريد کړی و او په مقابل

کې يې مسلح جهاد شروع و، ددوی کورنۍ لـه روزګـان څخـه دپاکسـتان دبلوچسـتان مسلم باغ سيمې ته هجرت وکړ او هلته يې دمهاجرو په يوه کيمپ کې دهجـرت ژونـد پيل کړ .

محمدنعيم نافذ چې دغه مهال نوی ځوان و، دپاکستان دبلوچسـتان پـه مختلفـو مدارسو کې يې خپلو ديني زده کړو ته دوام ورکړ. له دې جملې په مسلم بـاغ، کويټـه، سرخاب، ميزۍ اډه او نورو سيمو کې يې لـه مشـهورو اسـتادانو څخـه دينـي کتابونـه ولوستل ترڅو چې دفنونـو کتابونـه يـې خـلاص کـړل او د وړې دورې تردرجـې پـورې ورسيد .

د کمونيستانو په خلاف دجهاد په وروستيو کلونو کې نوموړي په لومړي ځـل پـه جهادي عملياتو کې برخه واخيسته، چې دغه وخت دروزګان ولايت دمشـهور جهـادي قومندان ملامحمد شفيق اخند په جبهاتو کې يي جهادي خدمت ترسره کړ .

## دطالبانو په اسلامي تحريک کې شموليت او خدمت

دطالبانو داسلامي پاڅون دپيل په مهال، هغه وخت چـې دطالبـانو لخـوا بولـدک نيول شوی و، ملامحمد نعيم نافذ په اسلامي تحريک کې شامل شو. دکندهار له فتحې وروسته چې کله دنورو ولاياتو په خوا تشکيلات کيدل ملامحمدنعيم پـه هغـه تشـکيل کې و چې دروزګان ولايت په خوا وليږل شـو. پـه روزګـان ولايـت کـې زيـاتره پخـواني جهادي قومندانانو دطالبانو داعيې ته لبيـک ووايـه او لـه اسـلامي تحريـک سره وصـل شول، خـو يـوازې د محمـدنبي، معلـم عبـدالخالق او اخترمحمـد پـه نومونـودرى تنـو قومندانانو مقاومت وکړ. له دوی سره دروزګان دمرکز ترين کـوټ پـه مربوطـاتو کـې جګړه وشوه، چې ملامحمدنعيم پـه کـې ديـوه ګـروپ مشر۔ پـه حيـث برخـه درلـوده. دروزګان له فتحې وروسته ملامحمدنعيم داسلامي تحريک دمشرانو لخـوا د دهـراوود ولسوالۍ دامنيه قومندان په حيث وټاکل شو.

کله چې دطالبانو تحریک دغزني او کابل په خواپرمختګ وکړ ملامحمد نعیم هم ددې لښکر ملګری وو، چې دغزني، میدان وردګ او لوګر په جګړو کې یې برخه درلوده، ترڅو دکابل دچهاراسیاب ښارګوټی او دکابل ښار یو شمیر جنوبي سیمې دطالبانو لاس ته ورغلې ، نوموړي ته په دې مهال دریشخورو دفرقې مسؤلیت وسپارل شو او په همدې سیمه کې له خپلو جهادي ملګرو سره اوسیدو .

په همدې سیمه کې یوه ورځ چې له ملګرو سره په جهادي دفاعي خط باندې ګرځیده، ددښمن دهاوان مرمۍ دلګېدو له امله سخت ټپي شو، چې دعلاج لپاره دجګړې له سیمې انتقال شو .

له علاج وروسته نوموړی بیرته جهادي صف ته حاضر شو، دغه وخت طالبانو هرات نیولی و او دبادغیس په مربوطاتو کې جګړه روانه وه، نوموړی دامیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد په فرمان دبادغیس دفاعي کرښې ته ولیږل شو او د کمربند مسؤلیت ورسپارل شو .

په بادغیس کې له څه وخت تیرولو وروسته چهاراسیاب ته راغی او همدلته ترهغه وخته په جهادي صف کې پاته شو، ترڅو طالبانو کابل فتحه کړ. دکابل د فتحې په مهال چې طالبان دمیدان ښار، چهاراسیاب او پل چرخي له لورې په کابل ورننوتل، نوموړی دچهاراسیاب په دفاعي خط کې و، چې د دری طرفه جګړې په نتیجه کې ددښمن دفاعي کمربندونه مات شول او طالبان فاتحانه کابل ته ننوتل .

## د کابل په شمال کې جهادي خدمت

دملامحمد نعیم نږدې ملګری او همسنګر ملاعبدالحنان وایي چې دکابل له نیولو وروسته نوموړی د کابل دشمال شکردرې په سیمه کې مسؤل وټاکل شو. له هغه وروسته څه موده دکاپیسا ولایت ته لاړ او بیا دبګرام په دفاعي خط کې په خدمت بوخت و .

ملاعبدالحنان وايي هغه وخت چې دمسعود له خوا دکابل دبيانيولو عمليات پيل شوي وو او طالبانو د بگرام په استقامت دکاريزمير ترسيمې پورې عقب نشيني کړې وه، بلې خواته په شکردره باندې هم سخت عمليات روان وو ، په همدې وخت کې چې حالات ډير حساس و، دافغانستان ددفاع وزير ملاعبيدالله اخند دجگړې کرښې ته راغی، او ملامحمد نعيم نافذ ته يې وويل چې دشکردرې خط ته لاړ شي، نوموړی له خپلو ملگرو سره دشکردرې خط ته لاړ چې هلته له څو ورځو جگړو وروسته ددښمن پرمختگ په ټپه ودرېد. له دې وروسته نوموړی په شکردره کې دقطعې مسؤل وټاکل شو او ترډيره وخته يې په همدې سيمه کې خدمت ترسره کړ، نوموړي د شمالي تقريباپه ټولو عملياتو کې برخه درلوده .

هغه وخت چې ملامحمد نعيم په شمالي او کندز کې جهادي دنده ترسره کوله، دگرديز ددريم نمبر قول اردو دقومندان په حيث مسؤليت يي هم درلود، خو څرنگه چې نوموړی هميشه په جنگي کرښو کې وو په قول اردو کې يې دنده په نيابت شهيد ملاعبدالمنان اوبيا شهيد ملاپای محمد ترسره کوله .

## کندز ته اوښتل

د ۱۹۹۷ ميلادی کال په می مياشت کې دافغانستان په شمال کې ستر تحولات رامنځته شول. په همدې مياشت کې دشمال يو مشهور قومندان جنرال مالک له طالبانو سره ملگری شو، دنوموړي سره په گډه طالبانو دمزارشريف په گډون شمالي ولايات ترکنترول لاندې راوستل. دغه راز دطالبانو بل لښکر د پروان څخه دسالنگ تونل په لاره بغلان ته ووت او پلخمری ښارگوټی يي ونيو، خو کله چې جنرال مالک له طالبانو سره غدر وکړ او دمزار شريف په شمول شمالي ولايات يي بيرته ونيول په پروان کې مسعود بريد وکړ سالنگ ، جبل السراج او چاريکار يي ونيول چې په دې توگه دطالبانو زرگونه مجاهدين په بغلان کې کلابند پاته شول ، طالبانو د نجات ديوازينۍ لارې په توگه په کندز بريد وکړ او دسيمه ايزو قومندانانو په مرسته يي

کندز ښارګوټی ونیو چې په دې توګه یې دکنـدز دهـوایي ډګـر لـه لارې لـه کابـل سره دهوایي تګ راتګ لار ومونده .

طالبان چې دکندز په مرکز کې په ډېره محدوده ساحه کې محـاصره وه ، او هـره شیبه د تخار ، بغلان او سمنګانو له اړخـه دمخـالفینو تربریـدونو لانـدې وو، پـه ډېـرو سختو شرایطو کې یې شپې ورځې تیرولې. هیڅا داتمه نه درلـوده چـې لـه دې سـختې محاصرې به روغ وځي همدا سخت حالات ددې باعث وو چې دکندز جهادي صف تـه هیڅا دتللو زړه نه کاوو. په همـدې مهـال ملامحمـدنعیم نافـذ چـې دکابـل پـه شـمال شکردره کې یې جهادي دنده تـرسره کولـه د اسـلامي امـارت د زعـیم ملامحمـد عمـر مجاهد لخوا مأمور شو، ترڅو دجهادي خدمت لپاره کندز ته لاړ شي، نوموړي پـه پـوره اطاعت دخپل امیر امر ته لبیک ووایه او دغه سخت مسؤلیت یې قبول کړ .

ملا عبدالحنان وایي ، شهید ملامحمد نعیم خپل ملګري په کابل کې راغونډ کړل او ورته ویې ویل چې ماته ویل شوي دي چې کندز ته واوړم، په تاسو کـې کـه هرڅـوک تیار وي او له ماسره په خوښه ځي زه وربانديې خوشاله کیږم اما زما لخـوا اجبـار نشـته چې خامخا راسره لاړ شئ، په دې مهـال یـوازې ۱۱ تنـه تیـار شـول چـې لـه ده سره دې سخت سفر ته تیار شي. ملا محمد نعـیم لـه همـدې ۱۱ تنـو ملګـرو سره د طیـارې پـه توسط کندز ته لاړ، چې وروسته کله چې دکندز دجبهاتو مشرـ شـهیدملادادالله اخنـد کابل ته لاړ ملامحمد نعیم په کندز کې دعمومي جهادي مشر په صفت پاته شو .

دافغانستان دتعلیم او تربیې پخوانی وزیر ملاامیرخان متقي چې هغه مهـال یـې په کندز کې دطالبانو په جهادي لیکو کې خدمت کاوو، وایي چې ملامحمد نعیم خورا منتظم او په حربي چارو پوهیدونکی سړی و. دکندز دمحاصرې پـه مهـال داحمدشـاه مسعود ټول کوشش دا و چې په کندز کې طالبان له منځه یوسي، ځکـه پـه کنـدز کـې دطالبانو شتون نوموړی په کابل باندې لـه سرتـاسري بریـد څخـه منعـه کـاوو او ډیـر ځواکونه یې په کندز کې بوخت وو. دهمدې لپاره مسعود او ملګري یې هردم په هڅـه کې وو چې په طالبانو دمحـاصرې کـړۍ تنګـه کـړي، خـو ملامحمـد نعـیم نافـذ چـې

پرلپسې يې مقاومت او تعرضونو ته دوام ورکاوو نه يوازې پـه شـا نـه شـو بلکـې اضـافه ډيرې سيمې يې فتحه کړې او هميشـه دپرمختـگ پـه حـال کـې وو چـې پـه دې توگـه دمحاصرې ساحه ازاديدله .

ملااميرخان متقي وايي ، ملامحمد نعيم دمخابراتي ارتبـاط خـورا ښـه او بريـالی نظام جوړ کړی و، چې هميشه فعال وو ، ملامحمد نعيم فعال او متحرک سړی و، چـې اکثره وخت يې ۱۸ تر ۲۰ ساعته پوري کار کاوو ، هميشه به په جنگي کرښو گرځيـده ، او ددښمن دبريدونو ځواب ته اماده و .

ملا عبدالحنان چې په کنـدز کـې يـې لـه ملامحمـد نعـيم سره جهـادي ملگرتيـا درلوده، وايي چې په کندز کې دجهادي مسؤليت په مهال دملامحمد نعيم په مشرۍ دتخار اشکمش ، دبغلان بورکه او نورې گڼې سيمې فتحـه شـوې او مجاهـدينو سـترې برياوې ترلاسه کړې .

**شهادت يې**

په کندز کې له اوږده مسؤليت ترسره کولو وروسته نوموړي تـه پـه ۱۹۹۹ م کـال کې يوځل بيا دکابل په شمال کې جهادي مسؤليت وسپارل شو. داځـل چـې مخـالفينو دکاپيسا په مربوطاتو کې عمليات پيل کړي وو نوموړي هڅه کوله، دتگـاب او نجـراب ترمنځ سيمه کې دمخالفينو په پوستو متقابل بريـد وکـړي .مخـالفينو چـې سـيمه پـه ځمکنيو ماينونو پوښلې وه، ملامحمدنعيم له خپلو ملگرو سره يوځای هڅه کوله د لارې په تصفيې سره مخ په وړاندې دتللو لاره خلاصه کړي، په همدې مهال چې مـاين پاکـان دلارې په خلاصولو بوخت وو او دی له خپلو ملگـرو سره دسرک پـه غـاړه انتظـار وو، د دوه ميلې يو موټر په ماين وخوت چې په درانه انفجار کې ملامحمدنعيم اخند هـم پـه پرخچو سخت ولگيد او ځای په ځای په شهادت ورسيد .

انالله وانا اليه راجعون

ملامحمد نعیم نافذ چې دشهادت په مهال ۲۷ کلن وو جسد یې د روزګان ولایت دمرکز مربوط په چرمستان سیمه کې خاورو ته وسپارل شو .

ملامحمد نعیم نافذ چې ډېر عمر یې په دیني تعلیم او جهاد کې تیر کړی و نږدې ملګري یي وایي چې په دې دواړو ډګرونو کې دښه استعداد خاوند و، چې په علمي پانګه سربیره یې ښه شجاعت او تدبیر هم درلود .

ملاامیرخان متقي چې شهید ملامحمد نعیم یې له نږدې پیژاند وایي: نوموړی د حسنه اخلاقو څښتن اودمشرانوقدرپیژندونکی شخص و بهترینه خاکساري یې درلوده اوله تکبره دومره لیري و چي یوه ورځ دتخارولایت د بنګي په سیمه کې له دښمن سره سخت جنګ روان و چي په دي وخت کې شهید ملا محمد نعیم نافذ هم دجګړي ډګرته راورسید دده په راتلو سره په مخابرو کې ناري شوي چي نا فذ را غی ددښمن خواته هم په مخابرو کې همدا اوازه خپره شوه چې ورسره دښمن دتیښتي لاره خپله کړه او میدان یې پري ښود شهید نافذ چي دا هرڅه په غوږونو اوریدل او په سترګویې لیدل نو بي اختیاره یې په سترګو کې او ښکې را غلي او ویې ویل چي زه څوک یم زه خو دیوه غریب سړي زوی یم ، مګر داچې دحق صف ملګری یم الله تعالی دهمدې حقانیت له برکته په دښمن داسې رعب ګډ کړ .

ملا ولي جان چې دملامحمد نعیم نافذ کشر ورور دی ، وایي چې ملامحمد نعیم له بیت المال سره خورا ډېر احتیاط کاوو ، او دبیت المال هیڅ پیسه یي پرته له اجازې په کور کې نه مصرف کوله.

ملا ولي جان وایي هغه مهال زموږ ژوند دغربت ژوند و، یو وخت مې ملا محمد نعیم ته د کمزوري اقتصادي حالت شکایت وکړ . ده راته وویل له ماسره دبیت المال خورا زیاتي پیسې دي ، چې په شخصي ضروریاتو یې مصرفولای شم ، خو زه له الله تعالی څخه ویریږم. که زما منې همدا دفقر ژوند ښه دی، دغه پیسې که بې له اجازې څخه په شخصي ډول مصرف کړو نو دقیامت په ورځ به زموږ لپاره سور اور وي. ملا ولي جان وایي نوموړی به چې کورته راتلو نو دامارت دمشرتابه لخوا ورته د کور

دمصارفو لپاره ځانګړې پیسې ورکول کیدلې چې ده یوازې هغه ماته راکولې او ویل به یې چې دغه د کور دمصارفو لپاره راکړل شوي دي، دبیت المال له نورو پیسو سره یې ډېر احتیاط کاوو .

د ملامحمد نعیم نافذ ترشهادت وروسته دنوموړي نږدې جهادي ملګری ملاعبدالرزاق دده په ځای وټاکل شو، چې وروسته هغه هم دنافذ په نامه خورا مشهور شو او سترې کارنامې یې ترسره کړې ،ملاعبدالرزاق نافذ په روزګان ولایت کې دامریکایي یرغل په وړاندې جهاد پیل کړ او په همدې لاره کې د شهادت تر منزله ورسېد خو ملګري او همسنګران یې تراوسه د امریکایي اشغال په وړاندې په برحقه مسلحانه مبارزه بوخت دي.

پای



# د شهید مولوي محمد سرور حق پرست ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه: قاري سعید

د اسلام تاریخ د حق د پیروانو له زړه وړونکو خاطراتو او یادونو څخه مالامال دی.اسلامي امت د تاریخ په هره مرحله کې داسې زلمیان په خپله غیږ کې روزلي چې د خپل دین او معتقداتو لپاره له هر څه تیر شوي. خپل د ځوانۍ عمر،دنیوې هیلې او امیدونه،عیشونه او عشرتونه، خپلوان او پلرنی وطن او ټول هغه څه چې په دنیا کې زړه پورې تړاو مومي دا ټول څه یې یواز ې د رب تعالی د رضا موندلو او سپیڅلي دیني ارمان لپاره قربان کړي او په همدې لاره کې یې د د غربت او پردیسۍ په عالم کې د شهادت جامونه غړپ کړي دي.

که موږ د اسلامي نړۍ په ساره او اوږده کې،له ترکستان او کابل څخه ، بیا تر اندلس او قسطنطنیې پورې د صحابه کرامو مقابر وینو او د هغوی د هدیرو شاهدان یو،نو دا حقیقت په لاس راکوي چې د اسلام لومړنیو سپاهیانو د دین او قرآن د خدمت په لاره کې خپل وطن، کورنۍ او قربیان په ډیره اسانۍ هیرولای شوای او په لرې وطنونو او ناپیژندویه ماحول کې یې ددین لپاره د غربت او گمنامۍ مرگ د ځان لپاره افتخار باله.

په راوروسته پیړیو کې هم د اسلامي امت له منځه همداسې ځوانان راپیدا شوي چې ددین د خدمت او جهادي ارمان لپاره یې خپل هر څه هیر کړي او له خپل کور څخه په لرې سیمو کې یې د گمنامۍ شهادتونه نصیب شوي دي. د هند ستر مجاهد سید احمد شهید او ملگري یې ددې سلسلې هغه ویاړمن مجاهدین دي چې ددین دخدمت او جهاد په نیت یې له خپل اصلي وطن د هند له بریلي څخه هجرت وکړ، د

سند، بلوچستان، کابل او پېښور په سيمو را وګرځېدل او په پای کې يې د بالاکوټ په غرونو کې له سيکانو سره دمخامخ جنګ په نتيجه کې دشهادت جامونه نوش کړل.

په افغانستان کې د روس ضد جهاد په مهال د عربي نړۍ راغلي مجاهدين چې تورخم ته نږدې د شمشاد سره يې د شهيدانو ستره هديره ده د همداسې يوې بلې بيلګې حکايت کوي. د اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال د افغانستان زياتره ولايتونه د اسلامي امارت تر واک لاندې راغلل خو په شمال ختيځ کې د بدخشان او تخار ولاياتو ډيرې برخې لا هم د مخالفينو په ولکه کې پاتې وې. مګر په همدې مرحله کې د بدخشان او تخار ولاياتو مجاهدو طالبانو او ګڼ شمير علماء کرامو يو ځل بيا د اسلامي تاريخ همداسې وياړمنه کارنامه راتانده کړه. هغوی په داسې حال کې چې د اکثرو کورونه د مخالفينو تر واک لاندې سيمو کې وو. مګر دوی داسلامي نظام تر سيوري لاندې د بې کورۍ ژوند قبول کړ، په ډير اخلاص او متانت يې د اسلامي امارت په صف کې جهادي وظائف ترسره کړل تر دې چې د بدخشان او تخار له شهيد شويو طالبانو په لوګر ولايت کې هديره جوړه شوه. دغه راز په خوست ولايت کې د منبع چينې په مدرسه په بمبار کې هم د دې ولاياتو ډير طالبان دشهادت لوړمقام ته ورسيدل او د پرديسۍ له ژوند څخه د خپل متعال رب جَلَّجَلَالُهُ لقاء ته ورغلل.

په لاندې کرښو کې د همداسې يوه اتل سوانح درسره شريکوو، هغه چې خپل د ځوانۍ ټول عمر يې د علم او جهاد لپاره په مسافرۍ کې تير کړ او بالاخره په همدې سفر کې د امريکايي طاغوت په بمبار کې شهادت په لوړ مقام فائز شو.

## محمد سرور حق پرست

محمد سرور حق پرست د ميزراب زوی په ۱۳۵۱ هـ ش کال کې د تخار ولايت په نمک آب ولسوالۍ کې په يوه متدينه او علم دوسته کورنۍ کې دنيا ته راغی.نوموړی لا ماشوم و چې په افغانستان کې کمونيستان واک ته ورسيدل، ورپسې شورويانو په هيواد يرغل وکړ او په مقابل کې يې د افغانستان په ټولو ولاياتو کې مسلح جهاد پيل شو.

خو د جهاد او اسلامي انقلاب په تاوجنو کلونو کې د حالاتو د سختۍ سره سره محمد سرور د ديني علوم د تعلم لار ونيوه.لومړنۍ زده کړې يې په خپل کلي کې له مدرس عالم مولوي عبدالرشيد څخه حاصلې کړې،وروسته بنگي ولسوالۍ ته لاړ او هلته يې له مولوي ضياء الرحمن مدني صاحب څخه ديني علوم ولوستل.وروسته فرخار ولسوالۍ ته لاړ او دنهرآب په سيمه کې يې له مولوي عبدالحليم څخه ځينې کتابونه ولوستل.

## د علم په لټه اوږد سفر

د هيواد شمال ختيځه حوزه له پخوا څخه د علم او فرهنگ سيمه بلل کيږي او اوسيدونکي يې د علم د حصول ځانگړې مينه لري. د روس ضد جهاد په مهال چې په دې ولاياتو کې هم سخت جنگونه روان وو د بدخشان او تخار ولاياتو طالبانو به ډير اوږده مزلونه وهل او د هندوکش له اسمانڅکو غرونو څخه په اوښتو به يې ځانونه د پاکستان خيبر پښتونخوا، کراچۍ او نورو سيمو ته رسول تر څو هلته په ديني مدارسو کې ديني علوم حاصل کړي.دغه طالبان به زياتره تر هغه وخته بيا کور ته نه تلل تر څو به يې چې د فراغت پگړۍ نه وه تړلې.

مولوي محمد سرور حق پرست هم د علم په مينه د همدې مزل وهونکو طالبانو له جملې و، نوموړی په ۱۳٦۴ هجري شمسي کال کې د علم په حصول پسې پاکستان ته لاړ. لومړی د خيبر پښتونخوا په دير سيمه کې ميشت شو او هلته يې يو ځل بيا له مولوي ضياء الرحمن مدني صاحب څخه کتابونه شروع کړل. وروسته د مينگورې سيمې ته لاړ او له شيخ زکريا صاحب،شيخ عبدالشکور او مولوي عبدالخالق نه يې کتابونه ولوستل.

مولوي حق پرست صاحب تکميليه درجه په دارالعلوم سيدو شريف کې ولوسته او دوره حديث يې هم همالته مکمله کړه او د فضيلت دستار يې پرسر کړ. نوموړی يو له تکړه او با استعداده طالبانو څخه و چې له تعلم سره سره يې تدريس هم کاوو او نورو طالبانو ته يې مختلف کتابونه تدريسول.

## په اسلامي امارت کې خدمت

شهيد مولوي محمد سرور حق پرست د تخار ولايت په سطحه يو له تکړه عالمانو او د جهاد او اسلامي نهضت له مخکښانو څخه و. کله چې د طالبانو اسلامي تحريک قيام وکړ نوموړی د ډيرو نورو ملګرو سره يوځای له دې تحريک سره وصل شو او بيا يې په مختلفو برخو کې ملکي او نظامي خدمتونه سرته ورسول.

شهيد حق پرست په جهادي خطوطو کې په نظامي وظائفو سربيره د پروان او لوګر ولايت د مرستيال په حيث هم ډيره موده وظيفه ترسره کړه. کله چې مولوي ضياء الرحمن مدني صاحب د پروان والي و حق پرست صاحب ورسره د مرستيال په حيث خدمت کاوه. په دې شپږ مياشتنۍ موده کې چې په پروان ولايت کې به سخت جنګونه روان و او مخالفينو به هميشه تعرضونه کول شهيد حق پرست په ډيره ميړانه خپله وظيفه انجام کړه.

وروسته نوموړی ډيره موده د لوګر ولايت مرستيال و او ورسره يې په نظامي برخه کې هم خدمتونه سرته رسول.

## شهادت

په افغانستان د امريکايي صليبي يرغلګرو له حملې څو اونۍ وروسته چې مجاهدين له کابل او نورو ښارونو څخه دوتلو په حال کې وو،يو زيات شمير عرب او نور داخلي مجاهدين د خوست ولايت پر خوا لاړ،په دې وخت کې چې امريکايي الوتکو پرلپسې په هوا کې پروازونه کول او مجاهدين يې ځارل،ګڼ شمير مجاهدين د خوست ښار لويديځ ته د متبا چينې نور القرآن مدرسه د شپې تيرولو لپاره غوره کړه.

مولوي محمد سرور حق پرست هم د همدې طالبانو له جملې څخه وو، دوی چې د رمضان المبارک په لومړۍ شپه د نورالقرآن مدرسې په جامع مسجد کې د قران کريم د ختم په تراويحو ولاړ وو، ناڅاپه وربانديې امريکايي الوتکو بمبار وکړ او لسګونه رب تعالی ته په سجده مؤمنين او مجاهدين يې په شهادت ورسول.

شهیدمولوي محمد سرور حق پرست هم د همدې بختورو له جملې څخه و، چې په هغو سختو شیبوکې يې دعبادت په مهال او د رمضان المبارک په میاشت کې د امریکایي ظالم طاغوت په بمبار کې مظلومانه شهادت په برخه شو.

انا لله و انا الیه راجعون.

په دې ډول هغه نوراني زلمی چې دحق په تلاش او د اسلامي نظام د قیام په ارمان يې خپل کلی او کور پرې ایښی و د گمنامۍ په عالم کې د شهادت له سعادت څخه برخمن او د گڼو نورو مسافرو شهیدانو سره په یوه هدیره کې دفن کړای شو.

د شهید حق پرست د صورت او سیرت به اړه دده نږدې ملگري وایي: نوموړي شهید ته الله تعالی دسیرت او صورت ښکلا ور پیرزو کړې وه،جذابه او نوراني څیره يې درلوده.ښایسته اخلاق يې له سترو امتیازاتو څخه و.له کبر، غرور، تندخويي او تندگويي څخه پاک و.

له ملگرو سره په صمیمانه چلند مشهور واو د هیچاپه وړاندې يې رکیک او نا مناسب الفاظ نه استعمالول.

رحمه الله تعالی



## دشهيد قاري احمد الله ژوند ته لنډه كتنه

**ليكنه: شاهد غزنيوال**

شهيد قاري احمد الله د عبدالسلام زوي دغزني ولايت دخوګيانو ولسوالۍ دقلعه شاده په كلي كې په كال ۱۳۸۴هـق چې له ۱۹٦۴ ميلادي سره سمون خوري دې فانې نړۍ ته سترګې غړولې. دشهيد قاري احمدالله كورنۍ له وخت څخه له علم او ديندارۍ سره تړاو لرونكي كورنۍ وه، نو ځكه ويلا ي شو چي نوموړې د كورنۍ لومړنۍ څوک نه و چي په همدي سپيڅلي خو ظاهرا له كړاوونو ډكي لار كي په رښتيني توګه د شهادت تر بريده رسيدلى بلكي د نوموړي شهيد كورنۍ له ده نه وړاندي هم شهادتونه، زخمونه او معيوبيتونه ګاللي. مولوي عبد المحمد د شهيد قاري صاحب مشر ورور د خپلې سيمي د جيدو او ممتازو علماءكرامو له جملي څخه و چي د تدريس په سلسله كي به يي تل د قران عظيم الشان ترجمه او تفسير شامل و، د كمونيستي كودتا په اوائلو كي شهيد مولوي صاحب د هغو علماوو په لومړي صف كي و چي كمونستانو ته ډېر مطلوب وو او په هماغه لومړنيو وختونو كي د هغوي له لوري محبوس ، مفقود او بالاخره په شهادت ورسول شو دغه راز د قاري صاحب دمجروح په نوم بل ورور يي هم په هغه مهال په جهاد كې فلج شوى دى .

قاري صاحب چې په يوه ديندراه او علمي كورنۍ كې زيږيدلى و له كوچينوالې څخه دښواخلاقو ښه سيرت اوښه صورت لرونكى او دنبوغ وذكاوت نښې وربانـدې ښكاره وي، همدالامل و چې پلار او كورنۍ يې دتعليم په اړه ځانګړې توجه ورته لرله او په ډېر كم عمر يې دكلي محلي ښونځي ته شامل كړ.

**تعليم اوزده كړه يي:** شهيد قاري احمد الله لومړنۍ زده كړې اودقرآن كريم حفظ په خپلې سيمې كې ترسره كړ اوداچې دده دتعليمي مرحلې په مهال هيواد دشوروي اشغالګرو تريرغل لاندې و، نو نوموړى هم دخپلې سيمې دنورو سلګونو طالبانو او زده كوونكو په څير

دخپلو دیني زده کړو دتحصیل په غرض پاکستان ته مهاجر شو. نوموړي په لومړیو کې دینـي ابتدائي زده کړې دپیښور په دارالعلوم هادیه کې ترسر ه او بیـا یـې پـه مختلفـو مدرسـو لکـه دجنوبي وزیرستان ضیاء المدارس مدرسه، د کوټي نورالمدارس دغه راز په شمالي وزیرسـتان کې د منبع العلوم په علمي او جهادي مرکز کې ترسره کړې.

منبع العلوم مدرسه دافغانستان دجهـاد دمشـهور جهـادي مشرـ الحـاج مولـوي جلال الدین (حقاني) لخوا دهغو زرگونو طالبـانو دتعلـیم او تربیـې پـه غـرض تاسـیس شوې وه کومو چې به ددیني علم دحصول ترڅنګ وخت ناوخت دشوروي اشغالګرو په خلاف جهاد کې هم ګډون کاوو .

## جهادي فعالیت یې:

داچې شهید قاري احمد الله له پیل نه له جهاد اوشهادت سره خاصه مینه لرله نو به یې دمدرسې په کلنیو رخصتیوکې هرکال له خپلو نورو ملګـرو سره پـه مسـلح جهـاد کې شرکت کاوو او هلته به یې په جهادي محاذونوکې دشرعي زدکړو ترڅنـګ جهـادي اوپوځي زدکړې هم کولې.

نوموړی په ډیر کم عمر له روسانو او دهغوی مزدورانو خلقیـانو اوپرچمیـانو سره دجهاد سـنګرونوته تللـی او لـومړنی جهـادي سـنګریې هـم دجهـاد دمشـهور جهـادي شخصیت اوجنوبي زون وتلي قومنـدان الحـاج مولـوي جـلال الـدین حقـاني ترقیـادت لاندې دجهاد په جنوبي زون کې دخوست ولایت وه، چې بیا وروسته خپلې سیمې تـه راغی اوهلته یې دشوروي یرغلګرو ځواکونو تروتلو خپل وسله وال جهاد ته دوام ورکړ.

شهید قاري احمد الله دشرعي زده کړو ترڅنګ له پـوځي اوجهـادي زده کـړوسره هم ډیره مینه لرله ؛ځکه نوموړی په دې باور و چې دشرعي نظام حاکمیت اوساتنه پـه جهاد سره کیږي او اعـداد(جهادي زده کـړې) بیـا دجهـادي فریضـې مـتمم دی،لهـذا نوباید شرعي زده کړي او پوځي اعداد یوله بل سره هماهنګ ترسره شي ترڅـو اسـلامي نظام دشرعي احکامو مطابق حاکم او دحاکمیت او دفـاع لپـاره یـې لـه فـی سـبیل الله جهاد څخه کار واخیستل شي.

دشوروي او صليبي اشغال په خلاف مشهورجهادي قائد الحاج مولوي جلال الدين (حقاني) دپخواني جهاد په مهال دشرعي علومو طالبانوته دغه زمينه ښه مساعده کړې او ډيروطالبانو دنوموړي ترقيادت لاندې په عملي لحاظ دغه دواړې مهمې فريضې (شرعي اوجهادي زدکړې) يودبل ترڅنګ حاصلولې.

په دي لحاظ ويلای شو چې شهيد قاري احمد الله دمولوي جلال الدين (حقاني) دعلمي او جهادي مدرسې ديوه وتلې شاګرد په توګه په هيواد کې دشرعي نظام دحاکميت او له هغه څخه ددفاع په لاره کې ښه روزنه حاصله کړې اوبيايې دهغې دعملي کولو په لاره کې نه ستړې کيدونکې هلې ځلې وکړې.

دشهيد قاري احمد الله ټوله کورنۍ په خپلې سيمې کې په جهادي کورنۍ مشهوره او تقريبا دکورنۍ زياتره غړي يې هم دشوروي يرغل په مهال او هم اوس دصليبي يرغلګرو په خلاف تکړه مجاهدين دي. په افغانستان کې دکمونيستي نظام تر ړنګيدو وروسته شهيد قاري احمد الله په بشپړه توګه ځان دشرعي زدکړو تحصيل ته فارغ کړ او دهغو داکمال او تحصيل لپاره يوځل بيا مدرسې ته شامل شو .

نوموړي همالته ترموقوف عليه مرحلې پورې خپلې زدکړې پوره اوځان يې نور دنبوي احاديثود وړې او لويې دورې داتمام لپاره اماده کړ .

## دطالبانو له اسلامي تحريک سره يو ځای کيدل

شهيد قاري احمد الله لا دشرعي لوړوزدکړو په اکمال سره خپل آرمان ته نه ورسيدلی چې په هيواد کې دتنظيمي جګړه مارو لخوا کورنۍ جګړه پيل او دمجاهدينو اوشهيدانو ټول هغه سپيڅلي آرمانونه پکې تر پښنو لاندې شول کوم چې افغانانو ۱۴ کاله دهغوئ دتحقق لپاره قرباني ورکړې وه .

کله چې په کال ۱۴۱۵ دمحرم دمياشتې په ۱۵ ددغې فتنې دختمولو او په هيواد کې داسلامي حاکميت دنافذولو په غرض دامير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد لخوا په افغانستان کې دطالبانو اسلامي تحريک تاسيس شو نوشهيد قاري احمد الله هم

دخپلو نورو طالبانو ورونو په څير بيا خپلې زدکړې نيمگړې پريښودلې او دتحريک دتاسيس په ابتداء کې دهغه له ليکوسره يوځاى شو.

شهيدقاري احمد الله دطالبانو په اسلامي تحريک کې يو له هغومهمو اومحوري څيرو څخه گڼل کيږي چې دتحريک له تأسيس نه بيا دشهادت ترمهال پوري دتحريک دمشرتابه لخوامهم اداري او پوځي مسؤليتونه ورته سپارل شوي او ده هم هغه په پوره اخلاص ،صداقت او ايمانداري سره سرته رسولي.

## دطالبانو په اسلامي تحريک کې وظائف يې

لکه مخکې چې مو وويل قاري صاحب احمد الله دخپل علمي،اداري او پوځي لياقت او استعداد له مخې دتحريک دتأسيس له ابتداء څخه دمشر-تابه دځانگړې توجه مورد و او وخت په وخت ورته مهم وظائف سپارل کيدل،چې دلته يې په مختصر ډول دځينو وظائفو او مسؤليتونو تذكر په لاندې ډول ليكو:

په كال ۱۵/۱۱/۱۹۹۴ چې كله دزابل ولايت دطالبانو داسلامي تحريک لخوا تصفيه شو نو ددغه ولايت دامنيتي چارو دښه سمون په غرض دمشرتابه له لوري شهيد قاري احمد الله ددې ولايت دامنيه قومندان په حيث تعين كړاى شو .

نوموړي دلته دخپل مسؤليت په مهال له خپلو ملگرو او نورو ټولو ولسي-خلگو سره په ډيره ښه اسلامي او اخلاقي رويه برخوردكاوه او دياد ولايت په ټولو نيږدي او ليري پرتو ولسواليوكې دبشپړ امنيت فضا حاكمه كړه .

ترديي وروسته چې كله په ۲/۹/۱۹۹۵ دهيواد په جنوب لويديځ زون كې دنيمروز ولايت دطالبانو ترولكه لاندې راغي نو بيا هم دقيادت په دستور شهيد قاري احمد الله ددې ولايت دامنيه قومندان په توگه وگمارل شو ،خوداچې هماغه ولايت له مخالفينو سره دجگړې په لومړۍ كرښه كې موقعيت درلود نو شهيد قاري احمد الله به ډير وخت همالته له دښمن سره دمقاومت په لومړي خط كې تيراوه .

هماغه و چې يومهال دمخالفينولخوا دجګړې په لومړۍ کرښه کې اسير او څه وخت يې دجنوب غرب زون دمخالفينو دمشر تورن اسماعيل په مرکزي محبس هرات ولايت کې اسارت تيرکړ خوکله چې دهرات ولايت دطالبانو داسلامي تحريک ترولکې لاندې راغی نو دی هم دنومړي ولايت له محبس نه ازاد اوبيا دقندهارولايت دامنيه قومندان په توګه وټاکل شو.

نومــوړی لادکنــدهار دولايــت دامنيــه قومنــدانۍ مسـؤل و چــې پلازمينــه کابــل داسلامي امارت دځواکونو لخواونيول شو .

په کال ۲۷/۹/۱۹۹۶ دکابل په نيولو سره اسلامي امارت سمدستي هالته ټول ملکي او عسکري تشکيلات برحاله او دټولو وزارتونو اودولتي دوائرو لپاره يې مسؤلين وټاکل.

شهيد قاري احمد الله چې په امنيتي چاروکې يې ښه تجربه او پخواني سابقه لرله اوله دې سره سره يې دامارت دمجاهدينو په منځ کې پــه يــوه مــدبر،حليم او باکفايتـه مسؤل شهرت خپل کړی وه دمشرتابه له لوري دکورنيو چارو دوزيرپه صفت مقررکــړل شو .

سره له دې چې دکورنيو چارو وزارت دخپل اداري تشکيل لـه مخــې يــوډير مهــم وزارت او دکارونو ساحه يي دټول هيواد په کچه ډيره پراخه ده،خو شهيد قــاري احمــد الله بياهم داسلامي امارت ديوه با تدبيره مجاهد په توګه دغه درونده مسؤليت په ډيــره ښه توګه ترسره او په خپل کارکې يې ښې برياوې لرلې .

قاري صاحب له رسمي وظائفو سره په څنګ کې هميشه دجهاد لومړيو ليکــو تــه تلو او په ډيرو عملياتو کې يې برخه درلوده. دکابــل لــه نيولــو څــه مــوده وروســته چــې دشمال لخوا مخالفينو په کابل باندې ستر هجوم راووړ، قاري صاحب دکابل دشمال په دفاعي خط کې په پوره ميړانه خپــل مسـؤليت تــرسره کــړ او دخــدای ورکــړي جهــادي جرأت او استعداد په ښودلو سره يې دپلازمينې کابل دفاع وکړه .

تردي وروسته شهيد قاري احمد الله ته دمسؤلينو دلزوم ديد لـه مخـې دامنيـت ملي چې داسلامي امارت دحاكميت په مهال داستخباراتو دلوي رياست په نوم يادېده مسؤليت ور وسپارل شو .

داچې داستخباراتو لوي رياست دخپل كاري مسؤليت له مخې داسې يو رياسـت و چې مسؤل يې حتما بايد سخت مزاجه او دخشن تعامل څښتن وي .

خوشهيدقاري احمد الله پـه هماغـه مسـؤليت كـې هـم دهرچـا ديـوه مهربـان او خواخوږي وروړپه توګه له ټولو كاركوونكو او نورو مراجعينو سره برخورد كاوو او دخپل مسؤليت تر اخيره پوري هيڅا هم ترې بده خاطره نه لرله .

په عين مهال كـې چـې قـاري احمـد الله داسـتخبارتو دعمـومي رئـيس پـه توګـه مسؤليت درلود له دې سره همزمان به يې دكابل په شمال او يا دشـمالي زون پـه نـورو ولايتونوكې ډيروخت دجګړې په لومړيو ليكو كـې تيـراوه او هالتـه بـه يـې هـم ددغـو خطونو مسؤليت په غاړه درلود.

چې دهغوله جملې څخه دبيلګې په توګه دكابل په شمال دغوربنـد پـه اسـتقامت ،دباميانو په ولايت كـې ديكاولنـګ اودهيـواد پـه شـمالي زون كـې دتخـار پـه لومړيـو كرښوكې دده فعال پوځي مساهمت او هالته دمجاهدينو نظـامي مسـؤليتونه يـادولای شو.

قاري صاحب دخپلو جهادي وظائفو په مهال نهايي هڅه كوله چـې مخـالفينو تـه داسلامي امارت داعيه ورسوي او له مخالفت څخه لاس اخيستلو ته يې تشـويق كـړي، دنوموړي په همدې هڅو دافغانستان په مركزي سيمو كې ډيرې ستونزې بې لـه جنګـه هوارې شوې .

## دصليبي يرغل په خلاف يې جهادي فعاليت :

په ۲۰۰۱/۱۰/۷م چې كله صليبي يرغلګرو دامريكاپه مشرۍ پـه افغانسـتان يرغـل وكړ او په نتيجه كې يې اسلامي امارت مجاهدين له ښارونو نه ووتل شهيد قاري احمد

الله سمدستي دهغوی په خلاف وسله وال مقاومت شروع ،او بي له ځنډه يې ديرغلگرو په خلاف دمجاهدينو په نظم اونسق اوپوځي سوقياتو کارپيل کړ .

شهيد قاري احمد الله دجهادي فعاليت لپاره ديوه امنيتي تکتيک له مخې دپکتيکاولايت غوره کړ،دغه استقامت تريوې اندازې د دښمن له استخباراتي تعقيب نه دځان ژغورلولپاره مناسب و ؛ځکه نوموړي دامهال دامريکايي يرغلگرو لخوا ترسخت استخباراتي تعقيب لاندې او نوم يې مخکې ترمخکې دامريکايانو لخوا داسلامي امارت د هغو مهمو چارواکوپه ليست کې نيول شوی و کوم چې دوی ته له امنيتي پلوه په لومړۍ درجه مطلوب ول.

امريکايي استخباراتي چارواکي په دي معتقدول چې له شهيد قاري احمد الله سره داسلامي امارت ډيرمهم محرم اسرارموجود دي، چې دهغو په ترلاسه کولو سره به وکولای شي داسلامي امارت دټولو مهمو چارواکوپه اړه مهم معلومات ترلاسه کړي.

دامريکايانو ديرغل په پيل کې دهغوی لومړنی ترکيز داسلامي امارت دلوړ پوړو چارواکو تعقيب اوڅارنه وه ترڅو هغوی ته دازمينه مساعده نه شي چې ديرغلگرو په خلاف جهادي ليکې دوباره منظمې کړې.

خوبيا هم دالله تعالی په فضل او نصرت سره ډير مجاهدين وتوانيدل چې ددښمن دسخت مراقبت او تعقيب سره سره دهيواد په مختلفو سيموکې دمقاومت ليکې منسجمې او په يرغلگرو صليبيانو ملاماتوونکي گذارونه وکړي.

که څه هم چې ددغو مجاهدينو له جملې څخه يو شمير شهيدان اوځيني اسيران شول خو ډيرشميريې بيا ددښمن په وژلو ،تباه کولو او اسيرکولو هم وتوانيدل .

لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ (٨) الانفال

**اوبالاخره شهادت يي :**

له کلونو مبارزې ،جهاد دعوت اوداسلامي علوموله تعليم او تعلم څخه وروسته دغه د اسلام دلارې نه ستړی کيدونکی غازي ،په قرآن او عقيدي مين

شخصیت،دهیواد او ولس خواخوږی، اتل مجاهد،دمبارک قـرآن حـافظ اومجـود قـاري احمدالله د۱۴۲۲کال دشوال په میاشت کې چـې د۲۰۰۱ کـال د نـومبر لـه میاشـتې سره سمون خـوري دامریکـایي یرغلگـرو دهـوايي بریـد لـه امله دپکتیکاولایـت دنکـې پـه ولسوالۍ کې په شهادت ورسیدو او په دې سره یې خپل ځان دالله تعـالی ددې مبـارک قول مصداق وگرځاوه چې فرمایي:

من المؤمنين رجال صدقوا ماعاهدوا الله فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر ومابدلوا تبديلا.(الاحزاب سورت ۲۳ایت)

ژباړه: په مؤمنانوکې ځینې داسې (نران) سړي هم شته چې پـه کـوم شي یـې الله سره لـوزکړی و هغــه یــې رښـتیاکړ،نوځینوخویې خپــل نــذرپوره کړاوځینــې یــې لا انتظارکوي او هیڅ بدلون یې په (خپل عهد) کې ونکړ.

شهید قاري احمدالله چې یرغلگرو امریکایانو ته خورا مطلوب و او له دې وړاندې یې هم په پکتیکا او خوست کې دوه ځله دده دوژلو په نیت ورباندې بمبار کړی و خـو الله تعالی پکي ساتلی و، دپکتیکا ولایت د نکې په ولسوالۍ کـې داسـلامي امـارت پـه مهال دپکتیا دوالي مولوي احمد طه قادري په کور کې ورباندې امریکایي الوتکو بمبار وکړ چې دمولوي طه دکورنۍ د ۱۲ تنو غړو په شمول قاري احمدالله هم له خپلـو ٦ تنـو مجاهدو ملگرو سره په شهادت ورسید.

**د قاري احمد الله د شهادت په هکله مولوي احمد طه وایي :**

قاري صـاحب د پکتیـا ، پکتیکـا او خوسـت ولایـت لـه قـومي مشرـانو ، جهـادي شخصیتونو او دسیمي له خلکو سره په مسلسل ډول ملاقاتونه او ناستي ولاړي کـولي او هغوي يي د امریکایـانو پـه خـلاف جهـاد تـه هڅـول او پـه دي لار کـي یـي نـه سـتړي کیدونکي هلي ځلي تر سره کړي شپه ورځ یي په ځان باندي یوه کړي وه او دا پـه داسي حال کي و چي د امریکایي ځارگرو الوتکو له لوري یو ځل په پکتیکا او بیـا پـه خوسـت کي بمباري ورباندي وشوي خو الله تعالی پکـي وسـاته. بـالاخره د پکتیکـا نکـي ،زمـوږ

سیمي ته تر راتلو وروسته د مسلسلو جهادي مصروفیاتو په لړ کي یي زه د څه کارونو په موخه زابل ولایت ته ولیږلم او هلته د یوه پخواني جهادي قومندان ځاي ته تر رسیدلو وروسته راته څرګنده شوه چي هغه پکتیکا ولایت ته تللی دی نو زه هم هلته پسي ورغلم او د قاري صاحب پیغام مي ورته ورسول، نوموړي قومندان چي پراخ تعلقات او اړیکي یي لرلي د تر لاسه شویو معلوماتو له مخي راته وویل چي قاري صاحب ته ووایه چي امریکایان ډیر تلاش کوي ترڅو دي یا ژوندي ونیسي او یادي هم له مینځه یوسي نو باید ډیر احتیاط وکړي او د څه وخت لپاره ځان له کارونو څخه ګوښه کړي، له نوموړي قومندان سره تر لیدلو وروسته زه بیرته د قاري صاحب خواته ور روان شوم او د لاري په اوږدو کي له ملا سیف الرحمن منصور سره هم د څه کارونو لپاره مخامخ شوم هغه هم ډاډ راکړ چي موږ هم خپلي جهادي چاري سمبال کړي دي او قاري صاحب هم ډیر کار کړي دي امید دی چي د الله تعالي په نصرت سره به ډیر ژر بیرته مجاهدین خپل جهاد لا پسي چټک کړي او ډیر ژر به ټول مجاهدین بیرته سره منظم شي(د یادونې وړ ده چې ملا سیف الرحمن منصور صاحب دغه مهال د نکې ولسولۍ سره پیوسته د زرمت په شاهیکوټ نومې غرنۍ سیمه کې د جهادي سنګرونو په ټینګولو بوخت و چې څه موده وروسته په دې سیمه کې د نوموړي تر مشرۍ لاندې مجاهدینو له امریکایانو سره سخته جګړه وکړه) زه د اړونده کارونو له تر سره کولو وروسته د کور په لور روان شوم تر څو قاري صاحب د خپلو تر سره کړل شویو چارو له جریان څخه خبر کړم د لاري په اږدو کي مو څو تنه کلیوال اوسیدل دهغوی ځای ته د احوال معلومولو لپاره ورغلم خو هلته راته و ویل شول چي په نکه کي بمباري شوي ده هغوی هلته تللي دي، زما ذهن ته دا خبره نده راغلې چي دا بمباري به زموږ پر کور او یا هم په قاري صاحب شوي وي نو د کور په لور مي حرکت وکړ کله چي کلي ته را ورسیدم هلته مي له دوکانو سره موټر ودرول چي ګورم یو کلي وال مي په چیغو چیغو ژاړي پوښتنه مي وکړه چي څه خبره ده هغه راته وویل چي ستاسي په کور بمباري شوي ده ستا وروڼه مولوي جانان او مولوي اسمعیل د کورنۍ له دولسو تنو غړو سره یو

ځای شهیدان شوي دي ، ما ور څخه وپوښتل چي میلمانه څنګه شول ؟ په ځواب کي یي راته وویل چي هغوی هم ټول شهیدان شول.

باید یادونه وشي چي قاري صاحب د خپلو نورو شپږو تنو ملګرو سره ټول په شهادت رسیدلي وو او زمونږ د کورنۍ نور ټول غړي په شهادت رسیدلي وو یواځي په پیښه کي زما د شهید شویو وروڼو مولوي جانان زوي او مولوي اسمعیل لور چي د بمبارۍ له امله تر خاورو لاندي شوي وو د یوه بل بم په لویدلو سره بیرته د ځمکي سر ته را غورزول شوي وو او هغوي دواړه ژوندي پاتي شوي وو .

کلیوالو ټول شهیدان دفن کړي وو، نو کله چي د ماسپښین پر مهال د خلکو ګڼه ګوڼه لږ سره کمه شوه نو مي وپوښتل چي قاري صاحب مو په کوم یو قبر کي دفن کړی دی ؟ تر معلومولو وروسته مي دوه نور ملګري هم راسره کړل او د قبر په لوڅولو مو پیل وکړ ترڅو شهید قاري صیب د غزني د خوګیاڼو په ولسوالی کي خپل پلرني کلي ته نقل کړو، قبر مو پرانیست کله مي چي د تابوت سر پورته کړ ګورم چي د قاري صاحب په مخ باندي خولې ډنډ ولاړي دي او بریتونه یي هم په خولو لامده دي او داسي خوشبویي ورڅخه پورته کیدله چي کله مي هم په ژوند کي نه وه لیدلي. قاري صیب په نس کي لګیدلی وو او پښي یي هم له مینځه تللي وي ، تابوت مو را و ایستل او د وړلو لپاره مو موټر ورته تیار کړ او ملګري مو ورسره کړل ما ور ته وویل چي تاسي دړ روان شئ زه هم په بله لاره ځان در رسوم په دي وخت کي د کندز مولوي یاسین له یوه ملګري سره راورسیدل او راته ویي ویل چي د ارګون لار مخالفینو نیولي ده او هر موټر دروي او د مولوي طه پوښتنه کوي نو ته مه ځه موږ به ور سره ولاړ شو، ما ور ته وویل چي سمه ده زه به په بله لاره ځان در ورسوم ، ما ځان د زرمت کلالګو ته ورسول ، ملګرو هم شهید قاري صاحب هلته راورسول ، په دي وخت د قاري صاحب یو وروړ او نور خپلوان را رسیدلي وو ما ورته و ویل چي له پیښي څخه څوک مه خبروئ او قاري صاحب په پټه دفن کړئ، زه بیرته ور څخه راستون شوم خپل ځاي ته چې را ورسیدم په کلي کي په یو کور کي ناست وم چي نا ببره د امریکایي څرخکو غږ مو تر

غوړو شو چي بیا په چټکۍ سره یوه د کور یو خوا او بله بل پلو ته کیناستله، تر څو چـي امریکایان کور ته را رسیدل زه په پټه لاره د غره په لور ووتلم ، امریکایان زمـوږ د وران شوي کور په پاتي شونو ګرزیدل او وروسته یي د شهیدانو د قبرونو لـور تـه مخـه کـړه ټول قبرونه یي وڅیړل خو د قاري صیب جسد پکي تر لاسه نشو، له کلیوالـو څخـه یـي هم پوښتني وکړي خو کوم معلومات یي ترلاسه نکړای شول .

## دشهید قاري احمد الله اخلاقي ځانګړنې:

شهید قاري احمد الله دخپلو ټولـو وروڼـو او ملګـرو پـه مـنځ کـې یـو بـاتقوی ،بـا اخلاقه، صابر او حلیم شخصیت و.

دکبر ،غرور،انانیت هیڅ نښې نه وې پکې،له ټولو خلګوسره به یي پـه ډیـره نرمـي اوحسنه اخلاقو برخورد کاوو، اوهرڅوک به یې له نیکو اخلاقو ډیر متأثر کیدل .

د شهید قاري صاحب اخلاق له کوچنیوالي څخه الله تعالی داسې جـوړ کـړي وو چې تقوا او حسن خلق یـې دفطـرت برخـه ګرځیـدلي وو. دتخـار ولایـت اوسـیدونکی مولوي عطاء الرحمن چې په پیښور کې دابتدائي زده کړوپه مهال دقاري صاحب استاذ پاته شوی وایي ( قاري صاحب ډیر امین او وفادار انسان و، دامانت یې دا حـال و، چـې هغه مهال چې قاري صاحب کشر طالب و او په پیښور کې به یې مدرسې تـه وظیفـه ( ډوډۍ ) راټولوله، نو که به چا کومه یوه روپۍ یا نیمه روپۍ ( اته انـې ) ورکـړې وه، ده به هغه هم خپل جیب ته نه اچوله بلکې مدرسې او نورو طالبانو ته به یې ورکوله ترڅـو یې مصرف کړي ، یوځل مې ورته وویل چې دا پیسې خـو خلـک شخصـا تاتـه درکـوي او ستاکیږي ، خو ده ځواب راکړ چې نه ، ماته مې مور ویلي چې دچا حق به نـه خـورې او له حرامو به ډیر ځان ساتي .

نوموړی مولوي صاحب وایې :قاري صاحب ډیر وفادار سړی وکله چـې داسـلامي امارت په مهال لوړ منصب ته ورسید او دکورنیو چارو او استخباراتو دعمومي ریاست

وظایف وروسپارل شول ، قاري صاحب بیا هم همیشه په مابانديې پوښتنه کوله او له ډیرو کلونو تیریدو وروسته یې هم نه وم هیر کړی چې دا ده دوفادارۍ نغد ثبوت دی)

مولوي محمد امیر چې له قاري صاحب سره یې په یوه اداره کې کار کړی دنوموړي په اړه وایي (چي کله دافغانستان اسلامي امارت د بامیانو په ولایت واکمن شو نو دهغه ځای ټولو اوسیدونکو دقاري صاحب سره ډیره مینه اومحبت درلود د ډیرې مینې نه به یې دده لاسونه ښکلول او په ډیرادب احترام به یې دده هرکلی کولو.

اودهغه ولایت دټولوخلکوبه دده نه داغوښتنه وه چې تاسوزمونږدولایت مسئولیت اوسرپرستي په غاړه واخلئ که نه نوتاسوراته په خپله خوښه بل داسې یوڅوک را واستوئ چي ستاسوخوښ وي )

مولوي محمد امیرزیاتوي (ما دمرحوم قاري صاحب سره دطالبۍ دوخت نه په کویټه بلوچ خان چوک دنورالمدارس په مدرسه کې تعارف پیداشوې وو. دډیرنزدې نه مو سره پیژندل، پرته له شکه چې قاري صاحب یو تکړه باتجربه ځوان او غښتلی مجاهدو اونورومجاهدینوته دخپل وخت یوډیر ښه دعوتگر و باتجربه دښو اخلا قو دنرم خوی او لویې حوصلې خاوندو، ژوره کاري فکر یې درلود او تل دهرچا په خدمت کې و د هغه شهادت زموږ د ټولنې لپاره یوه ډیره لویه ضایعه وه.

مشهورجهادي شخصیت او وتلی داعي استاد محمد یاسر به دشهید قاري احمد الله په اړه ویل هرڅوک که غواړي چې دصحابه کرامو داخلاقو ژوندۍ نمونه وګوري هغه دي یوکرت له قاري احمد الله سره کیني او په ورځني ژوندکې دي دهغه تعامل له نیږدې مطالعه کړي .

شهید قاري احمد الله به دخپل مسؤلیت په مهال ډیر وخت دبامیانو په ولایت کې اوسیدو، ددغې سیمې په زیاتره برخوکې داسلامي امارت مخالفین له امارت سره په مقابله لګیاول،خو دشهید قاري احمد الله دحسنه اواسلامي معاملې له مخې ددغو مخالفینو دحزب وحدت اکبري مهمه ډله ددغې ډلې دمشر محمد اکبري په شمول

دقاري صاحب دحسنه اخلاقو له مخې د امارت له مخالفت نه لاس واخيست او ټول له خپلو وسلو او امکاناتو سره له اسلامي امارت سره يوځاى شول او دامارت دحاکميت تر وروستيو شپو ورځوپوري يې دقاريصاحب دنظامي قطعي په ليکو کې پوځي فعاليت کاوو.

داسلامي امارت دحاکميت په مهال چې کله دحزب وحدت اکبري ډله د دې ډلې دمشر محمد اکبري په شمول اسلامي امارت ته تسليم شول نو زه دځوتنو نورو ژورناليستانو په جمله کې دمرکې لپاره دمحمد اکبري هستوګنځې ته چې دکابل په انټرکانټيننټال هوټل کې موقعيت درلود ورغلم.

دنوموړي دمطبوعاتي غونډې په مهال ماورڅخه په خپل نوبت له اسلامي امارت سره دده ديوځاى کيدو لامل وپوښتو چې ده راته دنوورو وجوهاتو په سرکې د شهيد قاري احمد الله نيک برخورد اودسيمې له اوسيدونکو سره ښه رويه ياده کړه او زما دپوښتنې دځواب په تفصيل کې داسې راته وويل:

موجوديت اشخاص مجاهد ومتورع امثال قاري احمد الله وتعامل اخلاقي انها با آهالى منطقه، از ارجحيت هاى بود که خودم به شمول همه پيروانم تصميم گرفتم تا بامارت اسلامى يکجا ودرپهلوى آنها به ضد مخالفين امارت جبهه گيري نمايم .

له محمد اکبري نه سيوا نورهم ډير مخالفين دشهيد قاري احمد الله له نيک تعامل اوښې رويې څخه متاثر اوله همدې وجې داسلامي امارت له مخالفت څخه لاس اخيستى.

نوموړي چې کوم فعاليت داسلامي امارت په ليکوکې ترسره کړى هغه يې ټول دخپلو نيکو اسلامي اخلاقو په وسيله کړى نه دپوځي او نظامي زور په وسيله، نوموړي ډيرزيات مخالفين دخپلو نيکو اخلاقو په وسيله دامارت ترڅنګ درولي اواسلامي امارت ليکې يې په هغوئ قوي کړې.

په دي هکله مولوي عبد السلام مسلم وايي : زما په ياد دي چي هغه مهال د باميانو والي مولوي محمد اسلام محمدي د اسلامي امارت رئيس الوزرا ملا محمد رباني ته د خپل ملاقات پر وخت د قاري صاحب ډيره زياته ستاينه وکړه او زياته يي کړه چي که قاري صاحب د څه مودي لپاره نور هم په باميانو کي پاتي شي زما باور دي چي د ده د ښي رويي او معقولي تګلاري له امله به ټول مخالفين له مخالفت څخه لاس واخلي او په اخلاص به له امارت سره يوځاي شي او صادقانه ملګرتيا به ورسره وکړي .

دشهيد قاري صاحب دتوکل او وظيفه شناسي په اړه مولوي عبدالسلام مسلم زياتوي : ( قاري صاحب ډير متوکل سړی و، يوځل موږ په باميانو کې دده داوسيدو ځای ته ورغلو نو له ده سره يوازې يو تن ملګری و، دغه راز دتخار ولايت له نيول کيدو وروسته چې کله ده هلته عمومي مسؤليت درلود، نو دتالقانو له خلکوسره به يې عمومي مجلسونه کول هغوی ته به يې ويناوې کولې او دجامع مسجدد خطابت سربيره يې له لمانځه وروسته په مساجدو کې له خلکو سره خلاص مجالس کول او دهغوی ستونزې به يې اوريدې. ده به ويل اګر که دومره ازادانه ګرځيدل تريوه حده له خطره ډک دي خو دا يو ضرورت دی ځکه دې خلکو ته داسلامي امارت په اړه ډير منفي تبليغات شوي له دوی سره سوالونه دي چې بايد ځواب شي )

دغزني ولايت دناوې ولسوالۍ اوسيدونکی حاجي عبدالباري چې ډيره موده له قاري صاحب سره نږدې پاته شوی دی دقارې صاحب يوه خاطره داسې بيانوي ( قاري صاحب سره له دې چې لوړ منصب يې درلود او ډيرو پيسو ته يې لاس رسی و خو له دنيايي متاع سره يې قطعا د زړه تړاو نه درلود. يو وخت زه له ده سره دپروان په سياګرد ولسوالي کې وم هغه وخت چې دی دکورنيو چارو وزير او هم دشيخ علي ولسوالۍ دخط مسؤل و، په دې وخت کې احوال راغی چې قاري صاحب داستخباراتو دلوی رياست درئيس په حيث ټاکل شوی دی او بايد چې کابل ته ځان ورسوي، قاري صاحب دخط مسؤليت بل چاته ورله غاړې کړ او ماته يې وويل راځه چې کابل ته لاړ شو، ده موټر همالته ملګرو ته پريښود او له سياګرد څخه دلين په فلاينګ کوچ موټر

كې پروان ته راغلو، پروان ته چې راورسيدو، ده چې خپل جيبونه وكتل نو پيسې ورسره نه وې، له ماسره هم يوازې دومره پيسې وې چې دموټر كرايې تـه بـس شـوې، وروسـته مې ورته وويل چې تركابله به څنګه ځو نوموړي وويل دلته په پروان كې ملګري شته لـه هغو به يې واخلو، بيا مو همداسې وكړل او كله چې كابل ته په عمومي موټر كې تلو، نـو قاري صاحب ماته وويل چې خپل كلاكوف ټوپک دې پټ ونيسه، ځكـه دا ښـه ده چـې دموټر خلک موږ عادي مسافر وبولي او داسې احساس ونه كړي چې حكومتي خلک پـه موټر كې ورسره دي )

شهيد قاري احمد الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ دخواخوږۍ ،عطوفت او مهرباني يوه نمونه وه چـې تل به يې په ښكلې څيرې خنداخوره او په فطري ډول به يـې هرڅـوک دحسـنه اخلاقـو مرهون كيدل.

همدغه ډول كسان دالله تعالى غوره بندګان او دهغه له لوري دشـهادت پـه څيـر په ډيرو لوړو مرتبو نازول كيږي .

رحمه الله تعالى



## د شهيد ملاسيف الرحمن منصور ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

### زيږېدنه

ملاسيف الرحمن منصور د شهيد مولوي نصرالله منصور زوی پـه کـال ۱۳۴۸ هـــ ش کې دپکتيا ولايت دزرمت ولسوالۍ دسهاکو دسيمې دهيبت خېلو په کـلي کـې پـه يوه ديانداره او علمي کورنۍ کې دنيا ته سترګې وغړولې .

دسيف الرحمن منصور پلار شهيد مولوي نصرالله منصور ( چـې اصـلي او کـورنی نوم يې مولوي فضل الرحمن و اووروسته يې په مولوي نصرالله منصور شهرت وموند) له شاهي دور څخه دخپلې سيمې او افغانستان په کچـه يـو وتـلي دينـي عـالم او سـياسي مبارز و، چې دغزني له نورالمدارس فاروقيه مدرسې څخه فـارغ التحصـيل او دخـدام الفرقان په نامه دديني علماء کرامو ديوه تنظيم له عاليرتبه مسؤلينو څخه و.

مولوي نصرالله منصور له افغانستان شموله سـياسي او دعـوتي هلـو ځلـو سره پـه څنګ کې دديني علومو تدريس هم کاوو ، او پـه خپـل کـلي ( هيبـت خېلـو ) کـې يـې دديني علومو دتدريس حجره درلوده .

سيف الرحمن منصور دمولوي نصرالله منصـور دوهـم زوی و چـې پـه يـوه درانـه علمي کاله کې وزېږېد، دخپل عالم او مجاهد پلار په سيوري کې يې وده وکـړه ، او لـه کوچنيوالي څخه په ديني او جهادي روحيه وروزل شو .

### د زدکړو سلسله

ملاسيف الرحمن منصور خپلې ابتدائي زده کړې په خپـل پلـرني ټـاټوبي کـې لـه خپل پلار مولوی نصرالله منصور څخه پيل کړې. وړاندې وويل شول ، چې شـهيدمولوي

نصرالله منصور دزرمت په هيبت خېلو کې مدرسه درلوده ،ملاسيف الرحمن منصور ابتدايي زده کړې همدلته پيل کړې. کله چې د داودخان دواکمنۍ په وخت کې په افغانستان کې په سياسي فعاليتونو باندې بنديز ولګول شو، او په ځانګړي ډول په سياسي مبارزو علماء کرامو باندې دژوند کړۍ تنګه شوه، مولوي نصرالله منصور هم دحالاتو دسختيدو له امله د داودخان دواکمنۍ په دوهم کال خپل کور او عيال له خپل کلي ( هيبت خېلو ) څخه دزرمت ولسوالۍ غرنۍ سيمې ( شاهيکوټ ) ته نقل کړ، او هلته يې امامت ، تدريس او سياسي اصلاحي فعاليت پيل کړ. سيف الرحمن دلته هم ابتدايي ديني زده کړې تعقيبولې خو وروسته دحالاتو دډيرو سختيدو له امله مولوي نصرالله منصور صاحب خپل کور بيرته خپل کلي ته واستاوو او خپله يې د ډيورنډ کرښې بلې غاړې ( دشمالي وزيرستان ميرانشاه ته ) هجرت وکړ، وروسته کله چې په افغانستان کې کمونيستان واک ته ورسيدل او مهاجرت لړۍ پيل شوه ، سيف الرحمن منصور هم له خپلې کورنۍ سره لومړی ميرانشاه او بيا پيښور ته وليږديدل. ملاسيف الرحمن منصور څه موده دپښتونخوا د ډيره اسمعيل خان په کلاچي نومې سيمه کې په جامعه نجم المدارس او په ګوجرانواله کې په جامعه عربيه کې زده کړې ترسره کړې، او وروسته يې د ډيرې مودې لپاره د پيښور په بخشي پل او باړه کې په الجامعة نورالمدارس فاروقيه کې زده کړو ته دوام ورکړ .

په دې مدرسه کې يې نهم صنف ولوست ، او وروسته په جهاد کې دمصروفيت له امله دخپلو زده کړو په پوره کولو ونه توانېد. په مروجو ديني زده کړو سربيره ملاسيف الرحمن منصور د ( اسلامي سياست او اسلامي دعوت ) په نامه هغه ځانګړي کورسونه هم ويلي و چې دشهيد مولوي نصرالله منصور لخوا به د مدرسو دکلنيو رخصتيو په مهال طالبانو ته ويل کيدل. په دې سربيره ملاسيف الرحمن منصور حربي او نظامي درسونه هم په ښوښو ځله لوستي و. دروس ضدجهاد په مهال دجهادي اعداد په يوه مرکز کې ملاسيف الرحمن منصور له ډيرو نورو ملګرو سره په سپکو وسلو سربيره د څو ډوله توغنديو لکه ( ميلان ، SPG-۹ ، ۸۲ ملي متري توپ او RPG

راكـړ ) ځـانګړي مسـلكي زدكـړې تـرسره كـړې ، دغـه راز دكمـونيزم ضـد جهـاد پـه وروستيو كلونو كې يې په پكتيا كې دټانک ، توپچي او نظامي نقشو پـه برخـه كـې هـم عملي زده كړې وكړې ، دنوموړي جهادي ملګري وايي ، ملاسـيف الـرحمن منصـور پـه دې سربيره چې يو ماهر ټانكس و ، په جګړه كې په استعماليدونكو ټولو سـپكو او درنـو وسلو كې يې مهارت درلود او په مؤثره توګه يې استعمالولای شوای .

## دطريقت بيعت

ملاسيف الرحمن منصور لكه څنګـه چـې لـه كفـارو او دهغـوی لـه پيروانـو سره دوسلوالې مبارزې دډګر مجاهد و همدارنګه يې له نفس امـاره او شـيطان سره دجهـاد لاره هم په پوره ميړانه پاللــه. څرنګه چې دده پلار شهيد مولوي نصرالله منصور دكابـل دقلعه جواد له حضرت ضياء المشائخ محمد ابراهيم مجددي رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره نږدې تعلـق او بيعت درلود ، ملاسيف الرحمن منصور هم دنقشبنديه مجدديه طريقي وتلی صوفي او سالک و .

ملاسيف الرحمن منصور پـه پيـل كـې لـه مرحـوم خليفـه صـاحب فضـل الـدين (مشهور دارغندۍ په خليفه صاحب ) سره بيعت كړی و. او دهغه له وفات وروسته يې دزرمت له خليفه صاحب دين محمد او دوردګو دجغتو له خليفـه صـاحب احمدضـياء سره هميشنی تعلق او رابطه درلوده .

دتصوف دلارې ديوه لاروي په توګه ملاسيف الـرحمن منصـور پـه شخصيـ توګـه خورا تقوی لرونكی و، چې دجهادي مشرتوب په مهال يې په ملګرو هميشه ځينې فـوق العاده معمولات مقررول ، دبيلګې په توګه دپنځه لمونځونو له جماعت وروسته پنځـه سورتونه لوستل ( سهار سورت ياسين ، ماسپښين سورت الفتح ، مازديګر سورت النبـاء ، ماښام سورت نوح ، ماخستن سورت الملک ) دغه راز سهار له لمانځه وروسته دخوب په ځای وظيفه ياسپورت كول او مـازديګر ( خـتم خواجـه ګـان ) كـول هـم دملاسـيف الرحمن منصور له معمولاتو څخه و .

ملاسيف الرحمن منصور دڅوند په وروستيو کې دتصوف مروج مراحل پای ته رسولي وو، دنوموړي جهادي ملګري په بيلابيلو جهادي مراحلو کې دده د کراماتو کيسې کوي ، چې ترټولو ښکاره کرامت يې دشهادت په ورځ ليدل شوی و.

## د کمونيزم ضد جهاد او په اسلامي امارت کې يې خدمات

ملاسيف الرحمن منصور له ماشومتوبه په جهادي روحيه روزل شوی او له جهادي عشق او جذبې ډک زړه يې درلود ، دنوموړي دکشرتوب يو ملګری ( قاري اکمل ) وايي: هغه وخت چې دملاسيف الرحمن منصور عمر يوازې ۱۲ کاله و او د ډيره اسمعيل خان په کلاچي نومې سيمه کې يې درس وايه، کله به چې په مدرسه کې ختم کيده ، يا به دعا کيدله ، ده به ددعا په وخت سخت ژړل اوبې دريغه اوښکې به يې تويولې ، قاري اکمل وايي: يوه ورځ مې ترې وپوښتل ، ولې داسې ژاړې ؟ ملاسيف الرحمن په ځواب کې راته وويل ( ګوره مونږ دلته په ارام په مدرسه کښې ناست يود افغانستان په غرونوکي به څومره مجاهدين نن بيايه شهادت رسيدلي وي، الله تعالى دي ماته ځواني په نصيب کړي چې دمقدس جهادلپاره زه هم دمجاهدينوپه صفونوکښي وردننه شم دالله تعالى په لار کې وجنګيږم اودشهادت مقام مي په نصيب شي )

دهمدې جهادي فطري مينې له امله و چې ملاسيف الرحمن منصور له تاندې ځوانۍ بيا دڅوند تر وروستۍ شيبې پورې ټول ژوند په جهادي هلوځلو کې تېر کړ. نوموړی ۱٦ کلن و چې په لومړي ځل يې په ننګرهار ولايت کې دروسانو او دهغوی دمزدورانو په خلاف په جهادي عملياتو کې برخه واخيسته، چې په دې لومړي جهادي سفر کې ټپي هم شو، وروسته يې دخوست په ولايت کې هم په جهادي عملياتوکې ګډون درلود، دغه راز يې په ۱۹۸۷ ـــ ۱۹۸۹ کلونو کې دپکتيا ولايت په زرمت ولسوالۍ کې په بيلابيلو جهادي تعرضونو کې شموليت درلود ، چې په دې کلونو کې هم دګرديز په دفاعي پوستو ديوه تعرض په مهال ټپي شو ، په ۱۹۸۹ کال کې چې

کمونیستو ګلم جم ملیشو دزرمت په ولسوالۍ برید وکړ، په دې وخت کې ملاسیف الرحمن منصور دیوه جهادي ګروپ مشري په غاړه درلوده .

کله چې دکمونیزم ضد اسلامي جهاد بریالی شو، ملاسیف الرحمن منصور دپکتیا په ګردیز کې په خپل کور کې اوسېده ، په ۲۰/۱۱/۱۳۷۱ هـ ش نیټه کله چې مولوي نصرالله منصور په یوه ناځوانمردانه برید کې په شهادت ورسید، سیف الرحمن منصور ته دخپل کور په چارو سربیره دخپلو جهادي ملګرو دسمبالښت اومشرتوب چارې هم ورله غاړې شوې. په دې موده کې نوموړی دپکتیا په ګردیز کې د ۱۵ مې زغره والې لواء قومندان او دشهید منصور صاحب دجهادي ملګرو له مشرانو څخه و، چې ورځنۍ مصروفیت یې دخپلې تړواک لاندې سیمې دامنیت ساتل او دجهادي ملګرو اعداد او نظامي تربیه وه. په دې موده کې نوموړی په ګردیز کې دهغه کسانو په مقابل کې په کلکه ودرید چې غوښتل یې دښار امنیت اخلال کړي ، چې له همداسې کسانو سره په یوه برخورد کې یو ورځ دچپ لاس په ورغوي ټپي هم شو ، او دری ګوتې یې له کاره ولوېدې.

کله چې دعامه فساد په مقابل کې له کندهار څخه دطالبانو او دیني علماء کرامو تحریک پیل شو، ملاسیف الرحمن منصور او دده ملګرو ( چې زیاتره یې طالبان وو) دیوه هیئت له لیږلو وروسته سمدستي ترې ملاتړ اعلان کړ. دده ځیني ملګري دیوه کاروان په شکل دطالبانو سره دپیوستون په خاطر دکندهار په خوا وخوځیدل ، دوی دښرنې او او شلګر له لارې ترمقر پورې ورسیدل ، چې دا وخت دطالبانو تحریک هم همدې سیمې ته راورسید او دوی ورسره یوځای شول او په ګډه یې دغزني دښار په لور حرکت پیل کړ، کله چې په غزني ښار برید کیده خپله ملاسیف الرحمن منصور دپکتیا له خوا له څوټانګونو او مسلحو ملګرو سره په عملیاتو کې برخه واخیسته ، دغزني په یونټ باندې عملیات داسلامي امارت په پلوۍ دنوموړي لومړني جهادي عملیات وو. دغزني له نیول کیدو وروسته داسلامي تحریک دمشرانو لخوا ملاسیف الرحمن منصور او دده ملګرو ته د ټانکونو او نورو زرهي او توپچي وسایطو مسؤلیت

وسپارل شو ، څرنګه چې دمنصور صاحب ملګرو له وړاندې په دې برخه کې زده کړې درلودې ، دوی په غزني کې موجود ټانکونو هم سمبال کړل ، دغه راز يې له کندهار ښار څخه هم څو ټانکونه راوستل ، له دې وروسته ملاسيف الرحمن منصور په ميدان ښار ، لوګر او چهاراسياب کې داسلامي تحريک په پرمختيايي عملياتو کې برخه واخيسته ، دکابل له فتحې څه موده وړاندې دپکتيکا په اورګون کې چې د ( پري ) په نامه ديوه جګړه مار په خلاف عمليات ترسره شول ، هم ګډون يې په کې درلود چې ددې عملياتو وروسته يې دفتحې په هغه کاروان کې دتحريک دنورو مشرانو ترڅنګ ديوه ډلګۍ مشر په توګه سفر پيل کړ، چې له پکتيا څخه روان شو، ځاځي ، سپينه شګه ، ازره او حصارک يې تصفيه کړل ، جلال اباد يې ونيو او وروسته يې کابل فتحه او احمدشاه مسعود يې دپنجشير تر (دالان سنګ) تنګي پورې په شا وتمباوو.

دکابل له فتحې وروسته ملاسيف الرحمن منصور دقرغې داتمې فرقې دمعاون او دټانک کنډک دمسؤل په صفت دنده پيل کړه ، نوموړی بياپه افغانستان باندې دصليبيانودبريدترمهاله په همدې دنده او دکابل دشمال په دفاعي خطوطو کې پاتې شو، چې په دې ترڅ کې يې ډېره موده د شکردرې دلومړنۍ جنګي کرښې دمسؤل په صفت هم دنده ترسره کړه .

په شمالي کې داسلامي امارت په څو واريزو پرمختګونو کې په ټولو کې ملاسيف الرحمن شرکت درلود، چې دنوموړي دوروڼو له جملې ملامنصور الرحمن منصور هم په همدې استقامت په شهادت ورسيد ، کله چې په ۱۹۹۷ ميلادي کال کې داسلامي امارت مجاهدين دسالنګ له تونل څخه ووتل، ملاسيف الرحمن منصور او ملګري يې هم ددې کاروان برخوال وو ، ددې عملياتو په مهال نوموړی پلخمري ته نږدې د رباتک په سيمه کې په نس کې په مرمۍ ولګېد ، او سخت ټپي شو ، چې دهليکوفتر په واسطه دجګړې له سيمې کابل ته انتقال کړای شو .

تردې وروسته دکابل په شکردره کې دمسؤليت په مهال دهاوان په چره دنوموړي ښی لاس سخت زخمي شو، دښي لاس دخنګلې هډوکی ( مفصل ) يې له

منځه لاړ او لاس یې په بشپړ دول له کاره ولوېد ، تردې ټپ وروسته دنوموړي په دواړو لاسونو کې یوازې دچپ لاس دوو کوچنیو گوتو حرکت کاوو، نوریې دبیا بیازخمونه لـه وجې لاسونه له کاره لویدلي وو، په شمالي باندې دوروستیو تهاجمي عملیاتو پـه مهـال کله چې ملاسیف الرحمن منصور له خپلو ملگرو سره ددښمن له خوا محاصره شـو ، نـو دنجات دیوازیني لوري په توگـه یـې دغوربنـد پـه خـوا پرمختـگ وکـړ ، پـه دې توگـه نوموړی له ډیرو مجاهدینو سره یوځای ددښمن له ضرر څخـه پـه امـن شـول ، پـه دې عملیاتو کې هم نوموړی په سر باندې ټپي شو ، خو دا ځل یې ټپ ډیر ژور نه و.

کله چې په افغانستان امریکا برید وکړ ، ملاسیف الرحمن منصـور هـم داسـلامي امارت دنورو مجاهدینو سره دشمال په دفاعي خطوطو کې تروروستۍ شیبې مقاومت وکړ ، کله چې داسلامي امارت ځواکونو له کابـل څخـه عقـب نشـیني وکـړه ملاسـیف الرحمن منصور هم له خپلو څوتنو ملگرو سره لوگر ته راغی ، په دې وخت کې نوموړي داسلامي امارت نورو مسؤلینو او جهادي ملگرو ته مشوره ورکړه ، چې دشـمالي ټلـوالې دپرمختگ دمخنیوي لپاره دې په لوگر یا دتیرې په کنډو کې دفـاعي خـط جـوړ شي ، خو څنگه چې دامریکایانولخوا سخت بمبار روان و وروسته مصلحت دا وبلل شو ، چـې دجبهه یي مقاومت پـه ځـای دې چریکـي جنگونـه پیـل شي ، پـه دې توگـه ملاسـیف الرحمن منصور له خپلو ملگرو سره خپلې سیمې ( دپکتیا زرمت ) ته راغی ، پـه همـدې وخت کې سره له دچې حالات نامساعد وو نوموړي دعالیقدر امیرالمؤمنین دلیـدلو او هدایت ترلاسه کولـو پـه نیـت کنـدهار تـه سـفر وکـړ ، ددې سـفر پـه مهـال نومـوړي دعالیقدر امیرالمؤمنین په لیدلو بریالی نه شو ، خو دمخابرې له لارې یـې داپیغـام او هدایت ترې ترلاسه کړ، چې ( ټولو مجاهدینو ته ووایئ چـې غرونـو تـه وخیـږي ، او پـه هرډول چې ممکنه وي دامریکایانو په خلاف جهاد ته ادامه ورکړئ ) لـه کنـدهار څخـه له راگرځیدو وروسته نوموړي بې له ځنډه دشاهیکوټ په غره کې دجهادي قرارگاه پـه جوړولو او چریکي جهاد په پیلولو شروع وکړه .

## دمهاجرو مجاهدینو برخلیک او دشاهیکوټ جګړه

ملاسیف الرحمن منصور داسلامي امارت دواکمنـۍ پـه مهـال هـم لـه مهـاجرو مجاهدینو سره ځانګړی تعلق او خواخوږي درلوده، نوموړي به ملګـري همیشـه پـه دې مامورول چې ددې مهاجرینو سره ښه او له تبعیضه پاکه ګوزاره وکړي ده به ویل ( موږ ته کیدای شي کله ناکله دخاورې یاقدرت سـوچ راولـویږي خـو دې خلکـو یـوازې دالله تعالی ددین په خاطر خپل وطنونه پرې ایښي او موږ ته یې پنا راوړې ) دکابل له سقوط وروسته دمهاجرو مجاهدینو په سلګونو کـورنۍ هـم لـه کابـل څخـه دپکتیـا پـه خـوا وکوچېدې، سره له دې چې لـه دوی سره لویـان او نارینـه هـم وو ، خـو زیـاتره یـې بې سرپرسته تورسرې او ماشومان وو چې مشران یې یا پخوا شهیدان شوي وو او یا دهیواد په شمال کې بند پاته وو.

په دوی کې پیژندل شوې څیرې قاري محمدطاهر فـاروق، ابوخبـاب المصرـي ، عبدالرحمن کنیډي ،شیخ ابوعلي ، ابواللیث اللیبي ، سیف العدل ، ابومصعب السـوري ، زیدالخیر ، ابومحمـد او عبـدالهادي وو، چـې ورسره دعـربي ، شیشـاني ، ازبکـي ، او ترکستاني مهاجرینو په سلګونو مجاهدین او کورنۍ وې .

ملاسیف الرحمن منصور دخپـل یـوه ملګـري ( دجنـوبي وزیرسـتان اوسـیدونکي شهیدنیک محمد ) سره په ګډه ددغو مهاجرینو دخوندي کولو او نجـات لپـاره داسـې ترتیب جوړ کړ، چې په پایله کې یې په زرګونو مجاهدین او مسلمانې مهاجرې تورسرې دامریکایي وحشي یرغلګرو له ضرر څخه په امن او زیاتره یې خپلو اصـلي هیوادونـو تـه ورسول شوې، دوی په لومړي قدم کې په زرمت او دپکتیا او پکتیکا په نورو سیمو کـې دولسي افغانانو په منځ کې ددې مهاجرینو دخوندي کولو کوښښ وکـړ ، شـهید نیـک محمد په وزیرستان کې ددوی دورتګ لپاره زمینه برابـره او ځایونـه پیـدا کـړل، او لـه هغه ځایه یې ترخپلو هیوادونوپورې ددوی درسولو پروګرام عملي کړ. ددې مهـاجرینو موټران او نور دخرڅلاو وړ وسائل په نغدو پیسو خرڅ کړای شول او دوی ته یې پیسـې تسلیم شوې وروسته دیوه پټ او منظم پروګرام په ترڅ کې ددې مجاهدینو تورسرې او

ماشومان وزیرستان او له هغه ځایه دکراچۍ ترساحله رسول کیدل، او له هغه ځایه دهوا یا سمندر له لارې خپلو هیوادونو ته ستنیدل ، ددې بهیر په پایله کې په سلگونو کورنۍ په ځانگړي توگه دعربو مجاهدینو په عزت سره خپلو اصلي ټاټوبیو ته ورسول شوې .

د مهاجرو مجاهدینو له خوندي کولو او لېږد سره سره ملاسیف الرحمن منصور او ملگري یې دامریکایانو په خلاف دمنظم مقاومت جاري ساتلو او لومړنیو امادگیو ته هم متوجه وو، دوی دهمدې لپاره دزرمت ولسوالۍ په جنوب ختیځ کې دشاهیکوټ په غرونو کې ( چیرته چې دروس ضد جهاد په مهال دمجاهدینو یوه قوي جبهه موجوده وه ) دیوه جهادي مرکز په جوړولو پیل وکړ ، دې مرکز ته که له یوې خوا له گردیز اونورو سیمو څخه سپکې او درنې وسلې او مهمات انتقال شول، له بلې خوا دشاهیکوټ درې په ټولو خواوو کې دمحکمو مورچلو او سنگرونو دجوړولو او د دافع هوا په شمول دبیلابیلو وسلو نصبول هم روان وو.

مجاهدینو د ۲۰۰۱ لومړي کال له دسمبر څخه د ۲۰۰۲ کال ترمارچ پورې په خورا سختې یخنۍ او پیچلو شرایطو کې ددې مرکز دجوړولو او استحکام لپاره کارکاوو ، دا داسې وخت و چې امریکایي یرغلگر دځمکې او هوا له لارې دمجاهدینو په تلاش کې وو، او افغان مجاهد اولس په ټولیزه توگه له سخت عدم اطمنان او ناهیلۍ سره لاس او گریوان و.

ملاسیف الرحمن منصور د ناهیلیو په دې سخت او امتحاني پړاو کې یوازې په الله تعالی باندې توکل وکړ ، دحالاتو نامساعدتیا، دوسائلو او ملگرو کموالي او یوازیتوب یې عزم متزلزل نه کړ، او نه یې دجهاد او تعقل دځینو هغو پخوانیو مدعیانو تبلیغاتو او مخالفت ته توجه وکړه، چې دامریکایانو په مقابل کې دملاسیف الرحمن منصور وسلوال مقاومت یې لیونتوب او بغاوت باله، ملاسیف الرحمن منصور په خپلو ملگرو او مخالفینو د اتمام حجت لپاره یوه ورځ خپل ټول مخالفین او موافقین دزرمت ولسوالۍ مرکز ته نږدې په یوه ختیین مسجد کې راټول کړل، لومړی یې دهغوی

نظريات واوريدل ، چې د هرچا نظر جلا و، او وروسته يې په صريحوټکو ټولو حاضرينو ته وويل ( زه که پوره عالم نه يم ، خو الحمدلله دومره پوهيږم چې امريکايان متجاوز کافران دي او په مقابل کې يې جهاد فرض عين دى، له بلې خوا دخپل شرعي امير ( عاليقدراميرالمؤمنين ) لخوا هم ماته همداسې هدايت دى ، چې دامريکايانو په مقابل کې مسلح جهاد ته ادامه ورکړم ، زه نه غواړم تاسو ته اوږدې خبرې وکړم ، دوروستي ځل لپاره درته وايم ، که څوک غواړي له موږ سره په جهاد کې ملګرتيا وکړي ، نو له موږ سره دې ( بيعت بالشهادة ) وکړي ، موږ له جهاد پرته بله هيڅ لاره نلرو )

## په شاهيکوټ کې دامريکايانو په خلاف جګړه

دملاسيف الرحمن منصور په مشرۍ دشاهيکوټ مجاهدينو پروګرام درلود، چې په دې ستراتيژيکه سيمه کې ديوه محکم سنګر له جوړولو وروسته دهوا له تودېدو سره په هوارو سيمو کې دامريکايانو په خلاف چريکي مقاومت پيل کړي، په دوی کې دپکتيا ، پکتيکا او غزني ولايتونو دمجاهدينو سربيره يو شمير مهاجر مجاهدين چې زياتره يې دقاري طاهرجان ملګري وو هم وو، چې دټولو مجموعي شمير تقريبا ۱۰۰ تنو ته رسيده ، د ۲۰۰۲ ميلادی کال دمارچ په دريمه نيټه امريکايانو دمخکنيو اطلاعاتو له مخې په دې سيمه حمله وکړه ، چې ورسره مجاهدينو سخت مقاومت پيل کړ ، دې جګړې چې له امريکايي کوماندويانو سره دافغاني مجاهدينو لومړنۍ مخامخ اوږده جګړه وه څه کم دوه اونۍ دوام پيدا کړ ، چې په امريکا سربيره د ډنمارک ، استراليا ، کاناډا ، فرانسې ، جرمني او نارويې ځانګړو ځواکونو هم په کې برخه درلوده .

ددې جګړې په مهال مجاهدينو دخورا دقيق پروګرام او طرح ريزۍ له مخې امريکايي ديسانټ ځواکونه په بيا بيا په پيچلو غرنيو سيمو کې راګير او له منځه يووړل ، مجاهدينو چې تقريبا په ټولو حاکمو نقطو يې دافع هواوسلې نصب کړې او مورچلونه جوړ کړي و، دښمن ته يې موقع ورکوله ، چې ددوی تراور لاندې سيمو کې له چورلکو څخه ځواکونه پياده کړي، خو کله به چې له دې پياده شويو عسکرونه چورلکې

پورته شوې، مجاهدینو به برید پرې وکړ، او دمجاهدینو دافع هوا به ددښمن چورلکو ته ددې اجازه نه ورکوله، چې خپل په جګړه کې ښکیل عسکر له سیمې وباسي .

امریکایانو چې دې عملیاتو ته یې د اناکونډا ( ښامار ) نوم ورکړی وو وویل چې دعملیاتو په مهال یې ترلسو زرو ډیر بمونه ورولي دي، چې زهري ، کیمیاوي او اکسیجن ختموونکي بمونه هم په کې شامل وو، څرنګه چې ددې جګړې په دریمه ورځ دشاهیکوټ په غرونو درنه وواره ووریده ،او دتودوخې درجه دجګړې په سیمه کې ترصفر ښکته وه ، نوځکه ددشمن زهري وسلو مجاهدینو ته دپام وړ زیان نه رساوو.

دجګړې له پیل دوه اونۍ وروسته دمارچ په ۱۸ مه په افغانستان کې امریکایي مشر جنرال ټومي فرانکس ددې عملیاتو پای اعلان کړ، نوموړي په رسمي توګه وویل چې په دې عملیاتو کې یې ۲ چورلکې نسکورې شوې ، ۸ عسکریي وژل شوي او ۸۲ نور یې ټپیان دي ، خو هغه څه چې ددې جګړې برخوالو مجاهدینو دسر په سترګو لیدلي ، او یا وروسته ددې جګړې ګډونوالو امریکایي سرتیرو په خپلو خاطرو کې لیکلي ، دامریکا تلفات تردې څو چنده زیات ښيي .

دبیلګې په توګه یوامریکایي سرتیری (سارجنټ براون ) په شاهیکوټ کې یوازې دلومړۍ ورځې دجګړې کیسه داسي کوي ( په لومړۍ ورځ دجګړې له پیل لږ ساعت وروسته زموږ یوه له سرتیرو ډکه چورلکه وویشتل شوه او وغورځیده، چې ځیني سرتیري یي مړه او ځیني ټپیان وو. زه دژغورنې په ټیم کې وم، چې هڅه مو کوله ټپي سرتیري وژغورو، خو موږ دلویدلي چورلکې ۲۰ مترۍ ته لانه وورسیدلي چې دتوغندیو او سپکووسلې ډزې راباندې پیل شوې، دژغورنې دډلې څلورتنه سرتیري ووژل شول ، په دې ورځ زموږ اودښمن ترمنځ جګړې ۱۴ ساعته دوام وکړ ، جګړه په دومره نږدې واټن کې وه چې زموږ بریدکوونکي الوتکه له ۵۰۰ پاویزو بمونو سره زموږ په سر تاویدله خو له دې امله ورته دبمبار اجازه نه کیده چې له دښمن سره زموږ دتلفاتو ویره هم وه ، وروسته معلومه شوه ، چې ۷ تنه امریکایي سرتیري وژل شوي دي ) ( له افغانستان تروروستي افغانه کتاب ۴ ټوک څخه په لنډیز)

په دې جګړه کې دامريکايانو ګڼې چورلکې دمجاهدينو په بريدونو کې نسکورې شوې خو داچې دجګړې سيمه پراخه وه او په بيلابيلوبرخو کې جګړه روانه وه دغه راز امريکايانو هم ټوله هڅه کوله چې تلفات پټ کړي ، دقيقا نه شي ويل کيداى چې امريکايانو ته څومره تلفات ورسيدل، خودا اټکل کيداى شي، چې دغورځولو شويو چورلکو شمير تر٥ ډېر او دوژل شويو امريکايانو شمير تر ١٠٠ تنو زيات وو.

په دې جګړه کې د٤٠ په شاوخواکې مجاهدين هم په شهادت ورسيدل ، چې دشهيدانو په ډله کې دمجاهدينو مشر ملاسيف الرحمن منصور او مرستيال يې ملا فدا محمد جواد هم وو.

د شاهيکوټ جګړه يوه عادي جګړه نه وه، په دې جګړه کې په لومړي ځل دامريکايي ټيکنالوژۍ او پوځي برترۍ پوښلى ضعف رابرسيره او دمجاهدينو مورال ورسره خورا لوړ شو، د جګړې له پيل دوه اونۍ وروسته سره له دې چې امريکايانو خپل عمليات پاى ته رسيدلي او موفق اعلان کړل، خو ددوى په وړاندې مقاومت په ټول افغانستان کې په يوه نوي روحيه جاري پاته شو.

## دملاسيف الرحمن منصور شهادت

ملاسيف الرحمن منصور دبل هرربښتيني مجاهد غوندې له پيله دشهادت تمنا لرله، او په ټول زړه ورته اماده و، د شاهيکوټ دجګړې په مهال نومړى دجګړې له پيل څخه دمخابرې له لارې له ټولو استقامتونو او مجاهدينو سره په تماس کې واو د ( ثابت) په مستعار نامه يې دجګړې وضعيت کنترولاوو ، دجګړې په مهال نومړى په بيا بيا دامريکايانو ترسختو بريدونو او بمبار لاندې راغى ، خو الله تعالى ترې وساته ،تر څو يې دجګړې په اوومه ورځ په ١٩/١٢/١٣٨٠ هـــ ش نيټه چې د ١٠/٣/٢٠٠٢ ميلادي سره سمون خوري دشهادت ارمان ترسره شو.

دنومړي کشر ورور ملاعبدالرحمن منصور چې دهمدې جګړې برخوال و په دې اړه دسترګو ليدلى حال داسې بيانوي ( مورږ ته ديوه بل مجاهدشهيدجواد صاحب

دشهادت خبر راورسـيد، او دهغـه پـه خـو ا ور روان وو چـې جسـد يـې ترلاسـه کـړو، مازديگر مهال ودشاهيکوټ درې په جنوبي څنډه کې دمارزکو له کلي لاندې دخوړ پـه غاړه روان وو، چې يوډېر خوږ تورږم ( بوی ) مو حس کړ ، ملگري دهمدې خواږه بوی په خوا روان شوو ، نږدې شل متره لرې ، څو شهيدجسـدونه پراتـه وو، او شـاوخوا دبمبـار نښې وې ، ماچې وکتل دقومندان صاحب ( ملاسيف الرحمن ) دخړرنگه ملتانۍ لونگۍ ټوټې مې وپيژندې چې په شاوخوا ونو کې بندې وې، جسدونه مـو وپلټـل د يـوه جسـد خاص خوشبويي تله، مخونه يې له منځه تللي و، خو ماچې وکوت د چپ لاس د ورغـوي او دنس له پخوانيوپرهارونو مې وپيژانده ، چـې همـدا جسـد دقومنـدان صـاحب دی، څلور جسدونه نورهم ورسره په خواکې وو ، چې يـوه د فضـل محمـد پـه نامـه دزرمـت ولسوالۍ داوسيدونکي يوه مجاهـد و ، او دری نـور مهـاجر مجاهـدين وو، پـه همـدې ساعت ددې اجسادو په تجهيز او تدفين بوخت شوو، دقومندان صاحب شـهيد جسـد مو په همدې شپه زرمت ته راکوز کړ، او د ځينورازدارو علماءکرامو په حضور کـې مـو له جنازې وروسته خاوروته وسپاره )

د شهيدملاسـيف الـرحمن منصوردشـهادت خـبر دعـامو مجاهـدينو دروحيـاتو دلوړساتلو لپاره په خورا رازدارۍ پټ وساتل شو ، تردې چې امريکايي اسـتخباراتو هـم دکلونو له تيريدو سره سره دغه راز معلوم نه کړای شو، او له شهادت څوکاله وروسـته يې هم په سيمه کې دده تصويرونه له فضاء څخه شيندل ، او په سريي انعام مقـرراوو، چې دامسئله دامريکايي استخباراتو دضعف يو څرگند مثال بلل کيدای شي .

## دشهيد ملاسيف الرحمن منصور دتقوی او ديانت ځينې خاطرې

قومندان سيف الرحمن منصور الله تعالی له کوچنيوالي څخه په ښو اخلاقو ، تقـوی او ديانت باندې ښايسته کړی و. دلته که دنوموړي دبيلابيلو حسنه اخلاقو پـه اړه خـاطرې پـه تفصيل را اخلو ښايي کيسه ډيره اوږده شي، نو ځکه به په څو واقعو کفايت وکړو .

**ـــ له عبادت او تهجد سره مينه:** دنوموړي يوپخوانی دمدرسې ملگـری ( قـاري اکمـل ) دده دهغـه مهـال کيسـه کـوي چـې ملاسـيف الـرحمن ۱۳ کلـن و( يـوه شـپه

دگوجرانوالې په مدرسه عربيه کې داوسيدو په مهال چې ډېر ديخ موسم و، دشپې راويښ شوم ، ومې کتل ، سيف الرحمن په خپل ځای کې نشته ، انديښنه مې شوه ، بهر ووتم هرځای مې وکوت ، خو نه و، اخر دمدرسې بام ته وختلم ، گورم چې ملاسيف الرحمن يوازې يوکميس اغوستی او په دې سخت يخ کې دتهجد په لمانځه ولاړ دی ، زه يې هم ترشا غلی ودريدلم ، دتهجد لمونځ يې خلاص کړاو بيا يې په دعا پيل وکړ ، په دعا کې په ژړا شو ، اوددعاالفاظ ترې په زوره شول ، الله تعالی يې په داسې الفاظو مخاطباوو لکه مخامخ چې الله تعالی ويني او زاری ورته کوي ، دژړا او دعا دې حالت يې بيخي ترډېره دوام وکړ ، اخر زه له يخ نه سخت په تنگ شوم بيرته کوټې ته راغلم ، خو له صبح صادق نه لږ مخکې پوه شوم چې ملاسيف الرحمن بيرته خپل ځای ته راغی ، ماپوښتنه ترې وکړه چيرې تللی وې ده يوازې دا راته وويل ( زړه مې لږ ډک و تش مې کړ )

دنوموړي يوبل ملگری مفتی فيض محمدصاحب او ځيني نور ملگري يي هم وايي ، چې دشپې عبادت دملاسيف الرحمن له هميشنيو عاداتو څخه وو ، چې دتعلم ، جهاد او حتی دزخميتوب په حالت کې يې په هسپتال کې هم نه قضاء کاوو.

## ــ تقوی او حق گويي

شهيد ملا سيف الرحمن منصوربه دخپلې شخصي تقوا ترڅنگ خپلو ملگروته هم تل دتقوا توصيه کوله او ويل به يي گورئ دا تقوا ډېره سخته نده فقط يواځې خپل نفس ترپښو لاندې کړئ وروسته تقوا اختيارول آسانه کارده .

مفتي فيض محمد وايي: دنوي ځوانۍ په مهال يو وخت زه ملاسيف الرحمن منصور دده له والد شهيدمولوي نصرالله منصور سره دچا کره په ميلمستيا لاړو ، هلته ډېر خلک راغلي وو، خو ملاسيف الرحمن منصورچې کله په دې پوه شو، چې کوربنوتردې پخوا غيرشرعي مالي کاروبار کاوو، د ډوډۍ په مهال ملاسيف الرحمن منصور له ډوډۍ نه لاس ونيو ، او له هرڅومره ټينگارسره يې څکه هم پرې ونه کړه ، زموږ داگومان شو چې روژه به يې وي ، خو چې خپل ځای ته راغلو ده ډوډۍ وغوښته ،

دغه راز یې خپل پلار شهید مولوي نصرالله منصور صاحب ته وویل ، چې ولې دداسې خلکو میلمستیا ته ځې،چې ډوډۍ یې حلاله نه وي ، خو هغه په ځواب کې ورته وویل چې دا خلک اوس دمجاهدینو خواخوږي دي ، اوس یې ګټه پاکه ده ، نو ځکه یې ډوډۍ خوړل کوم شرعي حرج نه لري .

## ــ له بیت المال سره احتیاط

دتحریک په مهال ددوهم ځل زخمي کیدو نه وروسته، چې دلاس هډوکی یې له منځه لاړ ، ملاسیف الرحمن منصور په کندهار کې دعالیقدرامیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد ملاقات ته لاړ، ملاصاحب ورته وویل ، چې دلاس دعلاج لپاره به دې خارج ته واستاوو، خو ده په ځواب کې ورته وویل چې زه یوځل له وتلي جراح ( موسی وردګ ) سره مشوره کوم ، چې که دخارج دعلاج په واسطه زما لاس ددې جوګه کیږي ، چې وسله پرې وچلوم ، نو لاړ به شم ، کنه نو ولې هسې دبیت المال پیسې خرچ کړم ، ډاکټر موسی وردګ ده ته وویل چې که هرډول علاج وکړي ، په لاس کې به دې یوازې یوڅه حرکت پیدا شي ، نور ددې وړ نه شي کیدلای چې بیا وسله پرې وکاروې ، له همدې امله نوموړی له دې معالجې او سفر څخه منصرف شو .

دغه راز دده یوه ملګری ( قاري حبیب ) وایي ملاسیف الرحمن منصور دتحریک په مهال دخپل ورور په واده کې شرکت ونه کړ ، کله مې چې پوښتنه ترې وکړه ، نو اول یې نورې بهانې کولې خو اخر یې اصلي خبره راته وکړه ، او راته ویې ویل ( ما دا فکر وکړ ، چې که ددې واده په وخت کې له خپل موټر سره کورته لاړ شم ، نو د واده په وخت کې ضرور د خپلوانو دوړلو او راوړلو لپاره دموټر ضرورت پیښیږي ، او داد بیت المال موټر ده چې زه نه غواړم په شخصي ژوند کې یې ا ستعمال کړم .

## ــ دشریعت په تعمیل ټینګاراو په دې برخه کې اندېوالي نه پالل

دامارت په مهال دزرمت ولسوال چې یومشهور مولوي اود ملاسیف الرحمن منصور له خورا نږدې او اوږدمهالو ملګرو څخه و دغه راز دهمدې سیمې دوه تنه

پيژندل شوي ، او پيسه دار خلک چې له دوی سره يې ډير کومکونه کړي وو، کله چې په يوه مسئله کې درشوت خبره پرې ثابته شوه ، ملاسيف الرحمن منصور دوی ټول دکابل په قرغه کې خپلې قرارگاه ته وروغوښتل له هغه ځايه يې ، په خپل موټر کې واچول ، او نظامي محکمې ته يې وسپارل ، چې بيا ترپايه بنديان وو، په دې کارسره نوموړي ثابته کړه، چې دشريعت او الهي قانون په تعميل کې هيڅ ډول خپلوي ، ملگرتيا او نورملحوظات ورته داهميت وړ نه دي .

**ــ له جهاد سره مينه**

قاري حبيب وايي دکمونيزم ضد جهاد په مهال دملاسيف الرحمن منصور دواده مراسم وو او دی په يوه جهادي مرکز کې په نظامي تعليم بوخت وو پلار يې احوال ورکړ ، چې د واده په شپو کې کورته راشي ، خو دی دجهاد شوق په مخه کړی وو اخر يې پلار مولوي نصرالله منصور خپله په موټر کې دتعليم ځای ته ورغی او له لاسه يې راووست، چې ترکوره يې په موټر کې هم په دې ټينگار کاوو ، چې بايد جهادي تعليم وکړم .

**ــ له شهادت سره شوق**

مولوي ذاکرالله ذاکري وايي ، دکمونيزم ضد جهاد په مهال دگرديز په دفاعي پوستو دتعرض په مهال يې په ياد دي چې ملاسيف الرحمن منصور دتعرض له پيل نه وړاندې دشهادت په هيله خپله زنه په خپله وتړله ، خو په دې جگړه کې دی شهيد نه بلکې زخمي شو .

**اولادونه**

شهيد ملاسيف الرحمن منصور څلور اولادونه ( چې څلور واړه زامن دي ) ترشا پرې ايښي ، چې همدا اوس په ديني زده کړو بوخت دي ، الله تعالی ته سوال کوو ، چې دشهيدقومندان صاحب برکات په دوی باندې کيږدي ، ترڅو همداسې ددين او جهاد سرلوړی اتلان ترې جوړ شي. امين يارب العلمين.

## د شهيد حافظ عبدالرحيم صاحب ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه: قاري سعيد

په افغانستان د امریکایانو برید چې په اسلامي نړۍ د غرب د دريم يرغل (نـوې استعماري جګړې) پيلامه بلل کيږي د خپل ډول يو بې سارى بريد و. شايد ترديې پخوا نړۍ د کوم هيواد يا اولس په خلاف د جګړه مارانو دومره ستر اتحاد يا نظامي ايـتلاف نه وي ليدلی. ترديې پخوا دنړۍ تر ټولو ستر ايتلاف پـه لـومړۍ نړيوالـه جګـړه کـې د متحدينو ايتلاف و چې د شاملو هيوادونـو شـمير يـې تـر ديرشـو نـه زياتېـده، خـو پـه افغانستان د يرغل کوونکو هيوادونو شمير تقريبا پنځوسو ته رسيده چې لسګونو نـورو هيوادونو ورسره استخباراتي،مالي او سياسي ملاتړ او همآهنګي درلوده.

د نړيوال کفر او نفاق دغه عالمګير ايتلاف چې حتی د نړۍ او سيمې سـتر سـتر طاقتونه يې مرعوب کړي او اجباري ملګرتيا ته اماده کړي وو،د ياد وړ خبره دا وه چـې ددې توپان په وړاندې د ولاړو رښتينو مؤمنانو په زړونـو يـې هـيڅ اغيزنـه معلوميـده. دافغانستان مؤمن مجاهدين چې په الهي نصرت يـې اعـتماد درلـود دنړيـوال کفـر لـه هرڅومره غورو او لاپو سره يې په دريځ کې هيڅ تغير رانغـی او ترپايـه خپـل دريـځ تـه وفادار پاته شول.

ددغسې مجاهدينو له جملې يو تن مبارز او مقاوم مجاهد چې هيڅکله يـې عـزم متزلزل نه شو، هيڅکله يي خپل ټوپک له اوږې کـوز نـه کـړ، هيڅکلـه يـې د ضـعف او مورال بايللو احساس ونکړ ، ترديې چې په يوازې ځان يې د کفري اشـغال پـه وړانـدې د مبارزې ميدان تود وساته او په دې ډول يي نوي ځوانان دې لارې ته سـوق کـړل. دغـه مجاهد شهيد حافظ عبدالرحيم و، چې په لاندې کرښو کې يـې يـوه شـيبه پـه يـاد تـم کيږو، هيله ده چې راسره ويې لولئ .

## حافظ عبدالرحیم

حافظ عبدالرحیم د نصرالدین زوی د محمدامین خان لمسی په قوم پښتون/نورزی په ۱۳۷۰ هـ ق کال د کندهار ولایت د بولدک ولسوالۍ د ماشینګزو سیمې په کمالزو کلي کې زیږیدلی دی.

حافظ عبدالرحیم چې په یوه کلیواله سیمه او متدینه کورنۍ کې زیږیدلی و،د ۸ کلونو په عمر و چې مور یې وفات شوه. د لس کلنۍ په عمر یې پلار هم وفات شو او په دې ډول د ماشومتوب په عمر د والدینو له مینې څخه بې برخې شو.

## دزدکړو سلسله

حافظ عبدالرحیم صاحب د ماشومتوب په مهال ابتدایي زده کړې د خپل کلي په مسجد کې پیل کړې د لس کلنۍ په عمر یې د کندهار ښار د هرات بازار د اخند صاحب د دهنې په سیمه کې له یوه مدرس ملا امام څخه دیني کتابونه شروع کړل. دوه کاله وروسته د پاکستان سرحدي ښارګوټي چمن ته لاړ او هلته یې د قاري ولي محمد صاحب په مدرسه کې د قرانکریم حفظ شروع کړ.څه موده وروسته د پاکستان مشهور ښار کویټې ته لاړ او هلته یې په مشهوره مدرسه مظهر العلوم چې اوس د شالدرې په مدرسه مشهوره ده د قران کریم حفظ ته دوام ورکړ.

د قران کریم له حفظ کولو وروسته حافظ صاحب کندهار ته راغی او ددیني علومو د زده کړې لپاره د کندهار ښار د لویې ویالې په سیمه کې د شهید مولوي عبدالغفور صاحب په مدرسه کې داخل شو. له یو کال تیرولو وروسته د پاکستان پیښور ته لاړ او هلته یې د کمونیستي انقلاب تر وخته په مشهوره مدرسه دارالعلوم حقانیه او نورو مختلفو مدارسو کې ددیني علم زده کړې ته دوام ورکړ. د زده کړو په سلسله کې نوموړي په ۱۹۸۴ میلادي کال کې د پاکستان د صوابۍ په سیمه کې د شیخ التفسیر مولانا عبدالهادي صاحب چې په شاه منصور باباجي صاحب مشهور و سره د قران کریم د تفسیر دوره وکړه او سند یې ترې ترلاسه کړ .

کله چې کمونیستان واک ته ورسیدل نوموړی د جلال اباد او کابل له لارې کندهار ته راغی دهیواد په یوشمیر سیمو وگرځید ترڅو دحالاتو جاج واخلي له دې سفر وروسته له جهادي صف سره یوځای شو او په لومړي ځل چې په سرحدي سیمه بادیني کې د مجاهدینو مراکز و، له همدې ځایه یي جهاد پیل کړ .

په جهادي صف کې له څه مودې تیرولو وروسته کراچۍ ته لاړ تر څو خپله نیمگړې دیني زده کړې بشپړې کړي د پاکستان دکراچۍ ښار په مشهوره مدرسه جامعة الاسلامیه بنوري ټاون کې یي داخله واخیسته او په ۱۴۰۱ هـ ق کال کې له همدې مدرسې فارغ او د فضیلت دستار یي په سر کړ.

## جبهه فاورقیه

له دیني علومو له فراغت وروسته چې حافظ عبدالرحیم صاحب جهادي صف ته ستون شودحرکت انقلاب اسلامي په تنظیم کې یي شمولیت وکړ او د همدې تنظیم په تشکیلاتو کې یي د کندهار په سرحدي ولسوالۍ بولدک کې د جبهه فاروقیه په نوم جهادي جبهه تاسیس کړه. دغه جبهه چې دتاسیس او مشرتابه چارې یي خپله د حافظ صاحب په غاړه وې او گڼ شمیر مجاهدین په کې راټول وو، مرکز یي د بولدک ولسوالۍ د چهلگزي او ونکه په سیمه کې و او عملیات یي دکندهار ولایت د بولدک او تخته پل په ولسوالیو کې ترسره کول.

بولدک ولسوالي چې د ډاکټر نجیب د رژیم له ړنگیدلو دری کاله مخکې فتحه شوه حافظ صاحب په کې کلیدي رول درلود چې د فتحې په جگړه کې یي په لومړني ځل د کمونیستانو مرکز ته ورننوت،د بولدک له فتحې وروسته د حافظ صاحب د جبهې مجاهدین د تخته پل او کندهار د اطرافو په جهادي سنگرو کې ځای په ځای شول او نوموړي تر هغه وخته جهاد ته ادامه ورکړه تر څو کندهار ښار سقوط وکړ او کمونیستي رژیم له منځه لاړ .

حافظ عبدالرحیم لکه څنګه چې د امریکایانو په خلاف د جهاد یـو ویـاړلی مشر-بلل کیږي د کمونیستانو په خلاف جهاد کې یي هم د پام وړ ونډه درلـوده. نومـوړی د کمونیزم ضد جهادپه مهال څو ځله ټپي شوی و چې پـه یـوه مرکـه کـې یـي پـه دې اړه داسې ویلي:

یو وخت د روسانو سره د جهاد په وخت د سپین بولدک د ونکـې پـه سـیمه کـې زخمي شوم،بل وار بیا له خلقیانو سره په مقابله کې په لاسي بم ولګیدم او الله تعالی بچ کړم او کامله شفاء یي راکړه او همداراز د سپین بولدک په جنګ کې چې ډیـر خـونړی جنګ و او د کمونیستانو طیارو سخت بمبار کاوو، زخمي شوم خو الله تعالی وساتلم .

د مجاهدینو له بریا وروسته حافظ صاحب څه موده په کندهار ښار کې تیره کړه خو کله چې دتنظیمي دورې فسادونه راپورته شول نومـوړی لـه کنـدهار ښـاره لاړ او د کندهار ښار او بولدک تر منځ په وت سیمه کې یي د جامعة الاسلامیة العربیة په نـوم مدرسه جوړه کړه چې دطالبانو د قیام تر وخته د همدې مدرسې د اهـتمام پـه چـارو بوخت و.

## په اسلامي امارت کې شمولیت او وظائف

د تنظیمي ګډوډۍ د اوج په مهال چې کله د کنـدهار ولایـت پـه ژړۍ او میونـد سیمو کې د ملامحمد عمر مجاهد تـر مشرۍ لانـدې پخوانیـو مجاهـدینو او طالبـانو اصلاحي خوځښت پیل کړ،دغه مهال د کندهار په بولدک ولسوالۍ کې هـم یـو شـمیر علماء او مجاهدین سره راټول شـوي وو او پـه سـیمه کـې یـي دفسـاد د ورکولـو لپـاره سلامشورې کولې،چې حافظ عبدالرحیم صاحب هم په کې مخکښ نقـش درلـود. کلـه چې دوی خبر شول چې په ژړۍ،میوند او ډنډ کې هم داسې تحرک پیل شـوی دی، بیـا حافظ عبدالرحیم،مولوي عبدالشـکور صاحب،شـهید ملامحمـدعوض او شـهید قـاري عبدالسلام صاحب ډنډ ولسوالۍ ته ورغلل له ملا محمد عمـر مجاهـد سره یـي ولیـدل اوله خپلو ټولو مربوطو مجاهدینو سره د طالبانو له اسلامي تحریک سره یوځای شول.

له هغه وروسته حافظ عبدالرحیم صاحب د اسلامي تحریک د یوه برجسته غړي په حیث مختلف خدمتونه سرته ورسول، د کندهار له نیولو وروسته د روزګان ولایت د مرکز ترین کوټ د نیولو په عملیاتو کې حافظ عبدالرحیم صاحب د یوه مشر په حیث برخوال . بیا چې د اسلامي تحریک لښکر د کندهار څخه دزابل په خوا لاړ، غزني او میدان ښار یي ونیول تر دې چې د کابل دروازو ته ورسید. حافظ صاحب هم ددې لښکر برخوال چې په میدان ښار کې د توقف په مهال د خط د عمومي مسؤل شهیدملامشر اخند لخوا ورته د خط د یوې برخې مسؤلیت وروسپارل شو.

په میدان ښار کې له دندې وروسته نوموړی د روزګان ولایت دامنیه قومندان په حیث وټاکل شو چې دوه کاله یي دغه وظیفه ترسره کړه. له هغه وروسته د زابل ولایت د مرستیال په حیث تعین شو چې په افغانستان د امریکاد یرغل تر مهاله یي همدا وظیفه سرته ورسوله تر څو چې دامریکایي یرغل له امله اسلامي امارت له ښارونو څخه عقب نشیني وکړه .

## دامریکا په خلاف د جهادي عملیاتو پیل

حافظ عبدالرحیم صاحب د جنوب غرب په حوزه کې دامریکا په خلاف د جهادي قیام تر ټولو مخکښ مجاهد بلل کیږي. داسلامي امارت د واکمنۍ له سقوط وروسته په مجاهدینو ډیر سخت امتحاني حالت راغی.دامریکایانو زور او جبر او د هیواد او سیمې په سطحه د شرایطو خرابوالي زیاتره مجاهدین دې ته مجبور کړل چې خپلې وسلې له اوږو کوزې کړي او د څه وخت لپاره ځانونه مخفي یا په نورو کارونو مصروف شي.

خو په دې امتحاني شرایطو کې داسې باعزمه مجاهدین هم ووچې د حالاتو توپان ته تسلیم نه شول،د یأس او ناهیلۍ احساس یې ونه کړ او د الله تعالی په دې قول چې : لاتیأسوا من روح الله . . په ټینګ باور سره یې د نهیلیو په توپان کې د امید شمعې بلې کړې او په ډیر سخت حالت کې یي خپل جهادي عزم وساته چې یو له داسې کسانو څخه حافظ عبدالرحیم صاحب و.

نوموړي په يوه مرکه کې ويلي چې دکندهار له سقوط وروسته زه خپل کور ته راغلم چې د بولدک په وت سيمه کې و، په کور کې مې دوه ورځې استراحت وکړ،خو مسلح گرځيدم او په دريمه ورځ له کوره د جهاد په نيت په يوازې سر ووتلم. لومړی د انځرگي په سيمه کې يوه ٦٥ کلن مجاهد بارکزي اکا ته ورغلم او د جهاد خبره مې ورته وکړه، هغه راسره ومنله او بيا له هغه ځايه د نورو مجاهدينو په موندلو او دامريکا په خلاف عملي جهاد ته په اماده کولو بوخت شوو.

د حافظ صاحب نږدې ملگری ملا شيخ محمد آخند وايي:د کندهار ښار له سقوط وروسته چې د روژې په وروستيو ورځو کې و،حافظ صاحب کور ته راغی خو داچې په جهادی هڅو بوخت و، دامريکايانو ملگري کور ته ورغلل ترڅو يې ونيسي۔ خو حافظ ترې بچ شو،نوموړي خپل کور له وت سيمې بار کړ او د لوی کاريز سيمې ته لاړ. دکوچني اختر په شپږمه ورځ زه کور ته ورغلم ،حافظ صاحب راته وويل چې د امريکايانو په خلاف به جهاد کوو،که کومې وسلې يا مهمات درسره وي ماته يي راکړه .

مولوي عبدالباقي صاحب وايي: حافظ صاحب په پيل کې يوازې و، دشپې به په پټه خلکو ته ورتلو د جهاد دعوت به يي ورکاوو وروسته يي خپل داکا زوی ملا عبدالباري ورسره ملگری شو چې دواړه به په موټر سايکل مسلح گرځيدل. ورځ به يي په غرونو يا کنډوالو کې تيروله او دشپې مهال به يې د جهاد دعوت خلکو ته ورکاوو، خلک به يي امريکايانو ته د وسلو له ورکولو او يا په پوليسو او نورو امنيتي ليکو کې له داخلولو څخه منع کول. دجهاد لپاره يي ملگري او وسلې پيدا کولې چې ترڅو مياشتو نوموړي په پټه دغه جريان روان کړی و. د حافظ صاحب زوی مولوي حمدالله وايي چې دغه مهال حافظ صاحب په مياشت کې يوځل کور ته راتلو چې په نيمه شپه به راغی او بيا به پټه له کوره ووت ،ځکه حالات ډير خراب و او امريکايان او ملگري يې نوموړي ته سخت متوجه وو.

**د هډې غره جهادي مرکز:** حافظ عبدالرحيم صاحب دامريکايانو د يرغل دلومړني ژمي او پسرلي په شپو کې جهادي دعوت چلاوه. وسلې ، مهمات او ملگري

یي پیدا کول. داوړي تـر وختـه یـي څـه ملګـري پیـدا کـړل چې تکړه مجاهـد شـهید عبدالغني چې په تورغني مشهور و هم په همدې مهال ورسره ملګری شـو. دغـه مهـال حافظ صاحب دیوه جهادي مرکز د جوړولو اراده وکړه. داچې له نوموړي سره پیسې یـا نور امکانات نه و،نو د مرکز د فعاله کولو لپـاره یـي پـه ۱۴۲۳ هــق کـال د شـعبان پـه میاشت کې له خپل کور څخـه بسـترې ،لوښـي او د ژونـد وسـایل یـووړل او دبولـدک مربوط د هڼې غره په سیمه کې یي لومړنی مخفي جهادي مرکز ورباندې ودان کړ. په دې مرکز کې په پیل کې دحافظ صاحب په مشرۍ یوازې پنځه کسان اوسیدل. څرنګه چې دا وچه غرنۍ سیمه وه مجاهدینو له هغو اوبو څخه استفاده کوله چې لـه تیرژمـي څخه دلته په یوه ډنډ کې ولاړې وې چې دڅښاک وړ نه وې خو داودس او مینځلو کـار ترې اخیست کیدای شوای. د څښاک لپاره مجاهدینو یو مخلص کس په اجـوره مقـرره کړی و چې په څلورو ورځو کې به یې یوځل د ماشینګزو له کلي څخه د شپې پـه مهـال په بوده باندې اوبه ورته راوړې.

له دې مرکز څخه حافظ صاحب لومړنۍ مبارزه داسې پیل کړه چې په ماښام کې به له خپلو مسلحو ملګرو سره په هواره کې پرتو کلیو ته روان شول،که به چا له حکومت سره همکاري کړې وه، یا به یې په عسکرۍ کې نـوم لیکلـی و، هغـه بـه یـي راوایسـتل، بیرته به یې توبه ورباندې وایسته او له خپل کار څخه به یې پښیمانه کړل. د روژې پـه راتګ سره د شپې د تراویحو په وخت مسجدونو ته ورتلو او خلکو ته یې دجهاد په بـاره کې تقریرونه کول او ورته ویل یې چې کفارو یرغل کړی،وطن اشغال دی ،جهـاد فرض دی او دکفارو په لیکو کې خپل ځوانان مه داخلـوئ. پـه دې وخـت کـې دحـافظ صاحب د ملګرو شمیر تر ۲۰ تنو رسیدلی و چې د شپې مهال کـلي پـه کـلي ګرځیـدل، حکومتي خلک یې ویرول او دجهاد دعوت یې چلاوو او د شپې په وروستۍ برخـه کـې به بیرته په هڼې غره کې خپل مرکز ته تلل.

**له دعوت او تحریض څخه د قتال په خوا:** د ۱۴۲۳ هـ ق کال د ذوالقعده میاشتې په ۴ مه نیټه د بولدک ولسوالۍ په سیبت سیمه کې یوه لویـه قـومي غونـډه روانـه وه.

حافظ صاحب چې خبر شودا یي دجهادي دعوت لپاره ښه فرصت وباله نو له خپلو ۲۵ کسه مسلحو ملګرو سره ورغی،هلته یي جهادي تقریر وکړ او خلک یي په ډاګه د امریکا خلاف مبارزې ته راوبلل.

حکومتي عسکر چې کله وربانديې خبر شول،نو له بولدک څخه یي دې سیمې ته قوا وروسته دعسکرو په ورتګ سره حافظ صاحب او ملګرو یي ورسره جنګ شروع کړ چې په نتیجه کې یي ۷ حکومتي عسکر ووژل شول،یو مجاهد زخمي او ۳ مجاهدین دشمن ژوندي ونیول،دا دامریکایي یرغل او دهغوی دداخلي اجیرانو په خلاف د حافظ صاحب دملګرو لومړنۍ مسلحانه جګړه وه چې وروسته دجګړو بهیر زور واخیست او په درست کندهار کې دجهادي پاڅون پیلامه ثابته شوه .

له دې پیښې شل ورځې وروسته کله چې دحافظ صاحب دوه ملګري ملا عبدالباري او حافظ عبدالغني چې دده داکازامن هم وو، د بولدک ولسوالۍ د پاییزو کاریز په سیمه کې له امریکایانو سره مخامخ شول چې ملا عبدالباري شهید او عبدالغني ژوندی امریکایانو ونیو.له همدې نیول شوي بندي څخه امریکایانو دحافظ صاحب دسټلایت ټیلفون نمبر پیدا کړل او د سټلایت له کشف کیدو سره یي دحافظ صاحب د مخفي مرکز موقعیت هم کشف کړ او په همدې ورځ امریکایانو اوددوی ملګرو لویه قوه د هډې غره په خوا ور وایستله چې له دې سره دهډې جنګ په نامه د شاهیکوټ له جګړې وروسته له امریکایانو سره دوهم لوی جنګ همدلته ترسره شو.

په دې جنګ کې که څه هم امریکایانو د دالوتکو او څرخکو په شمول درانه جنګي وسائل وکارول او ډیر زور یي استعمال کړ خو بیا هم درانه تلفات ورته ورسیدل،یوه چورلکه یي د مجاهدینو لخوا وویشتل شوه دغه راز یي عسکر هم ډیر له منځه لاړل. د جنګ په اوږدو کې د حافظ صاحب په مشرۍ مجاهدین د شپې له تیارې نه په استفاده له سیمې ووتل،خو امریکایانوتر څو ورځو په دې غرنۍ سیمه کې عملیاتو ته دوام ورکړ. په دې جګړه کې یوځل امریکایانو په خپلو عسکرو هم بمبار وکړ. دجګړې په ترڅ کې د مجاهدینو له جملې یوازې یو تن ټپي شو اونور هیڅ زیان

ورته ونه رسيد خو دهغه مهال دبولدک ولسوال او دامريکايانو ملګري فضل الـدين پـه دروغو دعوه وکړه چې دهډې غره په جنـګ کـې يـي ۲۵ مجاهـدين لـه منځـه وړي پـه داسې حال کې چې هلته د ټولو موجودو مجاهدينو شمير ۱۸ تنه و.

د هډې غرله جنګ وروسته حافظ عبدالرحيم صاحب يوځل بيا خپل ملګـري سره راټول او دکندهار د بولدک ولسوالۍ په مربوطاتو کې يي په جهادي عملياتو پيـل وکـړ د ۱۴۲۴ هـ ق کال دمحرم دمياشتې په ۲۹ نيټه حافظ صاحب او ملګرو يې د بولـدک د ملاولي نيکه په سيمه کې په داخلي ګوډاګيانو بريد وکړ او تلفات يي ورته ورسـول. لـه دې جنګ وروسته مجاهدين د تورغره په خوا لاړل چې هلتـه ددښـمن لويـه قـوه پسـې ورغله چې د خارجي او داخلي عسکرو د ټانګونو شمير ۷۰ ته رسيده.

د حافظ صاحب په مشرۍ مجاهدينو دلته هم ددښـمن لـه څـواړخيز يرغـل سره مقابله پيل کړه جنګ چې سهار پيل شـوی و، تـر مـازديګره يـي دوام وکـړ او ددښـمن عسکرو ته په کې د پام وړ تلفات ورسيدل. د ورځې په وروسـتۍ برخـه کـې چـې کلـه حافظ صاحب غوښتل د يوه نـږدې لګيـدلي عسـکر څخـه وسله راواخـلي نـو ددشـمن دمرمۍ هدف وګرځېد او په سينه کې ولګېد.

ملا شيخ محمد صاحب د حافظ صاحب له قوله دغه صحنه داسې بيـانوي :کلـه چې ولګېدم نو په ځمکه وغورځيدم او د ولاړيدو وس مې نـه درلـود، دغـه مهـال چـې ددشمن لخوا د نيول کيدو له خطر سره مخامخ وم، الله تعالی ته مې دعاء وکړه چې اې الله تعالی ددښمن په لاس مې مه ورکوې،که همدلته پاته او شهيدشم نو دغـه وړه ډلـه به مايوسه شي او داسې څوک به نه وي چې پرې راټـول شي نـو الله تعـالی د جهـاد پـه خاطر نجات رانصيب کړې.

په دې سره مې الله تعالی په بدن کې نوی قوت پيـدا کـړ لـه ځايـه راولاړ شـم او بيرته مې خپلو مجاهدينو ته ځان راورساوو، دلته چې له سخت درد څخه ځوريدم يـوه مجاهد ته مې وويل چې ته مې دم کړه او دعاء راته وکړه هغه دم کړم او الله تعالی مـې درد رفع کړ،څرنګه چې زما زخم ډير ژور و او وينه مې ضايع کيدله بيـا مجاهـدينو پـه

همدې غره کې دانځر ونې راماتې کړې د هغو له ښاخو څخه يې کټ يا تسکره راته جوړه کړه او ددوړو او غبار څخه په استفاده يي د جنګ له سيمې راوايستم .

## د جهاد د پراختيا وروستۍ هڅې اوشهادت

د حافظ صاحب چې کله زخمونه معالجه او جوړ شول نو داسلامي امارت له نورو مشرانو سره د ليدنو کتنو او مشورو وروسته يې پلان جوړ کړ چې له خپلې سيمې پرته نورو سيمو ته هم جهادي خوځښت وغځوي. د همدې لپاره يې غوښتل معروف ولسوالۍ ته تشکيل وکړي خو د ۱۴۲۴ هـ ق کال د جمادی الاول په مياشت کې يي چې کله غوښتل د زابل د شملزو او اتغر ولسواليو له اړخه معروف ته لاړ شي په لاره کې له دښمن سره مخامخ او په ډېر تکليف ددښمن له اذيت څخه خلاص شو.

دهمدې کال د شعبان په مياشت کې د حافظ صاحب اراده وه چې د زابل ولايت دای چوپان ولسوالۍ ته لاړ شي خو په نيمه لاره يي تصميم بدل شو او د کندهار ولايت د معروف په ولسوالۍ د بريد اراده يي وکړه.د ۱۴۲۴ هـ ق کال د شعبان د مياشتې په ۱٦ نيټه يي د معروف ولسوالۍ په مرکز حمله وکړه،د ولسوالۍ حفاظتي پوستې يي له دښمن څخه ونيولې خو د ولسوالۍ مرکز ته نږدې ددښمن په مرمۍ په سينه باندې ولګېد او يوه شيبه وروسته د شهادت لوړ مقام ته ورسېد. انا لله وانا اليه راجعون

د حافظ صاحب جسد دجګړې په سيمه کې پاته شو،چې ورسره د ۳ تنو نورو شهيدو مجاهدينو جسدونه هم وو د پيښې په سبا د محلي خلکو لخوا د حافظ صاحب او نورو شهيدانو اجساد په همدې سيمه کې خاورو ته وسپارل شول. خو کله چې امريکايان او د هغوی ګوډاګيان ورباندې خبر شول، دوه ورځې بعد يي د حافظ صاحب جسد بيرته له خاورو راوايست ، کندهار ښار ته يي راووړ چې بيا يي يوه ورځ وروسته د حافظ صاحب ورثه وو ته وسپاره او د کندهار ولايت د بولدک ولسوالۍ د پاييزو سيمې د ماشينګزو په هديره کې خاورو ته وسپارل شو .

په دې ډول د اسلامي امت د هغه اتل داستان پای ته ورسېد، چې د امريکايي طاغوت د غرور په اوج کې يي د کفر په لښکرو خوب حرام کړی و، د کفر يواړخيز يرغل يي په ډاګه مسخره کړی او ددوی په وړاندې يي يوازې په ايماني قوت د مقابلې بيلګه وړاندې کړې وه .

حافظ صاحب شهيد شو، خو لاره يې لا هم جريان لري، د شهيد حافظ صاحب دوينو څاڅکې د حالاتو په تورتم کې شپه اخيستو پرګنو ته دهدايت مشالونه شول، چې وروسته په همدې پلونو نور زلمي روان شول تردې چې د امريکايي طاغوت په خلاف جهاد د سرتاسري قيام شکل خپل کړ او امريکايي يرغلګر يي له هيواده تښتيدو ته اړ کړل .

د حافظ صاحب د شخصيت په اړه د نوموړي ملګري وايي چې متواضع او متوکل سړی و،په شرعي امورو کې جدي و خو له ملګرو سره يي د ظرافت او عاطفې نه ډکه ملګرتيا درلوده،د شهادت داسې ارمانجن و چې نه يوازې يي په خپله هميشه د شهادت دعاګانې کولې بلکې نورو مجاهدينو ته يي هم خواست کاوو چې د شهادت دعاء ورته وکړي .

د جهاد په لاره کې دومره ايثارګر او قربانۍ ته چمتو و چې د جهادي امکاناتو داخستلو لپاره يي حتی دکور سامان الات او کتابونه پلورل ترڅو يي په پيسو جهادي ضروريات رفع کړي يوملګری يي وايي چې دامريکايي يرغل په لومړنيو سختو شيبو کې يي له ماغوښتنه وکړه چې د ځمکې لپاره يو خريدار راته پيدا کړه چې په پيسو يي دجهاد کار وچلوو.

الله تعالی دې د حافظ صاحب دغه قربانۍ، مشقات او خدمتونه قبول کړي او په اولادونو او ملګرو دې يي دده برکات پيرزو کړي . آمين يارب العلمين



## د شهید سید عبدالمالک آغا ژوند ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

سید عبدالمالک اغا د افغانستان په مرکزي ولایت وردگو کې یو له مخکښو مجاهدینو څخه شمیرل کیږي،نوموړی په دې سیمه کې چې وروسته د امریکایي یرغلگرو لپاره په یوه خطرناکه او مورال ځپونکي سیمه بدله شوه د مسلح جهاد له لومړنیو مؤسسینو څخه دی، چې د خپلو وینو په قیمت یې د جهاد او مبارزې ډیوه روښانه کړه، ترڅو چې ملگرو او رهروانو یي همدا لار تعقیب او د افغانستان پلازمینې ته څیرمه دغه مهمه سیمه یي د یرغل په وړاندې د جهاد په یوه نه ماتیدونکي سنگر واړوله .

راځئ دلته د وردگو ولایت د دې مخکښ غازي او شهید په ژوند رڼا واچاوو او خاطرې یي راتاندې کړو .

**سید عبدالمالک آغا**

سید عبدالمالک اغا د میرسید اغا زوی په ۱۳۴۹ هـ ش کال کې د وردگ ولایت د سیداباد د بهادرخیلو په سیمه کې دنیا ته راغی،نوموړی د سیدانو له قوم څخه دی چې په افغانستان کې په اغاصاحب،پاچاصاحب یا میرصاحب هم یادیږي.

عبدالمالک آغا لومړني درسونه په خپل کلي کې وویل، لا ماشوم و چې په افغانستان کې کمونیستي کودتا وشوه او د درست افغانستان غوندې په وردگو ولایت کې هم د کمونیستي رژیم په وړاندې ولسي قیام او جهاد پیل شو. عبدالمالک اغا لا تاند ځوان و چې په خپله سیمه کې یي په جهادي چارو پیل وکړ، په خپله سیمه سیداباد کې له څه وخت جهادي خدمت وروسته د پکتیکااو وزیرستان ترمنځ په پرته

سیمه لواړه کې د حقاني صاحب جهادي مرکز ته لاړ،هلته یې په جهادي نظامي زده کړو پیل وکړ دغه راز یي دینې زده کړې هم تعقیبولې .

د سیدعبدالمالک اغا د هماغه وخت ملګری مولوي فضل ربي وایي چې هغه مهال زه د میرانشاه په انوارالعلوم مدرسه کې وم، عبدالمالک اغا چې هغه مهال نوی ځوان و جهاد او دیني زده کړې دواړه یي کولې او ډیر وخت به په خوست کې په جهادي جبهاتو کې و،نوموړي دخوست ولایت په ډیرو جګړو کې شرکت کړی دی او کله چې خوست ولایت د نومیالي مجاهد مولوي جلال الدین حقاني صاحب تر مشرۍ لاندې فتحه شو عبدالمالک اغا هم د یوه مجاهد په حیث په دغه ستره فتحه کې ګډونوال و.

عبدالمالک اغا د نجیب د رژیم تر سقوط او د کابل د فتحې تر مهاله په جهاد کې شریک و. کله چې په کابل کې د کمونیستانو رژیم له منځه لاړ، نوموړي وسله له غاړې کوزه کړه او په میرانشاه کې یې په انوارالعلوم مدرسه کې دیني زده کړې پیل کړې.

دغه مدرسه چې مشري یې د مشهور صوفي او دقلعه جواد د شهیدو حضراتو دسجاده نشین خلیفه صاحب فضل الدین رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې د ارغندۍ په خلیفه صاحب یي شهرت درلود په غاړه وه، هغه مهال په دې سیمه کې د علم او تزکیې یو د پاموړ مرکز بلل کیده. سیدعبدالمالک اغا چې په نسب سید و او الله تعالی ورته کم ساري تقوا، دیانت او ښایسته اخلاق ورکړي و د خلیفه فضل الدین صاحب سره یي نږدې علاقه درلوده او له نوموړي سره یي د تصوف د نقشبندیه مجددیه طریقې بیعت هم کړی و.

سید عبدالمالک اغا د میرانشاه په انوارالعلوم مدرسه کې له څه وخت درس ویلو وروسته د مولوي جلال الدین حقاني صاحب په مشهوره مدرسه منبع العلوم کې داخله واخیسته او تردوو کلونو یي په دې مدرسه کې دیني زده کړې وکړې.

## د طالبانو په اسلامي تحريک کې خدمتونه

دغه مهال چې په افغانستان کې تنظيمي جنګونه و، د هجرت د ديار په افغاني مدارسو کې د طالبانو د جمعيت طلبه په نوم سيمه ايزې اتحاديې جوړې شوې،سيدعبدالمالک اغا د وردګو ولايت د طالبانو په اتحاديه کې د يو مخکښ غړي په حيث فعال و،کله چې د طالبانو اسلامي تحريک ظهور وکړ،نوموړی د طالبانو تحريک له استازو سره له سلامشورو وروسته له ۷ تنو نورو ملګرو سره خپلې سيمې وردګو ته لاړ ترڅو دطالبانو داسلامي تحريک د راتګ لپاره زمينه سازي وکړي او دخلکو او مخورو شخصيتونو افکار تنوير کړي .

سيدعبدالمالک اغا او ملګرو يي په ميدان وردګو ولايت کې د سيمي علماء، مجاهدين او مخور اشخاص وليدل او دطالبانو دتحريک په اړه يې معلومات ورسره شريک کړل،دغه مهال چې د طالبانو اسلامي تحريک په کندهار کې و عبدالمالک اغا او ملګرو يي د سيداباد د هفت آسيا په سيمه کې مفتاح العلوم مدرسه د خپل مخفي مرکز په حيث انتخاب کړی و او دلته يي د طالبانو داسلامي تحريک لپاره ملاتړي پيدا کول. څه وخت وروسته دوی د خپلو ملګروله جملې مولوي فضل ربي او هاشمي صاحب کندهار ته واستول او هلته يي داسلامي تحريک له مشر ملامحمد عمر مجاهد، مولوي احسان الله احسان او نورو مشرانو سره وليدل،هغوی ورته وويل چې د سيمې له علماء کرامو، مجاهدينو او حتی د غزني او وردګو ترمنځ د حزب اسلامي د جنګي کړښې له جنګياليو سره ووينې او دطالبانو د سوله ايزې داعيې په اړه پيغام ورته ورسوي،چې طالبان يوازې د جګړې پای ته رسيدل اوسوله غواړي.

سيدعبدالمالک اغا او ملګري يي په همدې فعاليت بوخت و، چې طالبان غزني ته راورسيدل،د غزني له نيولو وروسته يي د سيداباد د سالارو سيمه پرته له جنګ څخه ونيوله،دلته د طالبانو نظامي مشر ملامشر اخند د محلي طالبانو په مرسته د سيداباد ولسوال ډاکټر مسلم دې ته تيار کړ چې له جګړې لاس واخلي،خو يوشمير

نورو ټوپکوالو د سیداباد په ولسوالۍ کې له طالبـانو سره جګړه وکړه چـې وروسـته وتښتیدل.

د میدان ښار او لوګر له نیول کیدو وروسته سـیدعبدالمالک اغـا او ملګـري يـې غزني ته لاړل، په غزني کې د مولوي احسان الله احسان صاحب سره په ګډ کـاروان کـې په سوله ایزه توګه دپکتیکا مرکز ښرنې ته لاړل پـه پکتیکـا کـې لـه څـه وخـت خـدمت وروسـته نومـوړی پـه چهاراسـیاب کـې جنګـي کرښـې تـه وغوښـتل شـو، دغـه مهـال سیدعبدالمالک اغا چې پخه نظامي تجربه او سابقه یـې درلـوده د خپلـو ملګـرو مشرـ وټاکل شو. په چهاراسیاب کې له څه مودې جهادي خدمت وروسته د میدان ښار خـط ته لاړ او هلته د خط د مسؤل ملامشرآخند لخوا ورته د وردګو ولایت د طالبانو د محـاذ مسؤلیت وسپارل شو.

د میدان ښار په خط کې عبدالمالک اغا او ملګرو یي ډیره مـوده د کـوه قـرغ پـه نامه ستراتیژیکه نقطه کې جهادي خدمت سرته ورسـاوو، کـوه قـرغ یـوه لـوړه غرنـۍ نقطه ده چې هغه مهال د جنګي خط تر ټولو مهمه، خطرناکه او ستراتیژیکه نقطـه بلـل کیدله،دلته به طالبانو تر واورو لاندې په خیمه کې ګذاره کوله او حتی د څښاک لپاره یې د واورې له اوبو استفاده کوله،دغه سیمه چې طالبانو په نوبتي شکل پـه کـې دنـده اجراء کوله ،په حقیقت کې یي د میدان ښار په خواد مسعود د قـواوو د پـیش قـدمي مخه ډب کړې وه، مسعود په دې سیمه څو ځله سختې حملې وکړې او حتی یوځل یـې وهم نیوله، خو طالبان بیرته وتوانیدل چې پـه درنـو قربـانیو یـې ونیسيـ او ترپایـه یـې وساتي .

## د کابل له فتحې وروسته

د کابل له فتحې وروسته سیدعبدالمالک آغا په پیل کې د کابل ښار د خیرخـانې د ۱۱ حوزې آمر وټاکل شو.څرنګه چې نوموړی به ډیر وخت د شمالي په جنګـي کرښـه کې و کارونه به یې د مرستیال لخـوا اجـراء کیدل،وروسـته نومـوړی او ملګـري یـې د قرغې داتم نمبر فرقې په تشکیل کې د شمالي په جنګي کرښه کې په خـدمت وګـمارل

شول. دغه مهال ددوی قرارگاه په قرغه کې وه خو جهادي خدمت يي دکابل د شمال په خطوطو کې کاوو،نوموړي په دې موده کې د شمالي په بيلابيلو سيمو لکه شکردره، گلدره،پل صوفيان،کلکان، قلعه نصرو،قره باغ او نورو سيمو کې خدمت ترسره کړی دی. کله چې په۱۹۹۷ م کال کې د اسلامي امارت د مجاهدينو يو ستر لښکر د سالنگ تونل له لارې دافغانستان شمال ته واوښت عبدالمالک اغا او ملگري يي هم ددې بهير برخوال و په کندز کې له څه مهال خدمت وروسته کابل ته راغی او د شمالي په خط کې يي خدمت ته ادامه ورکړه وروسته نوموړی بيا شمال ته لاړ او د تخار په اشکمش کې د منتظره قطعې مسؤل تعين شو چې وروسته همدا قطعه د فرخار تنگي ته انتقال شوه.

سيد عبدالمالک اغا د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال په ډېرو فتوحاتو کې برخوال و له دې جملې د باميان ولايت په لومړي ځل فتحه کې چې د جلريز او جلگې لخوا وربانديې عمليات وشول نوموړی د جلريز لخوا په عملياتو کې شريک و،د باميانو له نيولو وروسته چې څو ځله په غوربند او شيخ علي سيمو کې عمليات وشول هم نوموړي په کې شرکت درلود.

د امريکايانو د يرغل په مهال نوموړی د شمالي په دفاعي کرښو کې و،چې د امريکايانو په بمبار کې ټپي او خپلې سيمې ته وليږديد.

## د امريکا په خلاف جهاد

ملا محمدفريد قيام او مولوي عبدالصمد وزير چې د سيدعبدالمالک اغا له نږدې ملگرو څخه دي وايي: له امريکايي يرغل او د کابل له سقوط وروسته چې اغاصاحب خپلې سيمې سيداباد ته راغی نو لومړنی هڅه يي داوه چې مجاهدين وساتي او دې سيمې ته د شورای نظار د ټوپکيانو د راتگ مخه ونيسي، د همدې لپاره يې په سيمه ايزه کچه ډېرې هلې ځلې وکړې چې ډېرې گټورې واقع شوې،دغه راز نوموړي د امريکا خلاف د جهاد تداوم په اړه هم هڅې پيل کړې په دې لړ کې يي څو ځله پکتيا ولايت ته سفر وکړ او له ملا سيف الرحمن منصور سره يي وليدل چې هغه مهال په

شاهيکوټ دره کې دامريکا خلاف د مقاومت په ترتيباتو بوخت و،څرنګه چې امريکايانو سيد عبدالمالک اغا په ميدان وردګو کې د مجاهدينو د مطرح مشر په حيث پيژاند او د نيولو په هڅه کې يي و نوځکه نوموړی مجبور شو چې له خپلې سيمې هجرت وکړي،خو د جهادي چارو له انسجام څخه يي لاس وانخيست .

سيد عبدالمالک اغا يوځل بيا د اسلامي امارت له مشرتابه غړو سره په رابطه کې شو او دهغوی لخوا په وردګو ولايت کې د جهادي چارو د پرمخ بيولو کار ورته وسپارل شو. نوموړی يوځل بياپه مخفي ډول خپلې سيمې ته لاړ، خپل پخواني ملګري يي راغونډ کړل او د جهادي عملياتو د پيل په اړه يي ورسره سلامشورې پيل کړې،نوموړی په وردګو ولايت کې د جهادي عملياتو د انسجام به چارو بوخت و چې امريکايانو يي سټلايټ ټيلفون کشف کړ، په کور باندې يي سلګونه امريکايي عسکر او داخلي ګوډاګيان ورغلل او د نوموړي د نيولو هڅه يي وکړه.

خو سيد عبدالمالک اغا او مشر ورور يي اسمعيل اغا له امريکايانو سره جنګ وکړ، چې په پايله کې يي امريکايانو ته له تلفات اړولو وروسته دواړه وروڼو د اشغالګرو سره په مخامخ جنګ کې د ۱۳۸۲ هـ ش کال د حوت مياشتې په ٦ مه نيټه په شهادت ورسيدل . انالله وانا اليه راجعون

امريکايانو ددوی جسدونه له ځان سره بګرام ته يووړل او هلته يې په يوه جر کې وغورځول ، کله چې د سيمې خلکو ډيرې غوښتنې وکړې ۴۲ ورځې وروسته ددوی جسدونه خپلې کورنۍ ته وسپارل شول،خو دغه مهال د دغو شهيدانو يو کرامت خلکو ته څرګند شو هغه داچې له ۴۲ ورځو وروسته يي هم جسدونه سالم و او کوم تغير په کې نه و راغلی .

له سيدعبدالمالک آغا څه يوازې يو زوی پاته دی، داچې اغاصاحب د شاهيکوټ د معرکې له اتل ملاسيف الرحمن منصور سره له ډيره وخته ملګرتيا درلوده او داسلامي امارت د واکمنۍ په مهال يي هم ټوله موده همسنګر و او دواړو د جهادو

تصوف غونډې ګڼ مشترکات درلودل،عبدالمالک اغاصاحب په خپل یوازیني زوی سیف الرحمن نوم ایښی و.

## د شهید عبدالمالک آغا څو خاطرې

د وردګو ولایت د سیداباد ولسوالۍ د مجاهدینو په قول سید عبدالمالک آغا په دې سیمه کې د جهاد او مبارزې د لارې د یوبنسټګر او قدوې حیثیت لري چې دامریکایانو په خلاف یي په لومړي ځل جهادي تحرکات پیل کړل.

همدا اوس چې په دې ولسوالۍ کې کوم مخکښ مجاهدین او ډلګۍ مشران دي لکه ملامحمد فرید قیام، ملا عبدالله ، مولوي حبیب الرحمن او نور ټول دسیدعبدالمالک آغا د لاس تربیه شوي او دنوموړي په سیوري کې په جهادي فکر رالوی شوي کسان دي،په سیداباد کې د سیدعبدالمالک آغا لخوا د جهادي مبارزې بنیاد کیښودل شو،چې له امله یې نوموړی دامریکایانو لخوا ډیر زر په نښه او په شهادت ورسول شو، خو وروسته د نوموړي نږدې ملګري او مرستیال شهید مولوی عبدالباقي صاحب دنوموړي لار تعقیب کړه تردې چې دغه ولسوالي وروسته دامریکایانو په قتل ګاه او دامریکایي کتارونو په هدیره بدله شوه چې تراوسه ترینه اشغالګر په ارامه عبور نشي کولای .

ملا محمد فریدقیام چې اوس د نوموړي د ډلګۍ مسؤلیت لري او ډیره موده له شهید اغاصاحب سره په ملګرتیا کې پاته شوی دی د نوموړي دشخصیت په اړه وایي: شهید اغاصاحب بیساری تقوادار،حیاناک، مینه ناک او مخلص شخص و. دومره حیاناک و چې ما په څو کلنه ملګرتیا کې ترې بدالفاظ، ښکنځلې یا پوچې خبرې نه دي اوریدلي،هیڅا ته یي بدالفاظ په خوله نه راوړل، حتی مخالفینو او هغه دښمنان چې په جګړه ورسره بوخت و په بدو الفاظو یي نه یادول او نه یې ورته ښکنځل کول، اغا صاحب هر سهار د سورة یس او ماښام د سورة الملک وظیفه کوله او دایي په سختو شرایطو کې هم نه قضاء کوله .

مولوي عبدالصمد وزير داغاصاحب د مرستيال شهيد مولوي عبدالباقي له قوله وايي: يو وخت چې په کندز کې د بالاحصار سره نږدې د برج برق په سيمه کې اوسيدلو يوه شپه چې ملګري ويده شول خو زه ويښ وم ، اغاصاحب له ځايه راپورته شو، غوږ يي ونيو او يوه خوا بله خوا يي وکتل کله چې پوه شو چې ټول ملګري ويده دي، نو له ځايه ولاړ او بهر ووت.

مولوي عبدالباقي وايي له ځنډ تيرولو وروسته مې ورته سودا شوه چې اغاصاحب چيرته لاړ، نو زه هم پسې ورووتم، بهر مې ټول ځايونه پسې وکتل خو پيدا مې نکړ، انديښنه مې لا ډيره شوه، او نيت مې و چې ملګري راويښ کړم ترڅو د اغاصاحب درک ولګوو، وروسته مې هسې يوې اضافه کوټې ته چې لرګي په کې پراته و وروکتل، ګورم چې اغاصاحب همدلته د لرګيو په کوټه کې د تهجد په لمانځه ولاړ دی،ما چې بتی ورته رڼا کړه ، نو ومې ليد چې پټکی يې په غاړه کې ول ول پروت دی، او له سترګو يي اوښکې بهيږي او په عبادت کې غرق دی .

مولوي وزير زياتوي: د اغاصاحب بل صفت د ملګرو خدمت او خاکساري وه. سره له دې چې نوموړی له پيله تر پايه زموږ مشر و، خو د اطاق خدمت لکه ديګ پخول، مينځل او نور خدمت به يې په خپله کاوو او په دې کار کې هيڅوک ترې وړاندې کيدای نه شوای. نوموړي وايي په جهادي جريان کې به چې کله موږ د شپې د پيره داري تقسيم اوقات جوړاوو او هر ملګري ته به مو يو ساعت پيره ليکله، اغا صاحب ته مو هميشه ۳ ساعته پيره ليکله ځکه نوموړي په ډيره خوښي دغه جهادي دنده سرته رسوله .

ملا محمد فريد قيام وايي: شهيد اغاصاحب سره له دې چې مشر و، خو هيڅکله يي متفاوت چلند او ګوزاره نه کوله، ځان يي تر هيڅا لوړ نه باله نه يي کوم د برترۍ خواهشات لرل بلکې هميشه يي دملګرو سره برابره عادي ګوزاره کوله .

رحمه الله تعالی

## د شهید ملا روزي خان عاکف ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه : ملا احمدالله وثیق**

**زوکړه او زده کړې یې :**

شهید ملا روزي خان عاکف په کال ( ۱۳۵۴ هـ ش) کې د زابل ولایت دنوبهار ولسوالۍ دمشیزو په کلي کې دحاجي صالح محمد په دینداره او جهادی کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترګي پرانیستې، لومړنۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې دکلي پر ملا امام پیل کړې وروسته د زابل دشاه جوی ولسوالي دموسی زو او ګاګرۍ په سیمو کې په زده کړو بوخت شو، دنورو زده کړو لپاره یې د پاکستان دبلوچستان ایالت دکوټې ښار ته سفر وکړ هلته یې په مختلفو دیني مدرسو کې له جیدو علماء کرامو څخه زده کړې ترلاسه کړې.

په ۱۹۹۴ میلادي کال کې چې دشراو فساد په ضد دطالبانو اسلامي تحریک پیل شو،ملا روزي خان چې لا له وړکتوبه یې له جهاد سره مینه درلوده، له طالبانو سره ملګری شو له همدې امله یې زده کړې نیمګړې پاته شوې، نوموړی دشهادت تر وخته په جهادي فعالیتونو کې مصروف پاته شو او تر اخره یې فرصت ونه موند چې خپلې ناتمامې زده کړې تمامې کړي.

**دطالبانو په اسلامي تحریک کې شمولیت او مبارزه یې :**

په ۱۹۹۴ میلادي کال کې هغه مهال چې په افغانستان کې د ټولنیز هرج و مرج او فساد د ورکولو په موخه دطالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ، شهیدملا رزوي خان عاکف دغه مهال تازه ځوانۍ ته رسیدلی و، چې له جهاد او خدمت سره دزیاتې مینې له امله دطالبانو له یوه ګروپ سره ملګری شو، لومړی دکندهار مرکز ته لاړ اوله هغه ځایه دطالبانو په تشکیل کې دشاولیکوټ ولسوالۍ ته ولاړ او هلته یې دملا

عبدالرحمن تر مشرۍ لاندې په وسلوال جهاد پيل وکړ،دکندهار ولايت دبشپړې فتحې وروسته نوموړي په مختلفو وختونو کې له مجاهدينو سره يوځاي دګرشک،دلارام ،فراه رود او همداسې د فراه ولايت د آب خورما سيمې په سختو جګړو کې برخه واخيسته، نوموړی په يادو جګړو کې دخپل شهامت او ددښمن په وړاندې دميړانې او دلاورۍ په ښودلو سره دمجاهدينو ترمنځ د يوه زړور او مدبر مجاهد په حيث مطرح شو او دهغه مهال دجنګ دلومړيو کرښود قومندانانو شهيد ملا محمد اخند،شهيد ملا رحمت الله اخند او نورو د اعتماد او توجه وړ وګرځېد.

دجنوب لويدځو ولاياتو په استقامت کې دجنګ په لومړيو کرښو کې له خدمت ترسره کولو بعد نوموړی له اوږدې مسافرۍ وروسته په زابل ولايت کې خپل کور ته راستون شو له خپلو قريبانو سره دلږ وخت تيرولو وروسته نوموړی دخپلې ولسوالۍ (نوبهار) له مجاهدينو سره يوځاي په تشکيل کې دميدان ښار پر لوردجنګ لومړيو ليکوته ولاړ .

هغه مهال چې طالبان دميدان وردګ ولايت په مرکز ميدان ښار کې دشر او فساد له ټوپکيانو سره په جګړه بوخت وو دجګړې په لومړۍ دفاعي کرښه کې ترټولو ستراتيژيکه نقطه او مهمه امنيتي پوسته د(کوه قرغ)سنګر و چې ساتل يې ډيرمشکل او خطرناک و،د کوه قرغ پوسته به هميشه ددښمن ترسختو ګذارونو او مخامخ تعرضونو لاندې وه،شهيد ملا روزي خان دخپلو ملګرو په شمول ددې مهم سنګر په ساتلو کې ډير دپام وړ رول درلود، دکوه قرغ پوسته په داسې يوه موقعيت کې قرار درلود چې کله به مجاهدينو دې پوستې ته اکمالات کول دښمن په ډيره اسانۍ سره په رسا توګه ويشتلای شوای، له همدې امله دورځې ډير کم له دې لارې دموادو انتقال ترسره کيده،خو ملا روزي خان به په جرأت او ميړانه په رڼا ورځ يادې پوستې ته دباپيور(ډاټسن) موټر په مټ اکمالات کول. نوموړي دميدان ښار په کوه قرغ،جلريز او ارغندۍسيموپه سختو جګړو کې برخه واخيسته،او کله چې په ۱۳۷۵هـ ش کال په مني کې دکابل دنيولو لپاره له دوو استقامتونو(جلال اباد او ميدان ښار) څخه عمليات

پيل شول شهيد ملا روزي خان عاكف دهغو مجاهدينو په تشكيل كې و چې دارغنـدۍ له لارې دكابل ښار ته ننوتل.

دكابل له سترې فتحې وروسته مجاهدين دپروان ولايت په لور وخوځيدل،شهيد عاكف چې څو مياشتې مسلسل يې د جهاد په لومړنيو كرښو كې تېرې وې، دځه وخت استراحت كولو لپاره خپل كور ته دتلو اراده وكړه ،دشـهيد عـاكف نـژدې ملگـرى مـلا عبدالاحد جهانگير وال وايي ،شهيد عاكف له كابلـه لـومړى كنـدهار تـه راغى،پـه دې وخت كې په پروان كې دمخالفينو له لوري شديد تعرضونه پيل شول طالبانو له پـروان نه عقب نشيني وكړه او دكابل ښار حدودو ته جگړه راورسيده. شهيد عاكف چـې كلـه په كندهار كې له دې وضعيت څخه خبر شو د مسؤليت داحساس له مخې يې كور تـه تگ پريښود،په كندهار كې له يوې شپې تيرولو وروسته يې بيرته دكابل په لور حركـت وكړ او دجنگ لومړۍ كرښې ته ولاړ.

دكابل له فتحې څه موده وروسته نوموړي دقرغې داتمې فرقې په تشـكيلاتو كـې چې قوماندانې يې د ملا اميرخان حقاني په غاړه وه جهادي خـدمت پيـل كـړ چـې ډېـر وخت به په شمالي كې دبگرام پـه اسـتقامت دجنـگ دلـومړۍ كرښـې دمهمـو نقطـو دساتلو او نيولو په عملياتو كې بوخت و.

په ۱۹۹۷ ميلادي كال چې كله د طالبانو يو ستر لښكر د سالنگ په تونل د شـمال خواته ووت، بغلان او كندز يې ونيول، ملاروزي خان عاكف په همدې عملياتو كې هـم برخوال و، وروسته چې كله همدغه مجاهدين په پلخمري اوكنـدز كـې محـاصره شـول نوموړي په ډېر متانت له خپلو نورو ملگرو سره يوځاى ددښـمن پـه وړانـدې مقاومـت وكړ، په دې وخت كې ۱۷ ځله يو په بل پسې ددښمن له لوري قوي تعرضونه وشول چې د ټولو په دفاع كې ملا روزي خان له نورو مجاهدينو سره يوځاى برخه درلـوده او مهـم رول يې لوباوه. د نوموړي يو نږدې ملگرى ملا سليمان اغا بهير كيسه كوي، دپلخمـري د رباتک په سيمه كې دښمن قوي تعرض وكړ، يوشمير مجاهدين ددښمن په منځ كـې محاصره پاته شول،ملا روزي خان چې دا حالت وليد،د مرميو پـه بـاران كـې يـې خپـل

بايفور موټر مخامخ ددښمن په عسکرووروځغلاوه او ددښمن په منځ کې يې جګړه پيل کړه،محاصره ماته شوه دجګړې په ميدان ددښمن د۱۸ تنو جسدونه پاته شول او وسلې يې غنيمت شوې.

د شمال له فتحې وروسته نوموړي په بلخ کې د يوې ۸۰۰ کسيزې ضربتي قطعې د مشر په حيث دنده اجراء کوله چې د مخالفينو دغلچکي بريدونه مخنيوی يې کاوه،ملا اسدالله واسر وايي: مخالفينو د بلخ او سمنګانو له جنوبي غرنيو سيمو غلچکي بريدونه کول، خو مجاهدينو به په ډير سرعت سره دفع کول،د همدې ساحې په شولګره، دره صوف،آق کوپرک او نورو سيمو په په دفاعي جګړو کې د امريکايي يرغل او بمبارونو دپيل ترمهاله ملاروزي خان اخند د يوه فعال مسؤل په حيث برخه درلوده .

## د امريکايانو يرغل او په وړاندې يې مسلح جهاد

د ۲۰۰۱ ميلادي کال د روژې په مياشت کې د اسلامي امارت دمجاهدينوترعقب نشينۍ وروسته چې له اکثرو سيمو مجاهدين ووتل ملا روزي خان عاکف هغه مهال هم په خپله سيمه کې فعال پاته شو له خپلو مسلحو مجاهدينو سره يوځاي په جهادي فعاليتونو اودخپلو اسلحو او پوځي وسايطو په خوندي کولو او ساتلو بوخت و. هغه مهال مي شهيد ملا روزي خان عاکف وليددخپلو وسايلو په اړه يې راته داسي وويل: ((په دې وروستيو کې مي لوي ملاصاحب (اميرالمومنين ملا محمدعمرمجاهد)ولېد هدايت يې راته وکړ چې وس دي کيږي يو ټوپک لا هم چاته ورنکړې نور ته پوه شه او کار دي)دملا صاحب دامر مطابق مې الحمدالله ټول پوځي وسايل اووسايط خوندي کړي او دوخت انتظار کوم)).راقم الحروف

۲۰۰۲م کال په افغانستان د امريکايي يرغل لومړنی کال و، دا کال د سختو مايوسيو،خپګانونو او مصائبو کال و، امريکايي يرغل په اوج او موج کې و،په ځمکې آن تر کليواو اطرافي سيمو پورې ديرغلګرو ازادانه ګزمې ګرځيدې او د اسمان مخ د امريکايي الوتکو ګشت و ګزار نيولی و، کفري ايتلاف خپل ټول پوځي زور نمايش ته وړاندې کړی و،او اولس د سختې مايوسۍ او حيرانتيا سره مخامخ و.

خو په هماغو امتحاني شيبو کې د هيواد په گوټ گوټ کې يو شمير باعزمه زلميو د حوادثو له سيلاب سره مقابله وکړه، عزم يي متزلزل نه شو او د خپل جهادي مسير دتعقيب او بيا سمبالتيا لپاره لاس په کار شول، په دې زلميو کې په زابل ولايت کې ملا روزي خان عاکف هم و، چې دامريکايي يرغل په وړاندې له مقدمو جهادي مخکښانو څخه شميرل کيږي.

ملا سليمان اغا بهير چې د اشغال په وړاندې د وسلوالې مبارزې په پيل کې له ملا روزي خان سره ملگرى و وايي: دامريکايانو لخوا دافغانستان داشغال په لومړيو کې يوه ورځ حاجي ملا رزوي خان يو شمير مخور او بانفوذه کسان راغونډ کړل او له خپلې جهادي ارادې يې خبر کړل وروسته يې له مجلس نه وغوښتل چې په دې اړه ستاسو څه نظر دي،دمجلس له يوه سر نه نظرونه پيل شول او تر پايه ورسيدل اکثريت په دې نظر وو چې اوس دستي دوسلوال جهاد لپاره زمينه نه ده مساعده دمجلس د وروستي کس دنظر تر اوريدلو وروسته ملا روزي خان ماته مخ را واړاوه چې ستا څه نظر دی ، زه چې دمجلس دبرخوالو مايوس کن نظرونو زړه نازړه کړی وم چندان مثبت جواب مې ورنکړ، ملاروزی خان کرار وخندل او راته يې وويل: پوښتنه کوم ، چې نور هيڅ څوک نه وي راسره او زه په يوازي تن راولاړشم زموږ وطن ته دراغلو غاصبو کفارو په مقابل کې دا خپل سر قرباني کړم شهيد بلل کيږم ؟ زما مرگ خو به نه خرابيږي ؟ ما ورته وويل نه هيڅ کله نه. نوموړي سم دستي خپل ټوپک اوږې ته کړ له مجلس نه يې اجازه راواخيسته او ماته يې ويل راځه، په موټر سايکل سپاره شولو ترښه ډيره مو هيڅ ږغ نه و وروسته نوموړي دراتلونکو پلانونو په اړه بحث پيل کړ.

ملا روزي خان عاکف ترټولو لومړی وسلوال بريد د۲۰۰۳ م کال په اوايلو کې دزابل ولايت دنوبهار ولسوالۍ په مرکز ترسره کړ، ولسوالي يي په بشپړه توگه فتح کړه گڼ شمير وسايل يې په غنيمت ونيول. له دې کامياب بريد وروسته دښمن غوښتل چې دنوبهار ولسوالي بيرته ونيسي په سهار يې دزابل له مرکز کلات او کندهار ولايت نه ستره قوه دنوبهار ولسوالۍ په لور راغله، مجاهدينو دسپيره سنگ په سيمه کې ورته

کمين ونيو،ټوله قوه يې بيرته په شاه کړه او دولسوالۍ مرکز ته ونه رسيدل.دا په زابل او ګاونډيو ولايتونو کې ترټول لومړی وسلوال بريد او بريا وه چې مجاهدينو ترلاسه کړه.دوهم بريد دسپيرسنګ په سيمه کې دګوډاګۍ اداري په عسکرو ترسره شو، څو ورځې وروسته دسرخکان دلودينو په سيمه کې د زابل دامنيه قومندانۍ پر عسکرو وسلوال بريد ترسره شو چې په نتيجه کې يې يو عسکرووژل شو دعبدالخالق په نوم يو قومندان ژوندی ونيول شو.دې بريدونو په خپل وخت کې دحالاتو نامساعدتيا ته په کتو خورا ډير اهميت درلود،ځکه په دې سره په سيمه کې دمجاهدينو موجوديت ثابت شواو ددښمن غرور يې ختم کړ هغه ډار او دهشت چې په سيمه خپور و دخلګو له زړونو ووت.دې غيرمتوقعه پېښو ددښمن پښې ولړزولې، هغو سيمو ته چې به عسکر په ډير اطمنان تلل مخه يې ونيول شوه.

په ۲۰۰۳ ميلادي کال کې دکابل کندهار په لويه لار دتازي په سيمه دګوډاګيو عسکرو په قوي پوسته دشپې له مخې پراخ وسلوال بريد ترسره شو، په دې حمله کې دشهيد ملا روزي خان ترخنګ دزابل يوشمير جهادي قومندانو (شهيد ملا محمدګل بشير،شهيد ملا نذيراخنداو ملا احمدالله منصور)هم برخه درلوده دبريد عمومي قومنده دشهيد ملا روزي خان په غاړه وه .اسدالله واسر چې په دې حمله کې له ملا روزي خان سره ملګری وو وايي، هغه شپه حاجي صاحب (ملاروزي خان) مجاهدين په دريو برخو تشکيل کړل يوه ډله مجاهدين په کمين کې وو دوهمه ډله د وسائطو او شاته دوتلو دلارې دحفاظت لپاره وګمارل شوه دريمه ډله پر پوسته باندي دتعرض لپاره تعين شوه چې ددې وروستي ډلې مشري د ملا روزی خان په غاړه وه، لومړی څو ملګري پوستې ته ډير نژدې ورغلل او د بي ايم يک مرمۍ يې پوستي ته نصب او فير کړه مرمۍ په خپل هدف رسا ولګيده ، له دي سره سم مجاهدينو پر پوسته تعرض پيل کړ، کله چې موږ پوستې ته ورسيدو ملا روزي خان عاکف تر موږ مخکې پوستې ته رسيدلی و وروسته دکمين ملګري پوستې ته پر راروانو کومکي عسکرو هم بريد وکړ

په دې کامیابو عملیاتو کې ۱۴ عسکر ووژل شول،۷ تنه ژوندي ونیول شول،دوه موټر تخریب شول یو مو غنیمت کړ.

دا عملیات دکابل کندهار په لویه لار دسړک پر سر ترسره شول نو ځکه یې له جزیاتو عام خلګ هم خبر شول او دې پیښې هغه مهال ډیر مطبوعاتي انعکاس درلود.

د ۲۰۰۳ میلادي کال په وروستیو کې د زابل د شاه جوی ولسوالۍ په مرکز او امنیه قومندانۍ پراخ وسلوال او پروګرامي حمله ترسره شوه ،دشاه جوی ولسوالۍ په ولایت کې ترټولو مهمه او ستراتیژیکه ولسوالۍ ده چې دکابل کندهار په لویه لار پرته ده، دښمن یې همیشه د ساتلو ډیر زیات کوشش کوي .په ولسوالي له دوو لوریو برید ترسره شو،دحسن کاریز له خوا قومنده دملا روزي خان په غاړه وه او دارغنداب سرک له لوري قومنده دمولوي محمدعالم مسولیت و.په دې حمله کې ددښمن ګڼ شمیر عسکر ووژل شول دمحمدجمعه په نوم یو قومندان ژوندی ونیول شو.

په ۲۰۰۴ میلادی کال کې دکابل کندهار په لویه لار کلات ته څیرمه دکابل ادارې د زابل د والي خیال محمد حسیني په موټریز کاروان مخامخ برید ترسره شوچې له امله یې ګڼ شمیر امنیتي پولیس مړه او ژوبل شول او یو شمیر یې ژوندي ونیول شول خپله والي له بریده روغ ووت. له دې برید وروسته دښمن سخت تعقیب پیل کړ امریکایي ځواکونو دملا روزي خان او ملګرو دنیولو لپاره سختي چاپې پیل کړي .

شهید ملا روزي خان د ۲۰۰۲ نه بیا تر ۲۰۰۴ م کال پوري دجهاد په هماغو لومړنیو امتحاني شیبوکې د خپلو حیرانوونکو کارنامو او کامیابو جګړو له امله دیوه پیاوړي، منلي او بانفوذه طالب قومندان په حیث شهرت وموند. د زابل ولایت په ګڼو ولسوالیو او دورڅیرمه ولایتونو غزني او کندهار په یو شمیر ولسوالیو کې یې ډیر زیات نفوذ پیدا کړ. نوموړي وخت ناوخت په زابل سربیره دغزني په ناوه، مقر، او جنډه ولسوالیو کې هم عملیات ترسره کول .

ديادو كلونو په موده كې دجهاد ساحې پراخې شوې او دجنوب په زياترو ولايتونو كې داشغال پـه ضـد جهـاد او مقاومـت گـرم شـو. د زابـل ،كنـدهار،ارزگان او غـزني مجاهدينو په همغږۍ او له يو بل سره پـه همكـارۍ خپـل جهـادي فعاليتونـه مخ تـه وړل،ددې جهادي فضاء په رامنځته كيدو او سيمو په ازادۍ كې د ملاروزي خان اخند اساسي نقش و چې په لومړنيو سختو حالاتو كې يي جهـادي مقاومـت جـاري وسـاته او دجهاد ولوله يې سرېدا ته پرېښوده .

## دشهادت واقعه يې

شهيد ملا روزي خان په زابل او ورځيرمه جنوبي ولاياتو كې داشغال پـه وړانـدې دوسلوال جهاد له مخكښانو بلل كيده، دنومړي په نوښت او جهادي فعاليتونو په يادو سيمو كې دجهاد ساحې پراخې شوې.له هغه پيله لا نومـوړی ددښـمن دسـترگو اغـزی ودهغه دله منځه وړلو،شهادت او يا ژوندي نيولو لپاره يې ډير زيات كوششونه او هڅې كولې،دنومړي دكشف لپاره يې زيات شمير جاسوسان گمارلي و ترڅو دقيق موقعيت يې معلوم كړي.

كلـه چـې پـه ۲۰۰۴ م مـيلادی كـال كـې دسـيوري ولسـوالۍ پـه مربوطـاتو كـې دامريكايي ځواكونوپه قطار چاودنه وشوه په دې چاودنه كې دنورو پوځيانو ترڅنگ يـو لوړ پوړي امريكايي افسر- چـې ( ډان) نوميـده هـم ووژل شـو، لـه پيښـې وروسـته لـه مطبوعاتو سره په خبرو كې ملا روزي خان ديادې حملې مسـوليت ومانـه،ملا سـليمان اغا بهير وايي چې له دې پيښې وروسته حاجي روزي خان تـه امريكـايي ځواكونـه ډيـر زيات متوجه شول اودهغه دله منځه وړلو لپاره يې مسلسلې چـاپې ووهـلي، لـه څلـورو سختو يرغليزو چاپو نومړی ژوندي ووت.ملگرو مشوره وركړه چې د څـه وخـت لپـاره سيمه بدله كړي او لږ ځان گوښه كړي.

دخدای دلارې د سپيڅلي او پاک زړي مجاهد ملا روزي خان چې دجهـاد پـه لار كې شهادت يې دژوند ترټولو ستر ارمان ووبالاخره د ۲۰۰۴ م كال داگست پـه ۲۹ نيټـه غرمه مهال دشاه جوي ولسوالۍ مربوط د(خږ دوزي )په نوم كلي كې په يوه كور كې له

يوه بل ملګري سره ناست و، امريکايي ځواکونو يو ناڅاپه دهوايي او زمينـي ځـواک پـه مټ پرې چاپه ووهله او نوموړی يی محاصره کړ. دخـړدوزي دکـلي يـو کليـوال دخپلـو سترګو ليدلی حال داسي بيانوي: کله چې دالوتکـو ږغ شـواو پـه لـري فاصـله کـې يـې دورې وهلـې، مـلا روزی خـان پـه خپـل کلـه کـوف ماشـين غوټـه کـړه او چانټـه يـې وتړله،ملګري ته يې وويل ته ټوپک وغورځوه په کلي کې چيرته ځان پټ کړه ما په خپلـه مخه پرېږده،ملا روزي خان کلي ته نژدې غره ته مخه کړه، دکلی په منځ کې کليوالو را ايسار کړ او مشوره يې ورکړه چې د اوبو دکاريز څاه تـه دې کـوز شي، مـلا روزي خـان وويل چې زه امريکايانو ته ځان ژوندی په لاس نه ورکوم تاسو ځانونه خوندي کړي ما او کار سره پرېږدئ.دغره خواته په ختلې نرۍ لار باندی رهي شو او ډير په اطمنـان روان و، امريکايي الوتکو زيات شور جوړ کړی و او په نوموړي يې دګازي ګرنيټونـو ګزارونـه کول، کله چې نوموړی دغونډۍ سره ته پورته شو هلته يې ددو لويو ډبرو پـه مـنځ کـې سنګر ونيو، دده لور ته په څلور ټيره موټر سايکلونو کې په ور روانـو امريکـايي عسـکرو يې ډزې کـولې دې متقـابلو ډزو تـر ډيـره پـوري دوام وکـړ د نومـوړي پـه ډزو بانـدی يوشمير امريکايی عسکر ولګيدل چې نورو عسکرو دکلی په سر کې يـوې کنـډوالې تـه په ځولۍ کې راوړل . وروسـته د محـاصرې کـړۍ ورو ورو پـرې راتنګيدلـه يـو شـمير عسکر دشاطرف ته ورسره راوګرځيدل، په ملا روزي خان يې ډزې وکړې او په شـهادت يې ورساوه. انا لله وانا اليه راجعون.

وروسته امريکايی عسکرو دنوموړي جسد له غره نه را کښته کـړاو پـه هليکـوپټر الوتکه کې يې له ځانه سره انتقال کړ.دنومـوړي جسـد ترشـلو ورځـو پـوري امريکـايی ځواکونو په باګرام هوايي آډه کې ساتلی و له شلو ورځو بعد يې دسـيمې دخلګـو دډيـر اصرار له امله سپين ږيرو ته وسپاره او دغه د صليبي تاړاک پر ضد مبارزې مخکښ اتل د نوبهار ولسوالۍ ته څيرمه دمشيزو په کلي کې خاورته وسپارل شو.

**د شهيد ملا روزي خان د شخصيت په اړه:** د افغانستان د اطلاعـات او کلتـور او معارف پخوانی وزير ملا اميرخان متقي چـې پـه ۱۹۹۷ م کـال کـې دسـالنګ لـه لاري

شمال ته د اوښتو طالبانو سره یوځای او دکندز د محاصرې عینی شاهد و،د مـلا روزي خان جهادي فعالیتونه او له جهاد سره شوق یې له نیـژدې پـه خپلـو سـترګو لیـدلی او څارلی،ددښمن په وړاندې دهغه مهال په تعرضونو کې دنوموړي،دپـوره میړانې،پـوځي نبوغ او هوښیارۍ یادونه کوي، همدا راز د امریکـایي اشـغال پـه وړانـدي دجهـاد پـه شروع کولوکې دشـهید مـلا روزی خـان عمـده رول د قـدر وړ بولي،نومـوړی دشـهید عاکف دشخصیت په اړه خپل نظر په لنډو ټکو کې داسي څرګندوي:

په پلخمري اوکندز کې دمحاصري او مقاومت شپي ورځي واقعا دتکلیف ،سـتړیا او فشار له اړخه کم ساري وې چي هرچاېې دبرداشتولو توان نه درلـود، مـلاروزي خـان اخند چي په هغه وخت کې په عمر هم کشر و خو ثبات او لوړ مورال یې دیوه ډیرپاخه او تجربه کاره شخصیت په ډول و. نوموړي له دې سـختو حـالاتو سره خـورا پـه وریـن تندي برخورد کاوه هغه داتکالیف اصلا تکلیفونه نه بلل زما یـې دا وړتیـاډیره خوښـیده چي په کوم طرف به سختي وه ،ددښمن فشاربه واو په ده به مو ژغ وکړ خورا په چټکي او خوښۍ به فورا هغه لوري ته روان شو اودخطرپروایې نه کوله بـل داچـي دالله دلاري دیوه مجاهد ترټولو ممتازه خاصه باید ښه اخلاق وي شهید ملا روزي خان لـه دې املـه هم الله تعالی په لوړ انعام نازولی و.

تکړه لیکوال او شنونکی مولوي عبدالرحیم ثاقب چې له ملا روزي خـان سره یـې ډیرځله لیده کاته شوي، د نوموړي په اند شهید ملا روزي خان دامریکا یی اشـغال پـه ضـد دجهـاد او مقاومـت مشـهوره او تـاریخ سـازه څهـره ده نومـوړی زیـاتوي: شـهید ملاروزی خان یوځوان نوښتګر شخصیت وه چې په ښکلې جهادي څیـره کـې یـې تربـل هرڅه زیات دپوځي نبوغ او زکاوت نښې څرګندوې ، ماچې به کله هم نومـوړی شـهید لیدو، د ده په لیدو به مي په زړه کې جهادي عزم او همت را تـازه کیـدو ، هغـه مهـال چې د غربي میډیا د تبلیغاتو په مټ صـلیبي ځواکونـه د نـړۍ بي سـیاله فـاتحین بلـل کیدل او د دوی په مقابل کې دریدل یواځې له خپل ژوند سره دلوبو کولو پـه معنـی و شهید ملاروزي خان په خپل جهادي همت او شجاعت سره عملاوکړای شول چې افغان

ولس ته د یرغلگرو په مقابل کې دبریمنې مقابلې روحیه ورکړي . د صلیبي یرغلگرو په خلاف د جهاد ابتدایي مراحل ډېر تاریخ جوړوونکې حساسې شیبې وي چې اساس یې د شهید عاکف په څیر د غیرتي سرښندونکو غازیانوپه فداکاریو او قربانیو ښودل شوی دی.

**د اسلامي امارت ویاند ښاغلی ذبیح الله مجاهد وایي :**

دشهید ملا روزې خان له نامه سره هغه مهال آشنا شوم چې دطالبانو داسلامی تحریک ځواکونه په میدان ښار کې دشر او فسادله ملیشو سره په جگړه بوخت و، د کوه قرغ په استقامت به اکثره وخت دې ته اړتیا پیداکیدله چې مجاهدین د دښمن په مرکزونو او پوستو تعرضي بریدونه وکړي ، ددغو بریدونو په جریان کې به د میدان ښار د خط ټولو مجاهدینو خپله ونډه اداکوله په دغو جگړوکې به ځینې مجاهدین چې خورا زړور ، باتور او میړنې معلومیدل له یوبل سره اوږه په اوږه دتعرض په هیله روان و ، تور او نوي ثقیلان ( پیکا ماشینگڼ) به ورسره وو او دبرید په لور به یې قدم واهه، په دغو کسانو کې زما په یاد پاته ملگري یو هم دزابل ولایت مشهور قومندان ملا روزي خان ، ورسره بل مشهور دلگۍ مشر ـ ملابسم الله سحر او دپکتیا ولایت دزرمت اوسیدونکی (جگ) ملا نذیر اخند و، دغو دریو ملگرو به په خپل منځ کې خورا مینه او صمیمیت لاره، له ملا روزي خان سره دلږ اوږدې زمانې لپاره هغه زمانه شناخته پاتې شوم چې دکندز په ولایت کې دلومړي ځل لپاره طالبان محاصره شوي وو. په دې مهال شهید ملار وزې خان اخند دکندز په بالاحصار او ورنه لاندې نیږدې مرکزونوکې له خپلو گڼ شمیر طالب ملگرو سره اوسیده او وخت په وخت به یې د محاصرې به زمانه کې کله یو خوا او کله هم بله خوا ددښمن دتعرضونو مخنیوې ته دانگل او په ډېر اخلاص یې جهادي خدمت کاوو. کله چې خبره امریکایي یرغل ته ورسیده نو د دوهم ځلي جهاد په پیل کې مې بیا دملاروزې خان اخند نوم د زابل په ولایت کې واوریده چې دمیړانې ملایې تړلې او له یرغلگرو سره په جگړه بوخت ده، نورهغه صفات چې دده د لاډېر متانت او لا قهرمانۍ په اړه اوریدل شوي بیخي زیات دي کوم شی چې زه

زيات متاثر کړم هغه دا و چې يوه مخلص ملګري راته دشهيد ملا رزوی خان کيسه کوله، چې يو چاترينه پوښتنه وکړه چې ډيره ښه ځواني دې ده نو که جهادکوي شهيد نشي ؟ وايي ده ورته په ځواب کې وويل چې( زما هم دا خوښه ده چې خداي راکړې ښه ځواني بيرته دالله په لاره کې قرباني کړم ) .

له پورته ويناڅخه دده نيت ، خلوص او له الله تعالي سره مينه څرګنديږي .

شاعر او ليکوال ملا راز محمد ساقيار چې شهيد عاکف يې له نږدې پيژانـد، پـه سنګر او يو شمير سفرونو کې ورسره ملګری شوی، دنوموړي پـه اړه وايـي، مـلا روزي خان دجنګ په ميدان کې دقهرمانۍ او فداکاري ترڅنګ دنورو ګڼو عالي صفاتو درلودونکی و،دښايسته صورت او سيرت،لوړو اخلاقو او متواضع طبيعت د درلودلو لـه امله يې دخلګو پـه زړونـو کـې ځـاي پيـدا کـړی و،دمختلفـو قومونـو او مختلفـو ژبـو مجاهدين(عرب،ترک، او ازبک) ورسره ملګري وو چې ترخپله وسه يي کوشش کاوه چې له ټولو سره په شناخت او علاقه کې مساوي ګوزاره وکړي. په وروستي ځل چې بيا پـه هغه موده کې پسې شهيد هم شو ترشپږ مياشتې زيات وخت مسلسل لـه مجاهدينو سره په سنګر کې پاته واو دشهادت په شوق يې وخت تيراوه.نوموړی دجهاد په کارونو کې خورا زيات جدي سړي وو.

ملا عبدالاحد جهانګير وال، داسلامي امارت دحکومت په مهال داميرالمؤمنين کاتب او سکرتردشهيد عاکف په اړه خپل نظر داسي څرګندوي:

شهيد ملا روزي خان له ښايسته ځـواني او نيکـو صـفتونو سره سره يـو اسـتثنايي شخصيت، دلوړ فکر او عالي تدبير څښتن و، ټول فعاليتونـه او تحرکـات يـې د اسـلام، وطن او د اولس دخلګو په ګټه و داسلامي نظام برپا کيدل او دهيواد ازادي يې تر ټولو غټ ارمان وو، او په دي لار کې شهادت يې ارزو وه،دده له شهادت وروسته رامـنځ تـه شوې خلا تراوسه پوري موږ ډکه نکړای شوه.

د یادوړ ده چې د نوموړي جهادي مرتبت له دې هم اټکلولای شو، چې امریکایانو یي دشهادت خبر ډېر مطبوعاتي کړ،د نوموړي دشهادت په پیښه یي مستند فلم جوړ او نشر کړ،او د نوموړي جسد یي د دریو اونیو لپاره د بګرام په اډه کې ساتلی و، په هر حال شهید ملاروزي خان اخند د سختیو او ناهیلیو په تورتم کې هغه ځلنده ستوری و چې د ځوان جهادي نسل امیدونه یي تاند ساتل، په پای کې دا ستوری د شهاب غونډې د وخت په شیطان راپریوت او دخپل تن په بیه یې د وخت فرعون ته عبرتناک ګوزار ورکړ.

## ددښمن اعترافات

کله چې د زابل په لیرو پرتو ولسوالیوکې داشغالګرو او کابل اداري فعالیتونه محدود شول،مجاهدینو ډېره توجه دکابل کندهار لویې لارې ته واړوله په دغه لاره د اشغالګرو ځواکونو په پوځي او اکمالاتي کاروانونو یې حملو ته زور وکړ په عمومي سړک یې پوره کنترول او واک پیدا کړ ډېر وخت به دکابل کندهار عمومي لار دساعتونو لپاره دمجاهدینو دعملیاتو له امله بند وه.دې حالت دکابل اداري چارواکي سخت په تنګ کړل له مجاهدینو سره ده څه تیرې بیري دخبرو کولو کوششونه یې پیل کړل. په دې موده کې یوځل علی احمد جلالي چې هغه مهال دکابل رژیم دکورنیوچارو وزیر و، له ملا روزي خان سره یې ټلیفوني اړیکه ونیوه او داسي یې ورته وویل، ته یو زړور افغان یې او ددې خاوري غیرت من بچی یې زه ستاسو په میړانه ویاړ کوم،ته دافغانستان یوه هستي یې په دې بې ځایه مقاومت کې خپل ژوند له لاسه مه ورکوه،که تاسو غواړئ چې له مقاومت نه لاس واخلئ ستاسو هرډول شرایط به ومنل شي او هرڅه امتیاز به درکړل شي.

ملاروزی خان په ځواب کې ورته وویل: زه ستاسو ددې حسن نظر چې زما په اړه یې لری ستاینه کوم،باید ووایم افغانستان اشغال شوی دی، وطن ته مو کفري لښکرې راغلې،اوس وخت په موږ او تاسو ټولو جهاد فرض دی،دخپل ځان په اړه به درته ووایم

ترڅو چې یو اشغالګر خارجي عسکر په افغانستان کې موجود وي زه به لـه جهـاده لاس وانخلم.

د کابل کندهار په لویه لار نژدې هره ورځ ددښمن اکمالاتي ټیلر اوټانکر تر بریـد لاندي راتلل او دروند مالي زیان ور اوښت، ملا دادګل مسلم وایي، یوځل دکابـل اداري دغزني والي اسدالله خالد ملا روزي خان ته ټلیفون راوکړ او ورته یی وویل، په اکمالاتي ټانکروو او لاریو بریدونه پریږدئ هره میاشت به یې په مقابل کې تاسو ته یو لـک ډالـر درکوو.خو حاجي ملا روزي خان ورسره ونه منله.

رحمه الله تعالی



# د شهيد مولوي نور محمد حقپال ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه: مفتي ابومحمد حقاني

دختيځ نابغه او د اسلامي امت د وحدت ستر دعوتگر علامه سيدجمال الدين افغان رَحِمَهُ ٱللَّهُ څه ښه ويلي : ( په شرق کې ميړونه او نوميالي چې ژوندي وي، نو مړه دي، خو چې کله بيا مړه شي ،نو بيا ژوندي شي))، دا رښتيا خبره ده، چې زمونږ په ټولنو کې دژونديو علمي ،جهادي اويا ټولنيزو شخصيتونو قدرنه وي او نه يې دستاينې او درناوې پاڼه څوک اړوي ،دوی دخلکو په منځ کې ورک وي او که کوم علمي اثريا حماسي شهکاري يې ډگر ته راونه وځي، نو څوک يې نه پيژني او نه يې څوک په استعداد او وړتيا باندې وياړي، خو چې ومري او ددوئ له سترگو پناه شي، نو بيا پرې نمانځغونډې جوړيږي ،مرثيي او شعرونه پرې ويل کيږي ،ژونډليکونه او آنډليکونه يې په يادليکل کيږي او دامهال خلکو ته ټولمنلې اجتماعي ستڼه شي .

خبره مې د شهيد مولوي نورمحمد حقپال دميړانې او قهرمانۍ په اړه کوله، چې دا فقيد شخصيت هم دداسې عجيبو او غريبو صفاتو خاوند و،چې زمونږ غونډې ډېر نور ترې بې برخې دي ،دده دشخصيت دځانگړتياوو په باب زما معلومات ځکه بايد وي ،چې زه هغه مهال په (١٩٩١او ١٩٩٢ميلادي)کلونوکې دپيښور دسپين جومات دجامعه اسلاميه نعمانيه دپنځمې درجې طالب وم او نوموړی شهيد راسره په ځينوکتابونو کې يوځای و.

هغه وخت چې دروسانو ديرغل پر خلاف دجهادکلونه وو،نو شهيد حقپال صاحب دمرحوم مولوي محمديونس خالص رح ترقيادت لاندې اسلامي حزب کې د شهيد انجنير محمود په اړوندو جبهاتوکې د يوه تاند او هڅاند مجاهدپه توگه پيژندل کيده

او داړتیاوو په وخت کې به ترهر چا وړاندې دجهاد په مورچلونو کې ولاړ و،لـه پخوانـه یې جهادي رزم او حماسي خوښیدې او له مورچلونو سره یې لیونۍ مینه وه.

**زوکړه :**

شـهید مولـوي نورمحمـدحقپال دننګرهارولایـت د خوګیـاڼو ولسـوالۍ دوزیـرو دسیمې د(پیره خیلو)کلې کې د محـترم الحـاج خیرمحمـد کـره پـه (۱۹۷۰ز)کـال کـې وزیږیـداو دژونـد دسـتړتیاوو خـاپوړې یـې پیـل کـړي، کـوچنی و سـتر شـو،بلوغ تـه ورسید،دجهاد اوعلم له کرشمو نه یې خپله بهره واخسته او بالاخره په همدې سپیڅلې لاره کې یې خپله پاکه وینه څښتن تعالی ته نذرانه کړه .

**زده کړه او فراغت :**

شهید الحاج حقپال د خپل ځیږ او اغزن چاپیریال او هـم د هجـرت د سـتونزمنو شیبو له زغملو سربیره له پیله خپلو اسلامي زده کړو تـه ادامـه ورکـړه او لکـه د هیـواد دنورو علماوو په شان یې خپل ابتدایي درسونه دهجرت په دیار کې دپیښورپه مختلفو مدرسو کې ولوستل او له نیکه مرغه چـې دوره حـدیث یـې پـه وتـلي علمـي درسـګاه( جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک )کې په (۱۹۹۳ میلادي)کال بشپړ او هماغلته یـې همدا کال دپګړۍ تړلو مراسم ترسره او بری لیک ترلاسه کړ. تـردې وروسـته نومـوړې هیواد کې د(۱۳۷۰او۱۳۷۵ش)کلونو ترمینځ دخپـل کـلي پـه یـو مسـجد کـې دامـامتۍ سپیڅلې دنده ترسره او ورسره په یو ه ځایي مدرسه کې د مدرس په حیث پـاتي شـواو خپل ځان یې لکه دنورو علماوو غوندې په داخلي جنګونـوکې لـه تلویـث او ککړتیـا نـه وژغوره ،ترڅو چې په میوند کې دطالبانو داسلامي تحریـک سـپین بیـرغ رپانـده او دا نومـوړی شـهید ددې ژغورنـده کـاروان دسرلښـکرفقید لارښـود ملامحمـدعمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ تر مشرۍ لاندې روان شو .

**دطالبـانو اسـلامي تحریـک سره ملګرتیـا:** هاغـه وخـت چـې هیـواد دداخـلي ټوپکسالارنو،او مغرضوکړیولخوا دتجزیـي او عـدم ثبـات لـه خطـر سره مخـامخ شـواو

ناچاره دهيواد طالبانواو علماوودخپل ايماني او اخلاقي مسؤليت پر اساس دشروفساد پر ضد پاڅون ته چمتو شول، له نيکه مرغه داميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رح په قيادت دطالبانواسلامي تحريک دکندهارپه افق کې ظهور وکړاو ترخوست ولايت پورې راورسيد،نو هماغه وو،چې نوموړی قهرمان شهيدمولوي نورمحمد حقپال هم دخپل استاذمولوي محمد ظاهر نصرت په مشرۍ ديوې لويې ډلي مجاهدينو په شمول ددې تحريک سره په (۱۹۹٦ز)کال کې عملاًيوځای اوله مشرتابه سره يې بيعت وکړ،دتحريک دمشرانوحکم ته يې لبيک ووايه ،تردې چې دطالبانودقهرمان قوماند شهيد ملا بورجان رَحِمَهُ ٱللَّهُ په لاس ننگرهارفتحه اوفاتحې لښکرې دکابل تر ماهيپره پورې ورسيدې .

## دندې او مسؤليتونه :

کله چې دننگرهار ولايت دطالبانو داسلامي تحريک له خوا فتحه شو، مولوي محمدظاهر نصرت چې يو نظامي پياوړی تجربه کار مجاهد و، دتورخم او سرحدي نظامي مرکزونو اوقطعاتو لپاره دعمومي مشر په توگه وټاکل شو. نو داوخت مولوي نورمحمد حقپال دنوموړې سره دهمکار او اعتمادي ملگري په توگه وظيفه ترسره کوله، دڅه مودې وروسته چې کله مولوي محمد ظاهر نصرت په شهادت ورسيد، دننگرهارولايت دمسؤلينولخوا يې پر ځای مولوي محمدالله( وحدت) دعمومي نظامي مشر په توگه اومولوي نورمحمد حقپال د معاون په توگه وټاکل شول، شهيد مولوي محمدالله وحدت به زيات وخت دهيواد په شمال کې دمخالفينو سره دمجاهدينو قومانده په غاړه لرله، نو ځکه به مولوي نورمحمدشهيد دلته دمعاون او سرپرست وظيفه ترسره کوله،دوخت په تيريدلو سره مولوي محمدالله وحدت دکابل سره نږدې د گلدرې په سيمه کې په شهادت ورسيد، اوپر ځای يې شهيد مولوي نورمحمد حقپال وټاکل شو، نوموړی ددې سربيره شمالي جنگي کرښو ته دتشکيلاتو پر وخت څوځو ځله په مختلفو ځايونو کې دمسئول په توگه ټاکل شوی،همدارنگه دننگرهار ترټولو مهمه او ستراتيژيکه ولسوالي ( دره نور) لپاره دولسوال په توگه توظيف شو، چې له

هغې وروسته دننگرهار دهسکې مینې ده بالا ولسوال وټاکل شو، ددې سربیره دننگرهار دولایت دمشرتابه لخوا وخت ناوخت دنظامي قطعاتو او غونډونو سرپرستي هم ترسره کړي. د(تورخم دشمشاد،د اقصی لوا دقوماندان په توگه،د ډکې دغونډاو لنډي خیبر) اونورو سرحدي قطعاتو دمسؤل په حیث یې هم مسؤلیتونه ترسره کړي دي.

دامریکایانو لخوا پراسلامي امارت له یرغل وروسته دننگرهار دنظامي چارود مسئول په توگه تعیین اوپه هغو حالاتوکې یې دنوي انقلاب او صلیبي اشغال پرخلاف دننگرهار په سیمه کې دجهاد دسپیڅلې مبارزې لپاره ځوانان وهڅول.

**یوه نه هیریدونکې تاریخي حماسه :**

د شهید حقپال پر نورو حماسي اوجهادي ویاړنوسربیره یې یوه لویه ویاړنه او حماسه داده، چې مولوي نورمحمد شهید په هماغوسختو شرائطو کې چې دامریکا صلیبي مزدورانو په پوره زور سره دهر ډول مهړنو وسلو او جنگي الوتکوپه را الوځولو سره تاریخي (توره بوړه) خپل هدف وگرځوله ،لکه څنگه چې گومان کیده، چې شهید شیخ اسامه بن لادن رَحِمَهُ ٱللَّهُ په (توره بوړه ) کې له خپلو ټولو عربو مجاهدینو سره محاصره دی او دښمن یوه لحظه هم دبمبار او توپونو څخه پرته نه پریښودله، مگر په هماغو سختو حالاتو کې مولوي نورمحمدحقپال دخپلو مجاهدینو سره دمرستې په موخه (تورې بوړې ) محاذته ورغی او دخارجي مجاهدینو دخوندي ایستلو لپاره یې لارې چارې برابرې کړي او دلوی خدای په فضل سره په خپل پلان کې بریالی او زیات مجاهدین او مشران یې لدې محاصرې روغ رمټ را ووتل ، تردې وروسته یې هم دیرغلگرو پرخلاف په نظامي میدان کې په تدریجي ډول دافرادو اومجاهدینو په جلب اوجذب کې بې ساري خدمات انجام کړل او ډیر فوائد پرې مرتب شول .

**یو زوی او دوه شهیدان ورونه :** د اسلامي امارت دسپین بیرغ تر قیادت لاندې شهید مولوي نورمحمد حقپال رَحِمَهُ ٱللَّهُ خپل دوه ورونه او یو تنکی زوی دالله تعالی ددین لپاره نذرانه کړل. یو ورور یې (شهید ملک عنبرگل ) وتلی نظامي تجربه کار او

دده له شهادت وروسته یې دسیمې دمجاهدینو مشرـي پـه غـاړه لرلـه،دامریکایانو پـه هوایي برید کې په شهادت ورسید. دویم ورور یې چې د زړ ورتیا او جرأت یـوه نمونـه وه شهید قوماندان (ملا احمد حنیف) نومیده ،نوموړی په نظامي میدان کـې دیـو ښـه ملګري په ځای ولاړ و، د صلیبیانو او هغوئ دمزدورانو د چاپې پر مهال شهید شو.او په دې وروستیو کې یې اته لس کلن مشر زوی ( طالب الحق) د داعشیانو سره په مخـامخ جګـړه کـې پـه شـهادت ورسید،شـک نشـته چـې دشـهید مولـوي نورمحمـد حقپـال کورنۍ جهادپاله او داسلام لپاره دقربانیو زیاتې بیلګې لري .

**ځانګړتیاوې:**

په شهید مولوي نورمحمد کې دیوه شریـف او سـنګین انسـان ټـول خصوصـیتونه موجودو. په کوموصفاتو چې یو بشر د کمال پـر پوړیـو خیـژي، څښـتن تعـالی هماغـه ځانګړنې ددې شهید په برخه کړي وي. نوموړی څومره چې ماپیژاند یومتواضع ،تقـوی دار او فقیرمزاجه انسان و. دهرطالب ،مجاهـداو ملګـري مخکـې بـه یـې ښـه چلنـد او تواضع ویاړ باله ،تل به په خړو پړو جامو او ساده لباس کـې ګرځیـده ،دخپـل ځـان پـه باب یې داسې فکرنه کاوه، چې زه بایدهروخت ترنورو لوړ واوسم ،دجهاد سره مینه یې بله مهمه ځانګړنه وه ،دسبقونو تر څنـګ بـه دجهـاد پـه مورچلونـو کـې تـل حـاضر و . اجتماعیت او غوره اخلاق یې بله ځانګړنه وه ،الله تعالی ورته کریمه اخلاق ورکـړي و او د خپلو ښو اخلاقو په وجه پر خپلو ملګرو ډیر ګران و،نو په ټولیز ډول به وواېو چې ټـول هغه صفات پکې څښتن تعالی ایښې و،کوم چې دیوه نیک انسـان دتکامـل لپـاره اړیـن عناصر وي .

**شهادت :**

مولوي نورمحمدحقپال چې دجهاد په لاره کې دهیڅچا له دښمنۍ نه ډاریده او نه یې دچا د عداوت پرواکوله، له هغې وروسته چې ننګرهـار او خوګیـاڼوکې یـې جهـادي بریدونه کول، نو ډاریدلي دښمن نور دده ژوند دخپل ځان مرینه بلله، نو هماغه و،چـې نومـوړی یـې دهجـرت دیـار دپیښـور دلطیـف آبادپـه سـیمه کـې پـه( ۲۰۰۴زکـال

دسپتمبرمياشتې په لومړۍ نيټه )په يوه ناځوانمردانـه ظالمانـه غلچکې بريـد کـې پـه شهاد ت ورساوه (اناﷲ وانا اليه راجعون)

## خاطرې اوآندونه:

حافظ مولوي عصمت الله (عاصم) دمولوي نورمحمد حقپال دميړانـې، اطاعـت او نورو صفاتوپه مورد کې داسې وايې : محترم مولـوي نورمحمـدحقپال روان جهـاد کـې زمونږ په لومړنيو ملگرو کې دی او له پيله يې دجهاد وسله راخستې او ترشهادته پـورې يې بيا کښينښوده ،عاصم صيب وايې : چې شهيد نورمحمد حقپال ډير وفاداراو مطيـع مجاهد واو په ورسپارل شويو دندو کې يـې لـه پـوره صـداقت نـه کـار اخسـت،حقپال صاحب دشهادت ډير هيله من وو، ،دنومـوړې سره دملگـرو او مجاهـدينوداتفاق ډيـره مينه وه او ددې زيات ليوال و،چې اتفاق مينځ ته راشي ،دهيواد آبادۍ سره يـې علاقـه ډيره وه ،غوښتل يې چې وطن يې سمسور شي ، اطاعت او دمشرانو خبرې منل يـې يـوه ځانگړنه وه، ددې نه په غير نـور داسـې صـفات پکـې و، چـې هغـه دده د شخصـيت د محبوب جوړيدنې سبب گرځيدلې و.

دافغانستان د نامتو علمـي او جهـادي شخصـيت محـترم مولـوي محمـد يـونس خـالص بابـا زوی او دده ځـا ی ناسـتی محـترم( مولـوي انوارالحـق مجاهدصـيب)چې دشهيد مولوي نورمحمد حقپال سره يې ملگرتوب درلود،دنوموړې شهيد په باب خپلـه خاطره داسې بيانوي: دامريکا په مشرۍ دکفارو له يرغل او اشغال څخه وروسـته چـې کله بيا ننگرهارکې دمجاهدينو نظم جوړيده، نو داسې يومتفق عليه شخصيت تـه اړتيـا وه، چې دننگرهار ټول طالبان او مجاهدين پرې راټول شي ،هماغه و،چې مشرانو زمـونږ څخه مشوره وغوښته ،نو زمونږ په پيشنهاد او داکثريت په اتفـاق د ننگرهـار دجهـادي دانسجام او تنظيم لپـاره لـومړنی مسؤل (شـهيد مولـوي نورمحمـد حقپـال )دامـارت دمشرتابه لخوا مجاهدينو ته تعين شو.

دشهيد مولوي نورمحمد حقپال پـه اخـلاص او قربـانۍ دننگرهـارټول مجاهـدين قانع وو،نوځکه يې پر مشرۍ او مسؤليت هم کوم مجاهد اعتراض نـه درلـود. يـوه بلـه

خاطره یې داده، چې کله ننګرهارکې امارت سقوط وکړ او په (توره بوړه) کې پـه عـرب مجاهدینو سخته جګړه روانه وه ،نورمحمدشهید هم لکه دننګرهار دنورو مجاهدینو په شان ددغه میلمنو پالنه او ساتنه خپل اخلاقي اودیني مسؤلیت باله او ددوئ ضیاع یـې دافغانانو اوبیا ننګرهاریانو لپاره تاریخي شرم ګاڼه، نو ځکه ځمکې ځای نه ورکاوه او په سیمه کې موجود و،ترڅو ددغه میلمنوپه خدمت کې فعاله برخه واخلي ،هماغه و،چې په لویه کچه دخدمت موقـع پـه لاس ورغلـه ،او دغـه ارمـان یـې پـوره شـو او دهغـوئ دحفاظت اوساتنې په لاره کې یې داسې خدمات ترسره کـړل، چـې دنومـوړې اولاده او کورنۍ باید پرې فخر وکړي .

## مولوي نورمحمد حقپال زما ډیرخوږ ملګری و.

ملانیك محمد(رهبر)دشهیدمولوي نورمحمـد حقپـال کشرـ ورور ،ځـای ناسـتی او اوس مهال په ننګرهارکې دپوځي قطعاتو عمومي قوماند دی، نوموړی دخپل شـهید ورور په باب داسې وایې : هغه شپه به مې هیڅکله هیـره نشيـ ،چـې دننګرهـار دخوګیـاڼوپیره خیلوکلې کې زمونږ په کـور بانـدې تـوره شـپه کـې امریکـایي اشـغالګرو اوددوی غلامـو عسکرو پداسې حال کې چاپه ووهله ،چې ددوی شمیر سلګونه او هـوایي جنګـي الوتکـواو زغروالو شوبلو یې بدرګه کوله. ما کتـل چـې شـهید مولـوي نورمحمـدحقپال او بـل ورور شـهید ملـک عنبرګـل پـه ډیـره میړانـه پـر اشـغالګرو حملـې کـولې ،مجاهـده مـور مـې همداسخته شیبه دنورمحمد شهید سره څنګ کې ولاړه وه او ورته به یې نه یوازې داویـل چې روحیات مه بایله، زه درسره تر آخرې سلګۍ پورې ولاړه یـم او حتـی مرمـۍ یـې هـم ورته رسولې.همداشپه مې دریم ورور(ملااحمد حنیف) دکورپه حجره کې و، دجګړې پـه پیل کې ولګیداو ژوبل شو،مولوي نورمحمد شهید غوښتل چې له دروازې نه یې کورتـه را دننه کړي ، خو هغه ورته ویل :چې زه خو هسې هم تللی یم (شهید کیږم)ته مه راځه! کله چې مو له جګړې نه چې وروسته رادننه کړ،ګوروچې مـلا احمـد حنیـف دشـهادت جـام څښلی و،ګرده شپه مو اشغالګرو سره له خپل کوره جګړه وکـړه، ترڅـو چـې دسـیمې نـور مجاهدین مو مرستې ته راورسیدل ،دامهال ګورو،چې ملااحمد حنیف په سرو وینو کـې

پروت دی ،خپل روح یې خپل لایزال څښتن تـه سپارلی دی، پـه معجزانـه ډول مـوددې شهید نه پرته دکور ټول غړي روغ رمټ او ژوندي پاتي شول .

د (ملنګ کاکا) په نامه دشهید حقپال یوبل مخکینی ملګری، دنوموړي شهید پـه اړه وایي : چې کله مولوي نورمحمد حقپـال شـهید پـه (۱۹۹۸ز)کـال کـې دشـمالي پـه خطونوکې مسؤلیت درلود،نو بل وروریې ملا احمد حنیف ژوبـل شـو، نومـوړی حقپـال چې پخپله هم په مټ زخمي شوی و،نه یې غوښتل چې له خپل ټپ نه خپل زخمي ورور او نور ټپي شوي مجاهدین خبرکړي ،نوځان یې په څادر وتاړه او کابل کـې روغتـون تـه دزخمیانو پوښتنې ته ورغی ،دامهال چې په لوړه روحیه پخپله هم زخمي او دزخمیـانو پوښتنه کوي ،دننګرهار دهغه وخت دامنیه قوماندان مولوي احمد طـه هـم ورغلـی و، ورته یې وویل چې زمونږ پـه ژونـد کـې دې تاخـدای الله تعـالی لـه مـوږ نـه کموي،نو نوموړي شهید ورغبرګه کړه: چې که زه شهید شوم، نـو دانـور زمـري وروڼـه لـرم چـې دظالمانو خلاف به زما په پل پل ږدي ،ملنګ کاکا زیاتوي چې همداسې شـول د مولـوي صاحب وروڼو هم د جهاد لاره وپالــله .

ابوبلال انوري دشهید په باب وایي : مولوي نورمحمد حقپال رَحِمَهُ ٱللَّهُ داستاذانواو مشرانو په خدمت کې له ډیر اخلاصه کار اخیست او هڅه به یې کوله، چې دمشرانو او استاذانو خدمت وکړي ، ترڅو یې دجهاد له سنګره راستون نه کړي.

**پاتي ورثه:**

شهید الحاج نورمحمدحقپال رَحِمَهُ ٱللَّهُ ټول اوه وروڼه درلودل چې دوه ترې مشـران او څلور ترې کشران وو، دنورمحمدحقپال رح په شمول ترې درې ورونه شهیدان او یـو ورویې په سعودي کې وفات شوی، چې فعـلا یـې درې ورونـه ژونـدي دي ،د نومـوړي شهید یوولس اولاده دي چې مشر زوی یې هم د شهادت په مرتبه فائز شوی دی.

رحمه الله تعالی

## د شهيد ملا راز محمد خنجري ژوند ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

افغانستان د جهاد او خپلواکۍ ښنونکو مبارزو هيواد دی ددې هيواد د تاريخ تـر نيمايي ډېره برخه له جهادي مبارزو جوړه ده. همدلته د نـړۍ ډېـر کـبرجن طواغيـت وهل شوي او له پښو غورځيدلي دي،په افغانستان کې د ناټو او امريکـايي يرغلگـرو لـه شکست سره په نړيواله سطحه دې هيواد ته د امپراطوريو قبرستان لقب ورکـړل شـوی دی.

په افغانستان کې چې د هر عصر کبرجن فراعنه له شکست سره مخ شـوي او دې خطې او اولس ته يې تاريخي وياړونه وربښلې نو دا ټول څه هسې مفـت نـه دي ترلاسـه شوي، بلکې ددې هيواد مؤمنو اوسيدونکو سترې قربانۍ په ځان مـنلي دي، د ايثـار او استشهاد سترې بيلگې يې نندارې ته وړاندې کړي دي ترڅـو يـې پـه پـای کـې کفـري طواغيت له پښو غورځولي او اسلامي امت ته يې نجات ښنلی دی .

د افغان اولس د حماسو،شـهادتونو، قربـانيو او ويـاړونو کيسـې دومـره ډېـرې او پراخې دي چې په ټولو احاطه شايد د کوم ليکوال د وس کار نه وي. دلته هرې کورنۍ شهيد ورکړی،هر کور غازي درلودلی ،هره غونډۍ سنگر پاته شوې،په هره تړه د شهيد وينې څڅيدلې او له هر گړنگه مستکبر يرغلگر را رغړيدلي دي. ددې لپـاره چـې ددې په ايمان سمبال اولس د قربانيو او رشادتونو حق مو ادا کړی وي،کله ناکله به د هيـواد له لراوبر څخـه د مشـت نمونـه خـروار پـه حيـث د يـوه اتـل او شـهيد سـوانح درسره شريکوو،تر څو ددې مظلوم خو وياړلي اولس د ميړانې کيسه د تاريخ له حـافظې هيـره پاته نه شي.

دا دی دا ځل د هيواد يوې بلې گوښې ته سر ورښکاره کـوو، د هيـواد پـه جنـوب ختيځ کې پکتيکا ته ځو، هلته د يوه گمنام اتل شهيد مـلا راز محمـد خنجـري يادونـه راسپړو او د ددوو ښکيلاکونو په وړاندې د جهاد له کيسې يې ځان خبروو.

## ملا رازمحمد خنجري

ملا راز محمد خنجري د حاجي خان محمد زوی د مرحوم لعل گل لمسی په قوم پښتون- سليمان خېل په ۱۳۳۵ هـ ش کال کې د پکتيکـا ولايـت د ډيلـې ولسـوالۍ پـه دشت لوړگي سيمه کې په يوه ديندارہ کورنۍ کې دې فاني دنيا ته سترگې رڼـې کـړې وې.

نوموړي په لس کلنۍ کې ديني زده کړې پيل کړې وې او تر ۲۲ کلنۍ عمر پورې يعني تر هغه وخته چې کمونيستانو کودتا وکړه په ديني زده کړو بوخت و. نومـوړي د غزني ولايت د مقر او ناوې په ولسواليو کې د باديني په سرحدي سيمه او نورو مختلفو سيمو کې په کليوالو مدارسو کې ديني زده کړې ترلاسه کړې،کله چـې د ۱۳۵۷ هــ ش کال په ثور مياشت کې په افغانستان کې کمونيستانو کودتا وکړه او په وړاندې يـې پـه درست افغانستان کې مسلح جهاد پيل شو، ملا راز محمد خنجري چې دغه مهال تـازه ځوان و، خپلې زده کړې يي وځنډولې او د کمونيزم په خلاف يې په وسـلوال جهادپيـل وکړ .

## د کمونيستانو په خلاف جهاد

ملا راز محمـد خنجـري پـه لـومړي ځـل جهـاد دپکتيکـا ولايـت د يـوه جهـادي قومندان سيدامير تر مشرۍ لاندې پيل کـړ. ويـل کيـږي چـې ملارازمحمـد پـه تانـده ځوانۍ کې د جهاد لپاره د ټوپک پيداکولو وس نه درلود نوځکه يي يو خنجر اخيسـتی و چې تل به يي له ځان سره گرځاوو د هماغه خنجر له امله نوموړي د خنجري لقـب د ځان کړ، نوموړي په لومړي ځل په هغو عملياتو کې شرکت وکړ چـې د زابـل د شـملزو ولسوالۍ مربوط د درخت يحيا په سيمه کې د کمونيستی رژيم پـه يـوه مرکـز تـرسره

شول. تردې وروسته نومو‌ړي د زابل او پکتیکا په سرحدي سیمو کې په ډېرو عملیاتو کې برخه واخیسته او د خپل جرأت، بهادرۍ او جهادي مهارت له امله د خپلې سیمې په سطحه د یوه وتلي مجاهد په حیث مشهور شو .

د کمونیستانو په خلاف د پیل شوي جهاد درې یا څلور کاله به پوره شوي و، چې نومو‌ړی د مرحوم مولوي محمد نبي محمدي په تنظیم حرکت انقلاب اسلامي کې د یوه مستقل قومندان په حیث وټاکل شو، چې بیا د کمونیستی رژیم د سقوط تر وخته نومو‌ړی په خپله سیمه کې دیوه برجسته قومندان په حیث فعال و، په سلهاوو مجاهدین یې تر قومنده لاندې وو او په ګڼ تعدادکې عملیات یې ترسره کول .

د شوروي یرغل خلاف د جهاد په مهال د ملارازمحمد خنجري تر قومنده لاندې د مجاهدینو مرکز د پکتیکا ولایت د شینکي غره په زرګلانه سیمه کې و له همدې سیمې دوی ټولو شاوخوا سیمو ته عملیات سوق کول چې د کټواز مربوط زیاتره ولسوالۍ یې د تر عملیاتي پوښښ لاندې راتلې. خو ددوی ډېر عملیاتي تمرکز د ګواشتې او پتنۍ غره په سیمو و چې په همدې سیمو له کټواز او د غزني له ناوې ولسوالۍ څخه د وازیخوا په لورې ددښمن اکمالاتي لارې راتیرې وې او شورویانو به غوښتل له همدې لارو په استفاده وازیخوا ته اکمالات ورسوي .

د شورویانو خلاف د جهادپه مهال د نومو‌ړي د کارنامو کیسې خورا ډېرې دي چې دلته به د بیلګې په توګه یوه کیسه راواخلو .

د نومو‌ړي د ملګرو په استناد خنجري صاحب ویل چې د شوروي ضد جهادپه وخت مو یو وخت د وازیخوا ولسوالۍ لویدیځ لور ته د زنګلې په سیمه کې له شوروي عسکرو سره جنګ شو. د سخت جنګ په مهال موږ ددوی مورچو ته بیخي نږدې ورغلو،خو په همدې حال کې چې زه د شورویانو یوې مورچې ته بیخې په نږدې مسافه کې وم ماته د ټوپک مرمۍ راخلاصې شوې،مخامخ په مورچه کې مې روسی عسکر ولید نو د ډېرې ګوزار مې پرې وکړ،هغه له واره لاسي بم راوغورځاوو، بم ماته نږدې ولوید خو مخکې له دې چې انفجار وکړي ما پرې حمله کړه او بیرته مې د روسي

عسکر مورچې ته ورواړوو، بم له غورځيدو سره سم منفجر شو او روسي عسکر پـه دې ډول په خپل لاسی بم له منځه لاړ،نوموړي ويل چـې پـه دې جگـړه کـې مـوږ ديـارلس روسي عسکر ووژل او د ټولو وژل شويو وسلې مو هم غنيمت کړې .

ملا رازمحمد خنجري د روس ضد جهادپه مهـال پـه خپلـه سيمه کـې يـو فعـال مجاهدمشر و،نوموړي دوازيخـوا ولسـوالۍ مرکـز،د ختـک کـلا پوسـته،د خوشـامندو ولسوالۍ د فيضگي کلا پوسـته، د خيرکـوټ ولسـوالۍ مرکـز،د نـاوې مربـوط د زيـان سيمې پوستې او په شاوخوا کې د ګڼو نورو سيمو په فتوحاتو کې مخکښ رول او ونـډه درلوده. دغه راز کله چې د ډاکټر نجيب د حکومت په مهال د غزني د ناوې ولسـوالۍ د سره کلي په سيمه کې ددښمن په ګڼو پوستو د غزني،زابل او پکتيکـا مجاهـدينو پـه ګډه بريالي عمليات وکړل نوموړي په کې مخکښ رول درلود .

## د طالبانو په اسلامي تحريک کې خدمت

د کمونيزم ضد جهاد له پای ته رسيدو وروسته ملا راز محمد خنجري ټوپـک لـه اوږې کوز کړ او د خپلو ديني زده کړو تکميـل تـه يـې مـلا وتړلـه نومـوړی د تنظيمـي شخړو په ټوله دوره کې په درسونو بوخت و. کله چـې دطالبانواسـلامي تحريـک قيـام وکړ، هغه مهال چې طالبان له کندهاره د غزني په خوا روان وو نوموړی د غزني د مقـر په سيمه کې سره له خپلو ګڼ شميرو مجاهدينو لـه طالبـانو سره يوځـای شـو.نوموړي خپلې ټولې وسلې ، مهمات او وسايط چې يو ټانګ او دوه مـوټر هـم پـه کـې شـامل و د طالبانو اسلامي تحريک تـه وسـپارل او عمـلا لـه خپلـو ملگـرو سره داسـلامي تحريـک ملګری شو . د غزني له تصرف وروسته نوموړي ته پـه همـدې ښـار کـې د يـوه نظـامي غونډ مسؤليت وسپارل شو خو زياتره وخت به له خپلـو ملگـرو سره د ميـدان ښـار پـه جنگي کرښه کې و.

د ميدان ښار او کابل ترمنځ چې د طالبانو جنگي کرښه وه، د شيرعلم پوستې پـه نامه ددښمن په يوه مرکز د جنګ په مهال نوموړی په پښه باندې ټپي شو، چې د ملگرو قومنده يې يوه بل ملګري مـلا عبـدالقهار پـه غـاړه واخيسـته،ملاعبدالقهار د کابـل د

فتحې تروخته دغه مسؤلیت ترسره کړ او کله چې د کابل له فتحې لږ وروسته د شمالي په جگړو کې ملا عبدالقهار شهید شو ملا رازمحمد خنجري یوځل بیا جهادي مسؤلیت په غاړه واخیست .

د طالبانو د اسلامي تحریک په دور کې نوموړي په ډیرو جهادي محاذونو کې خدمت ترسره کړ، نوموړی له خپلو ملگرو سره د طالبانو د هغه ستر کاروان ملگر ی و چې په ۱۹۹۷ م کال کې د سالنگ له تونل نه ووتل او دپلخمري له تصرف وروسته یې کندز ونیو په کندز کې له څه مهال مقاومت وروسته ملا رازمحمد خنجري ددښمن دطیارو د بمبار په یوه پیښه کې په سر او لاس زخمي شو او د علاج لپاره کابل ښار ته ولیږدول شو.

له شفاء یابۍ وروسته ملا رازمحمد خنجري لومړی په خوست ولایت کې د یوې نظامې فرقې د مسؤل په حیث تعین شو او ورپسې یې په لغمان ولایت کې تر هغه وخته د یوې نظامي فرقې مسؤلیت ترسره کړ چې امریکایانو په افغانستان برید وکړ .

## د امریکایانو په خلاف جهاد

کله چې امریکایانو په افغانستان حمله وکړه او داسلامي امارت قوتونو له ښارونو څخه اطرافو ته شول، ملا راز محمد خنجري هم له خپلو ملگرو سره خپلې اصلي سیمې ته راستون شو. له څو میاشتو تیریدو وروسته نوموړي په جهادي تحرکاتو پیل وکړ او په خپله سیمه کې یي د مجاهدینوپه تنظیم او د یرغلگرو خلاف د چریکي جهادپه ترتیباتو شروع وکړه.

دغه مهال نوموړي ته د گوډاگیو چارواکو لخوا بیا بیا دعوت ورکړل شو چې له حکومت سره یوځای شي،حتی یوځل خو یو پخوانی جهادي قومندان چې اوس د حکومت تر څنگ ولاړ و، د گوډاگي حکومت په نمایندگي ورته راغی او ورته ویې ویل چې اوس له امریکایانو سره مقابله ناشونې ده راځه په دې نوي رژیم کې به گډ شو او د جهاد فرصت ته به انتظار وکړو .

خو خنجري صاحب ورته وویل چې زه د کفر په وړاندې ټوپک لـه اوږې نـه شـم کوزولی زه دا بهتره ګڼم چې له ټوپک او چانټې سره له دنیا رخصت شم .

د امریکا خلاف د جهاد په ابتدائي کلونو کې چـې مولـوي عبـدالکبیر صـاحب د پکتیکا ولایت عمومي جهادي مسؤل و ملا رازمحمدخنجري په خپله سیمه کـې د یـوه مطرح نظامي مسؤل په حیث دنده ترسره کوله،دغه مهـال نومـوړي او کـورنۍ یـې پـه لرې پرته غرنۍ سیمه کې په کیږدیو کې ژوند کـاوو او پـه پټـه یـې جهـادي عملیـات رهبري کول.

د نوموړي تر مشرتابه لاندې مجاهدینو د یرغل په لومړنیو کلونـو کـې د وازیخـوا ولسوالي فتحه کړه او لوی مقدار وسلې یي له دښمن څخه غنیمـت کـړې پـه وازیخـوا سربیره د د پکتیکا په ډیله ،تروو، خوشامند او جاني خیلو ولسوالۍ کې هم ګڼ شـمیر عملیات ترسره شول چې دښمن ته په کې تلفات ورسیدل او ورسره پـه دې ټولـه حـوزه کې جهادي عملیات راژوندي شول .

## د شهید خنجري شهادت او وروستۍ حماسه

دا چې شهید خنجري د روس ضد جهاد دمهال وتلی مجاهد و او د امریکایانو په خلاف یې هم د جهادتوغ پورته کړی و او د وازیخوا او شاوخوا ولسوالیو په ټولـه سـیمه کې یې ډېر شهرت او اعتبار درلود او دده په اقتفاء ډېر نوي ځوانان جهـادي صـف تـه داخلیدل امریکایانو دنوموړي همدا موقف پیژندلی و نو ځکه یي هڅه کوله چې په هر قیمت وي نوموړی له منځه یوسي .

بالاخره د ۲۰۰۵ میلادي کال د د مارچ د میاشتې پـه ۲۵ نیټـه امریکایـان پـه دې وتوانیدل چې دنوموړي موقعیت معلوم کړي نوځکـه پـه یـوه وحشـیانه چاپـه سره یـې نوموړی په شهادت ورساوو .

د شـهید خنجـري صـاحب ځایناسـتی حـاجي محمـدعمر حنفـي چـې د شـهید خنجري د شهادت د واقعې عیني شاهد دی وایـي چـې دغـه مهـال د شـهید خنجـري

کورنۍ د وازيخوا ولسوالۍ د مهربان نيکه په نامه غرنۍ سيمه کې په کيږديو کې اوسيدله. ماته يې ويلي وو چې د موټر سايکل تيل راوړه او کوم جهادي سفر ته يې اراده وه، سهار وخت و خنجري صاحب په دې ورځ په ستلايټ ټيلفون کې له جهادي ملګرو سره رابطه کړې وه او شايد له همدې امله امريکايانو ته دنوموړي موقعيت معلوم شوی و. زه دده له ځای څخه څو کيلومتره لرې په يوه لوړه سيمه وم چې د خنجري صاحب د اوسيدو کيږدۍ رامعلوميدلې ما غوښتل په کوچنۍ مخابره ورسره رابطه وکړم چې ناڅاپه جنګی الوتکې په فضاء کې راښکاره شوې ورپسې امريکايي چورلکې هم راغلې او د خنجري صاحب د ځای څلورو خواوو ته يي عسکر پياده کړل. لږ شيبه وروسته چې امريکايي عسکر او داخلي ګوډاګيان يي د خنجري صاحب د کور خواته ورنږدې شول ناڅاپه ډزې پيل شوې، ډزې له دواړو خواوو او څو ساعته يې دوام وکړ ،له څو ساعته جګړې وروسته ډزې ارامې شوې او امريکايي چورلکې بيرته والوتلې.

کله چې سيمې ته ورغلم نو کتل مې چې امريکايانو سخت وحشت کړی و، څو کيږدۍ چې د خنجري صاحب لويه کورنۍ په کې اوسيدله نړيدلې وې او د ښځو او ماشومانو په شمول اوه کسه د کورنۍ غړي يې په شهادت رسيدلي وو.

د خنجري صاحب د کورنۍ غړو راته وويل چې خنجري صاحب په خپله خيمه کې خپل کوچنی زوی او لور ته د قرانکريم درس وايه ،چې امريکايي چورلکې راغلې،نوموړي خپل راکټ ، کلاشينکوف او تفنګچه ټول راواخيستل او په يوه لويه کمپله کې يي ځان ونغښت چې دښمن ورسره وسلې ونهويني،امريکايان او داخلي عسکر د کيږديو په خوا راغلل،چې په دوی کې د عنايت کليوال په نامه د اورګون د کمپاين يو مشر هم و، نوموړي په لوډسپيکر کې په خنجري صاحب غږ وکړ چې راووځه او او ايتلافي ځواکونو ته په ارامه ځان تسليم کړه او خپلو ماشومانو او کورنۍ ته تاوان مه رسوه.

خنجري صاحب همداسې په کمپله کې نغښتی له خيمې وروت په داسې حال کې چې راکټ ته يي مرمۍ ورتيره کړې وه، مخامخ يې په همدې کسانو د راکټ فير

وکړ او ټول یې په لومړني ګوزار له منځه یووړل ورپسې خنجري صاحب ځوان زوی یې بشیراحمد او وراره یي طاوس په یوه غونډۍ کې سنګر ونیو او لـه امریکایـانو سره یـې مقاومت پیل کړ .

د څـو تنـو سرتیـرو مؤمنـانو او د کفـر د مجهـز پـوځ ترمنځـه دا جګـړه خـورا حیرانوونکې وه په داسې ډول چې د خنجري صاحب په مشرۍ د کور نارینـه جنګیـدل او د کور میرمنو او ماشومانو ورتـه مرمـۍ رسـولې ،جګـړې درې ساعته دوام وکـړ،د جګړې په ترڅ کې چې کله خنجري صـاحب پـه شـهادت ورسـید میرمنـې یـې وسله واخیسته او له امریکایي عسکروسره یي تر هغو مقاومت وکړ تر څو یـي اخـري مرمـۍ هم د کفارو په خوا وشړله.

د جګړې په ترڅ کې د خنجري صاحب په شمول ټول اته تنه شـهیدان شـول چـې درې پـه کـې د نومـوړي دکـورنۍ ښـځې وې او دوه تنـه نـور د کـور غـړي یـي ټپیـان شول،باید وویل شي چې د نوموړي د کورنۍ ۷ غړي تر دې پخـوا د روسـانو خـلاف پـه جهاد کې په شهادت رسیدلي وو.

امریکایان چې په دې جګړه کې یې ګڼ شمیر عسکر وژل شوي وو دغه راز یې یـو چورلکه هم زیانمنه شوې وه، له ډیر وحشت وروسته یې د شـهید خنجـري او څـو تنـو نورو شهیدانو اجساد له ځانه سره د اورګون امریکایي بیس ته یووړل او لـه هغـه ځایـه یي د پکتیکا مرکز ښرنې ته انتقال کړل. امریکایانو ددوی اجساد کورنۍ ته نـه سـپارل خوتر ۹ ورځو تیریدو  وروسته یې د قومي سپین ږیرو د ډیرو غوښتنو او اصرار په پایله کې ددوی اجساد خپلې کورنۍ ته وسپارل .

په دې ډول د پکتیکا په یوه لرې پرته سیمه کې هغه ګمنام مجاهد له متعهدانـه ژوند تیرولو وروسته د رب تعالی لقاء ته ورغی چې خپل ټول ژوند یي د اسلام ددفـاع او سرلوړی لپاره وقف کړی و، هغه مجاهد چې ژوند یې لـه علم،جهـاد، ذکـر او تقـوی څخه جوړ و .

# د شهيد مولوي محمد ولي صاحب ژوند ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

د هر اسلامي نظام يوه له اساسي وظائفو څخه دا ده چې دالله تعالى مخلوق خير ته رهبري او له شر څخه يي راوگرځوي.له همدې امله خو الله تعالى د مسلمانانو په منځ کې د يوې داسې ډلې وجود ضروري بللى دى چې د امر بالمعروف و نهى عن المنکر مبارکه وظيفه ترسره کړي.

الله تعالى فرمايي: ولتکن منکم امة يدعون الى الخير و يأمرون بالمعروف و ينهون عن المنکر و اولئک هم المفلحون. ۱۰۴ آل عمران

او وي دې ستاسو څخه يوه داسې ډلې چې خير ته دعوت کوي او په نيکيو امر کوي او له بديو نه منع کوي او همدا خلک بريالي دي.

د همدې قرآني امر په اساس له کومې نيتې څخه چې د ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په مشرى د اسلامي مارت قيام پيل شو له لومړيو شيبو څخه يې د سيار گروپ په نوم ډله درلوده چې خلک يې له منکراتو منع کول،په نيکيو يي ورته امر کاوو او د ديني احکامو داحياء هڅه يې کوله.

د اسلامي امارت په هماغو لومړنيو شيبو کې د کندهار له فتحې څه موده وروسته د ۱۳۷۴ هـ ش کال د حمل په ۲۸ نيټه د اسلامي امارت د مشر ملا محمد عمر مجاهد په ځانگړي فرمان د سيار گروپ د ادارې په ځای د امربالمعروف و نهى عن المنکر په نوم ځانگړې اداره رامنځته شوه او د کندهار يو تن پرهيزگار، بااستعداده او د ښو صلاحيتونو خاوند عالم او مجاهد مولوي محمد ولي صاحب يي د مشر په حيث وټاکل شو.مولوي محمد ولي صاحب په دې ډول د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې د

امربالمعروف ونهی عن المنکر د مهمې وظیفې مسؤلیت په غاړه واخیست تـردې چـې د کابل له فتحې وروسته په همدې نامه د نوي رامنځته شوي وزارت وزیر وټاکل شو او د امریکایي یرغل تر وخته یې په همدې بخش کې خدمت ته ادامه ورکړه. دلته پـه دې لیکنه کې د نوموړي په ژوند او کردار رڼا اچوو هیله ده چې د متدین ژوند لـه کارنـامو څخه به یې مستفید شئ.

## د ژوند لومړني مراحل

مولوي محمد ولي حنیفي د ملا محمد عوض زوی او د ملا عبدالواحد لمسی پـه قوم پښتون/علیزی په ۱۳۴٦ هـ ش کال کې د کندهار ولایت پـه سیاچوی سیمه کـې زیږیدلی دی. د یادونې وړ ده چې سیاچوی سیمه هغـه مهـال د پنجـوایي ولسـوالۍ مربوط ساحه وه مگر د نویو اداري تقسیماتو لـه مخـې د ژړۍ ولسـوالۍ مربـوط بلـل کیږي.د مولوي محمد ولي صاحب کورنۍ له پخوا څخه د علـم او دیانـت درلـودونکې کورنۍ وه، پلار او وروڼو یې ددیني علم برخه درلـوده لـه همـدې املـه لـه کوچنیـوالي نوموړي ددیني علم په حاصلولو پیل وکړ.

## د تعلم سلسله

د مولوي محمد ولي صاحب پلار له علم سره خورا زیـات شـوق درلـود لـه خپلـو اولادونو سره یې د علم په حصول کې ډیر زیات کوښښ کاوو او له هر کار څخه یې علم ته فارغ کړي وو.د مولوي محمد ولي صاحب یو ورور وایي چې پلار مـو راتـه ویـلي و: که زما په بدن اور بل و هم ، تاسـو بـه ځـان لـه سـبقه نـه باسـئ او نـه بـه پـه بـل کـار مشغولیږئ.مولوي محمد ولي صاحب چـې د خپلـو وروڼـو پـه مـنځ کـې یـې ځـانگړی لیاقت او استعداد درلود د پلار یې ورباندې ځانگړی نظر و او کوښښ یې کاوو چې ښه عالم شي.

د مولوي محمد ولي صاحب مشر ورور قاري عبدالباري صـاحب د پاکسـتان پـه مشهوره مدرسه دارالعلوم حقانیه کې په تعلم بوخت و. د ثور لـه انقـلاب وروسـته پـه

۱۳۵۸ هـ ش کال کې نوموړي خپل کشر ورور محمد ولي چې دغه مهال ۱۲ کلن و هـم له ځان سره بوت او هلته يې په دې پيژندل شوي علمي مرکز کې ددیني علومو حصـول ته دوام ورکړ.

مولوي محمد ولي صاحب په دارالعلوم حقانيه کې دوه کالـه تيـر کـړل لـه هغـه وروسته بلوچستان ته راغی او دلته يې په بيلابيلو مدارسو کې لکه د کويټې د شالدرې مدرسه، په کراس سيمه کـې دارالعلـوم العربيـه، دغـه راز د هغـه وخـت د مشـهورو استادانو لکه شيخ نور محمد صـاحب، شـيخ عبـدالحکيم صـاحب او شـيخ حبيـب الله صاحب د تلمذ وياړ يې ترلاسه او ددينی علومو له سعادت څخه برخمن شو.

مولوي عبدالغنی صاحب چې د طالبۍ په همدې دوران کې ډير وخـت لـه مولـوي محمد ولي صاحب سره نږدې پاته شوی وايي: مولوي محمد ولي صاحب په ټولـه معنـی يو مخلص،متدين او د علم شوق لرونکی طالب و، په ښه استعداد سربيره يـې پـوره تقـوا هم درلوده تردې چې د شريعت هيڅ مخالف کار يې نه شوای زغملی. د جهاد پـه وخـت کې ما او مولوي محمد ولي صاحب د يوه تنظيم په مدرسه کې زده کړې کولې، يو وخـت ددې تنظيم مشران د هيئتي په شکل په مدارسو گرځيدل، چې زمـوږ مدرسـې تـه هـم را روان وو. د هيئت مقصد دا و چې د مدرسې د ليليه شاگردانو واقعي شمير معلـوم کـړي ترڅو له هغه سره برابره اعاشه ورکړي.زموږ په مدرسـه کـې ليليـه شـاگردان لـږ و امـا د مدرسې اراکينو ددې لپاره چې ډيره اعاشه ترلاسـه کـړي لـه شـاوخوا مسـاجدو يـې ډيـر طالبان راوبلل ترڅو يي هيئت ته د مدرسې د ليليه طالبـانو پـه حيـث وښـيي. کلـه چـې هيئت مدرسې ته راغی او مولوي محمد ولي صاحب د مدرسې د يـوه طالـب پـه حيـث ورسره مخامخ شو، نو وضاحت يې ورته وکړ چې دا طالبان ټول د همدې مدرسـې نـه دی بلکې له بهره راوستل شوي دي، بيا مولـوي محمـد ولي صـاحب لـه هيئـت سره پـه ټولـو اطاقو وگرځيد او هر طالب يې ورته معرفي کړ چې د مدرسـې دی او يـا هسـې پـه جعـل راوستل شوی دی. د نوموړي دا کار که څه هم د مدرسې د اراکينـو د غوسـې او خپگـان سبب شو مگر ځکه يې ترسره کړ چې د هغه طبيعت داسې جـوړ و چـې هـيڅ غيرشرعـي

كار يې نه شوی زغملی . ځکه غدر يو له غير شرعي کارونو او د نفاق له علاماتو څخه دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يي په اړه فرمايي: وعن أَبي سعيدٍ الخدريّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أنَّ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ عِنْدَ اِسْتِهِ يومَ القِيَامَةِ؛ يُرْفَعُ لَهُ بِقَدَرِ غَدْرِهِ. رواه مسلم . رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي د هر غدر کوونکي په کوناټو کې به د قيامت په ورځ د غدر بيرغ ولاړ وي چې دده د غدر په اندازه به لوړ رپيږي.

مولوي محمد ولي صاحب هغه مهال چې نور دکمونيستانو په خلاف جهاد د بريا منزل ته نږدې شوی و يو ځل بيا دارالعلوم حقانيه ته لاړ هلته يې ددوو کلونو په ترڅ کې وړه او لويه دوره وکړه او د وخت له ستر فقيه او عالم شيخ الحديث مولانا مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللهُ څخه يې د نبوي احاديثو اجازت ترلاسه کړ .

## جهادي ژوند

د شوروي يرغلگرو په خلاف جهاد په مهال مولوي محمد ولي صاحب نوی ځوان و،چې د کال زياتره وخت به يې په ديني مدارسو کې ديني علوم لوستل اما د رخصتيو په وخت کې به کندهار ته تلو او هلته به يې د شوروي يرغلگرو خلاف په مسلح جهاد کې برخه اخيستله.

دنوموړي مشر ورور قاري عبدالباري صاحب وايي چې مولوي محمد ولي صاحب د شوروي ضد جهاد په مهال ټول وخت د کندهار ولايت د وياړلي مجاهد شهيد لالا ملنگ په جبهه کې جهادي خدمت ترسره کړ. دغه جبهه چې د ارغنداب، ژړی،پنجوايي او د کندهار د ښار په شاوخوا کې يي جهادي عمليات ترسره کول په کندهار کې يوه له هغو جبهو څخه وه چې د شوروي يرغلگرو خلاف جهاد کې يي کليدي ونډه درلوده او ستر افتخارات يې گټلي دي.

د کمونيستي واکمنۍ په وروستي کال شهيد مولوي محمد ولي صاحب زابل ولايت ته هم د جهاد لپاره لاړ چې هلته يې د جبار مليشو تر نامه لاندې د کمونيستانو له ځواکونو سره په سختوجگړو کې برخه واخيسته او په دې جگړه کې ټپي هم شو.

د جهاد له بريا وروسته مولوي محمد ولي صاحب په پنجوايي ولسوالۍ کې د ديني علومو تدريس ته ملاوتړله چې د طالبانو د اسلامي تحريک د ظهور تر وخته د تدريس په سپيڅلې وظيفه بوخت و.

## په اسلامي امارت کې شموليت او خدمتونه

د نوموړي وراره حافظ محمد صاحب وايي: د تحريک د لومړني پيل په شپو کې يو وخت چې موږ د شهيد مولوي محمد ولي صاحب سره په مدرسه کې سبقونه ويل يو ورځ مو ډزې او د مرميو اوازونه واوريدل. خلکو ويل چې طالبانو په يوه ټوپکي قومندان صالح باندې جنګ شروع کړی دی،مولوي محمد ولی صاحب په هماغه ورځ خپل تدريس ته د پای ټکی کيښود خپل طالبان يې ورسره روان کړل او په دغه جنګ کې يې شرکت وکړ، دا د طالبانو د تحريک لومړنی جنګ و او مولوي محمد ولي صاحب له همدې ځايه د تحريک ملګری شو.

د کندهار له فتحې څه موده وروسته د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په فرمان د امر بالمعروف ځانګړې اداره جوړه شوه او مولوي محمد ولي صاحب يې د مشر په حيث وټاکل شو.نوموړي په دې اداره کې ور سپارل شوی خدمت په ډير اخلاص او احسنه طريقه سره انجام کړ. د اسلامي امارت هغه لويه کارنامه چې وروسته له کلونو د ځمکې پر مخ د الهي نظام تنفيذ و تر ډيره د همدې ادارې په توسط عملي کيدو. کله چې اسلامي امارت لخوا کابل فتحه شو، د افغانستان په تاريخ کې په لومړي ځل د امر بالمعروف و نهی عن المنکر په نوم ځانګړی وزارت رامنځ ته شو.

دغه وزارت چې په ټولو ولاياتو کې يي اړوند رياستونه درلودل له مهمو کارونو څخه يې د ديني شعائرو احياء، په لمونځ، روژه، زکات او ټولو حسنه اعمالود خلکو مأمورول، د ناروا کارونو، بدعتونو او غيرشرعي دودونو له منځه وړل،د ساز سرود، فحشاء او بي دينۍ د اسبابو ختمول، د شرعي حجاب او ستر رعايت ته د ښځو متوجه کول، د مسلمانانو سيرت او صورت په شرعي طريقه باندې برابرول،د نشه يي توکو،

شرابو او نورو مخدراتو د استعمال مخنیوی او دغسې نور شرعي وظائف يې لـه مهمـو فعاليتونو څخه وو.

مولوي محمد ولي صاحب د ددې وزارت د وزير په حيث په خپل کار کـې خـورا جدي او پوره توجه يې ورته درلوده تر دې چې يو وخت يې کوم کـس د څـه نامشـروع کار له امله بندي کړی و، خو دده په ناخبرۍ کې د نومو‌ړي مشر ورور پرته له اجـازې له توقيف څخه خوشی کړی و، خو چې کله مولوي محمد ولي صـاحب خـبر شـو نـو د خپل ورور د بندي کولو امر يي وکړ چې هغه د حبس له ويرې له ښاره وتښتېد.

## د امريکا په خلاف جهاد او شهادت

د امريکايي يرغل نه وروسته او کله چې د اسـلامي امـارت ځواکونـه د هيـواد لـه لويو ښارونو ووتل مولوي محمد ولي صاحب يو ځل بيا پاکستان ته مهـاجر شـو.له څـه موده مخفي ژوند نه وروسته يې يو ځل بيا د جهادي چارو په سمبالولو پيل وکړ تر دې چې د جهاد عملي ډګر ته يې مخه کړه.

حافظ محمد صاحب و ايي د مولوي صاحب له جهاد سره فوق العاده مينه وه، په ٢٠٠٦ ميلادي کال کې کله چې لومړی ځل د جهاد سنګر ته تلو نو دومـره خوشـاله و او داسې شوق يې درلود چې له ډيره شوقه يې وويل چې د بيت الله شريف حج ته مې هـم والله که داسې زړه کيږي لکه د پاشمول ( په کندهار کې يوه جهادي سيمه ده ) جهادي سنګر او د الله په لاره کې جهاد ته . مولوي محمد ولي صاحب جهـادي خدمتونـه پيـل کړل چې په دې لاره کې يې شهادت يو له سترو ارمانونو څخه و.

له شهادت نه څه موده وړاندې نومو‌ړی د ژړۍ ولسوالۍ په سياچوی سـيمه کـې د خپلو وريرونو کور ته ورغلـی و، هغـوی ورتـه ويـلي و چـې دلتـه حـالات خـراب دي امريکايان حملې کوي، نو زموږ مشوره داده چې لاړ شه خپل کور ته. خو مولوي صاحب په ځواب کې ورته وويل زه د جهاد او شهادت لپاره راغلی يم او زړه مې غـواړي چـې د الله تعالی په لاره کې مې بدن ټکره ټکره شي.

عجیبه دا وه چې څو ورځې بعد الله تعالی د مولوي محمد ولي صاحب همدغه هیله ور پوره کړه، د ژړې ولسوالۍ د پاشمول سیمې د رازمحمد خان په کلي کې د مجاهدینو په مرکز امریکایي الوتکو دروند بمبار وکړ چې په نتیجه کې یې د ۲۵ نورو مجاهدینو تر څنگ د ۱۴۲۷ هـ ق کال د ذوالقعدة الحرام د میاشتې په ۲۴ مه نیټه د پنجشنبې په شپه مولوي محمد ولي صاحب په شهادت ورسید. انا لله وانا الیه راجعون

په دې بمبار کې د ډیری شهیدو مجاهدینو جسدونه روغ او سالم و اما د مولوي محمد ولي صاحب په جسد باندې بم لگیدلی و نو ځکه یې بدن ټوک ټوک شوی و او په دې ډول د شهادت هیله یې پوره شوې وه.

## د نوموړي د شخصیت په اړه

شهید مولوي محمد ولي صاحب د خپلو ملگرو تر منځ په ډیره تقوا او دیانت شهرت درلود. د نوموړي ملگری مولوي احمد الله مطیع صاحب وایي : مولوي محمد ولي صاحب یو پرهیزگار او مخلص سړی و، د فقر ژوند یې درلود، د جهاد او اسلامي نظام په لاره کې یې ډیر مخلصانه خدمتونه سر ته ورسول او په همدې لاره کې د شهادت مقام ته ورسید.

د نوموړي ورور قاري عبدالباري صاحب وایي: مولوي صاحب له کوچنیوالي او ځوانۍ څخه د تقوی او دیانت نمونه و. حتی په ځوانۍ کې یې ما عیش پرستي،بې ځایه خندا، ټوکې،عبث گویي او د وخت ضایعه کول تر نه دي لیدلي. تقوی یې طبعي وه، ډیر زیات اذکار به یې کول او د تصوف د نقشبندیه طریقې مرید و. د وزارت په وخت کې چې د امارت لخوا کوم معاش ورکول کیده هغه ټول یې په کور کې نه مصرفاوو بلکې نیم یې واپس کاوو او د کور نیم مصارف یې له کورنۍ شتمني څخه پوره کول. ده به ویل چې ما ټول وخت د امارت کار ته نه دی ورکړی، بلکې نیم وخت په کور کې یم نوځکه باید ټول مصارف هم د امارت له معاش څخه ونه کړم.

حافظ محمد صاحب وايي: مولوي صاحب د فقر او غربت ژوند درلود، سره له دې چې وزير و مگر په ژوند کې يې د اسايش په لحاظ کوم تغير ونه ليدل شو، يو وخت يې ويل چې له وزارت وړاندې مې راسره سرمايه ۱۳زره کلدارې وې مگر کله چې امارت سقوط وکړ او هجرت مې کاوو نو ۷ زره کلدارې شخصي بوديجه مې درلوده او په دې يې شکر کاوو چې د بيت المال له پيسو څخه يې شخصي پانگه نه ده زياته کړې.

قاري عبدالباري صاحب وايي: مولوي صاحب زما ورور او تر ما کشر و ، داسلامي امارت په مهال ما د خوست په ولايت کې وظيفه درلوده کله به چې کندهار ته خپل کور ته راغلم،نو دلته به د رخصتۍ په مهال په ښکار پسې تلم، يو وخت مولوي محمد ولي صاحب راته وويل چې که په ښکار پسې ځې نو د امارت د موټر تيل به نه مصرفوې او که موټر خراب شو هم په خپله به يې جوړوې ځکه دا تاته د رسمي وظائفو لپاره درکړل شوی دی نه د ښکار لپاره. له دې څخه معلوميږي چې مولوي محمد ولي صاحب د بيت المال د مصرف په برخه کې خورا ډير محتاط و او په دې برخه کې يې هيڅ خپلوي نه پالله او نه يې د چا لحاظ کاوو.

د نوموړي نږدې ملگري وايي: يو وخت په کابل کې يو عادي موټر چلوونکي مولوي محمد ولي صاحب په موټر وواهه، کله چې دغه موټر چلوونکی خبر شو چې د طالبانود حکومت وزير يې په موټر وهلی دی نو ډير وارخطا شواو د امنيتي چارواکو لخوا توقيف شو. مگر کله چې مولوي صاحب روغتون ته يووړل شو او را په حال شو تر هرڅه مخکې يې دا وويل چې هغه ډريور مو که بندي کړی وي آزاد يې کړئ زما لخوا ورته عفو ده او ښښلی مې دی.

دا خبره ځکه ډيره د تأمل وړ ده چې له طالبانو وروسته د کرزي او اشرف غني په حکومتونو کې روزانه د لوړپوړو چارواکو لخوا عادي موټر چلوونکي، ترافيک يا پوليس له دې امله وهل کيږي، ټپيان کيږي او حتی وژل کيږي چې ولې يې دوزير يا

پارلمان د وکیل موټر ته لاره نه ده ورکړې او په دې ډول کبر جن چارواکي پــه مظلومـو او بې وسه کسانو خپل فرعونیت تجربه کوي.

خو د اسلامي واکمنانو مثال داسې وي لکه مولوي محمد ولي صاحب چې که بـل څوک پرې ملامت هم شي ورته عفو کوي او حتی عادي دعوا وربانديې نه کوي.

الله تعـالی دې پـه شـهید مولـوي محمـد ولي صـاحب بانـدې ورحمیـږي او دده برکات دې ددې په ورثه وو باندې کیږدي آمین یا رب العلمین.



## دشهید مولوي اخترمحمدعثماني صاحب ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

**زوکړه یې :**

شهید مولوي اختر محمد عـثماني د مولـوي نورمحمـد زوي د مولـوي عبـدالله لمسی په ۱۹٦۵ میلادي کال کې دهلمند ولایت دسنگین ولسوالۍ دجوشالي سیمې په یوه دینداره او علمي کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترگې وغړولې.

**لومړنۍ زده کړه یې :**

شهید مولوي اخترمحمد عثماني خپلې لـومړۍ دینـې زده کـړې لـه خپـل والـد صیب او دخپل کلي په مسجد کې پیل کړې ، وروسـته پـه خپلـه سیمه کـې دسـنگین مشهورې مرکزي مدرسـې تـه لاړ او دغـه وخـت چـې نومـوړی نـوی ځـوان و، دروسي یرغلگرو په وړاندې یې جهادي مبارزه هم پیل کـړه. شـهید عـثماني صـیب د جهـادي مبـارزې او زده کـړو ترڅنـگ پـه سـنگین کـې دیـادې مدرسـې دنظامـت چـارې هـم سمبالولې ، چې تر څو کلونو په همدې دندو بوخت و.

**لوړشرعي تحصیلات یې :**

له افغانستان څخه دشوروي یرعلگرو ترتیښتې وروسته شهید عثماني دخپلـوزده کړو دپوره کولو په غرض گاونـډي هیـواد پاکسـتان تـه ولاړ اوهالتـه یـي ، دپښـتونخوا صوبې په مشهورو مدارسـو کـې دخپلـو دینـي تعلیماتـو ترلاسـه کولوتـه ادامـه ورکـړه ،ترڅوېې په کال ۱۴۱۵ هجـري قمـري کـې دپښـتونخوا صـوبې لـه سـترې او مشـهورې مدرسې دارالعلوم حقانیه څخه د حدیثو دلویې دورې ترپوره کولـو وروسـته دفراغـت سند ترلاسه کړ.

## دطالبانو له اسلامي تحریک سره یوځای کیدل

شهید عثماني صیب په داسې مهال له خپلو لوړوشرعي زده کړوڅخه فارغ شو چې په ګران هیواد افغانستان په تیره کندهار ولایت کې دتنظیمي انارشیزم او ټولنیز هرج ومرج په وړاندې دطالبانو اسلامي تحریک نوی تأسیس شوی و.

کله چې شهید عثماني صاحب ترفراغت وروسته دعلم له سفر څخه دهلمند ولایت سنګین ولسوالۍ کې خپل کورته دراستنیدو په حال کې و په لاره کې دکندهار ولایت سپین بولدک ته په رسیدو له یوه نوي هیله بښونکي بهیر سره مخامخ شو اوهغه داچې تصادفا په همدې ورځ دطالبانو دنوي پیل شوي تحریک لومړنیو ځواکونودکندهار سپین بولدک او ویش سرحدي سیمې تازه ترخپل کنټرول لاندې راوستې وې.

شهید عثماني صیب خپل دیني مسؤلیت ته په پام سره له همدې ځایه دطالبانو له اسلامي تحریک سره ملګری شو ، چې بیا دشهادت تر لحظې په همدې دریځ او لاره مستقیم پاته شو .

## دطالبانو په اسلامي تحریک کې دشهید عثماني پوځي او اداري فعالیت اومسؤلیتونه

شهید عثماني صیب دعالیقدرامیرالمؤمنین مرحوم ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ډیراعتمادي اونږدي کس ؤ. په یولړخصوصي کارونوسربیره یې داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال او وروسته دامریکایانو په خلاف دجهاد په مهال بیلابیلې مهمې جهادې دندې ترسره کړې او داسلامي امارت په چوکاټ کې یې ستر او نه هیریدونکي خدمتونه وکړل .

نوموړی په پیل کې دکندهار دامنیه قومندانۍ مرستیال او وروسته دڅه وخت لپاره دکندهار امنیه قومندان وټاکل شو. له دې وروسته په کندهار کې ددوهم نمبر

قــول اردو عمــومي قومنـــدان وټاکـــل شـــو او دامریکایـــانو دیرغـــل تروختـــه یـــې ترڅلوروکالوپوري همدې وظیفې ته دوام ورکړ .

په دې لړ کې په مهمو فتوحاتو او جهـادي تشـکیلاتو کـې شـهید عـثماني صـیب برخه درلوده ، په کابل کې د رباني د واکمنۍ په خلاف دتعرضـونو پـه مهـال نومـوړی دچهاراسیاب په خط کې ډیر وخت په دنده بوخـت و. وروسـته کلـه چـې دهـرات لـه لورې تورن اسمعیل خان په هلمند حمله وکړه ، شهیدعثماني صیب لـه کنـدهار څخـه دسلګونو ملګرو سره یوځای دګرشـک دفـاعي کرښـې تـه لاړ . پـه دې جګـړه کـې چـې اسمعیل خان سخته ماته وخوړه ، عثماني صاحب هم دهغـه کـاروان برخـوال و، چـې د دوو ورځو په ترڅ کې یې نیمرزو ، فراه او هرات فتحه کړل ، اود اسمعیل خـان مـوازي او خودسره واکمنۍ ته یې دپای ټکی کیښود .

په دې سربیره عثماني صیب دشمال دتصفیې په مهال هم په مختلفو سـیمو کـې خپله جهادي دنده تعقیب کړه. دوه ځله یې دخوځومیاشتولپاره دبلخ ولایت سرپرستي وکړه اوهم یې د دره صوف او سنګچارک په جبهو کې دمسؤل په صفت دنده درلودله ، دمزار له فتحې وروسته دایراني دیپلوماتانو د وژنې پـه عکـس العمـل کـې چـې ایـران دافغانستان سرحد ته ځیرمه د (ذوالفقار ) په نامه پوځـي مانورې او قدرت نمـایي پیـل کړه او په افغانستان دبرید ګواښ یې رامنځته کړ، اسلامي امارت دافغانستان دحـریم ددفاع په خاطر په سلګونو ځواکونه چې په دافع هوا او درنـو وسـلو سـمبال وو همـدې سیمو ته ولیږل، تر څو دایـران داحـتمالي بریـد پـه مهـال دافغانسـتان سـاتنه وکـړي، داسلامي امارت ددې احتیاطي دفاعي ځواکونو مشري هم دعثماني صیب په غاړه وه .

په افغانستان له امریکایي یرغل څخه دوه کاله وړانـدې شـهید عـثماني صـاحب دهیواد شمالي صفحاتو ته دعالیقدر امیرالمؤمنین لخوا دیوځانګړي هیئـت دمشرـ پـه توګه لاړ، چې دیوې میاشتې هیئتۍ په مهال یې تقریبا دشمال لـه ټولـو ولایـاتو لیدنـه وکړه، له ټولو اولسونو او قومي مخورو سره یې له نږدې لیـدنې او ناسـتې وکـړې او پـه دې توګه یې دعوامو په تنویر او اعتماد خپلولو کې ستر خدمت ترسره کـړ . دنومـوړي

یو نږدې ملګری چې شمالي ولایاتو ته دنوموړي دهیئتی په سفر کې ورسره ملګری وو، وایي چې ددې سفر په مهال عثماني صیب تقریبا دشمال په ټولو سیمو راوګرځیده، هر ولس او کلي ته ورغی، داسلامي امارت داعیه او پروګرامونه یې هغو ته تشریح کړل، دخلکو پوښتنې، انتقادونه او مشورې یې په پوره اخلاص او زغم سره واورېدې او په دې توګه یې په خورا ښه ډول خپله وظیفه انجام کړه .

## دامریکایي یرغلګرو په خلاف جهادکې دشهید عثماني پوځي رول

شهید اخترمحمد عثماني صیب له امریکایي یرغل وروسته هم په پوره متانت خپل جهادي مسیر تعقیب کړ. نوموړي له امریکایي یرغل وروسته په خورا سختو شرائطو کې دمجاهدینو د رایوځای کولو او تنظیم دنده پرمخ بیوله او په دې لړکې یې ډیر تکلیفونه په ځان ومنل ، دامریکایانو په خلاف دجهادي مبارزي دتنظیم لپاره چې دعالیقدر امیر المؤمنین لخوا څوکسیزه عالي شورا جوړه شوه، شهید عثماني صیب هم ددې شورا غړیتوب درلود او ورسره یې دهلمند په ولایت کې دمجاهدینو عمومي مسؤلیت په غاړه و. نوموړي په بیلابیلو ملکي او نظامي برخو کې خپلوجهادي وظائفو ته ادامه ورکوله ،چې د د ۱۴۲۷هق ،دذوالقعده پر ۲۸مه مطابق د ۲۰۰۶ م ۱۸\۱۲\مه نیټه دهلمند ولایت دبرامچې په سیمه کې ددښمن دجاسوسي الوتکې دبمبار په پایله کې په شهادت ورسید .رَحِمَهُ ٱللَّهُ تعالی

## دشهید عثماني صیب علمي او جهادي شخصیت

شهید مولوي اختر محمد عثماني صیب چې الله تعالی دسیرت او صورت دواړو ښیګڼې او ښایست پرې لورولی وو ، خورا دښو اخلاقوڅښتن و .

عثماني صیب میانه ونه، ښایسته څیره او معتدل جسامت درلود. څنګه چې نوموړی په یوه علمي او دیني کورنۍ کې زیږیدلی و نو دیانت داري او تقوی یې خاصیت ګرځیدلی و. دطالب العلمۍ دمهال ملګري دنوموړی دبې ساري ذهانت او ځیرکوالي کیسې کوي له تعلیم اوتعلم سره یې دومره مینه لرله چې کله دکندهار

دقول اردو قومندان و له خپل ټول مسؤلیت او زیات مصروفیت سره سره بـه یـې لـه رسمي مصروفیاتو وروسته دکندهار ښار په لوی مسجدکې چې پـه (سره جـامع) سره مشهوره و اودکندهار هرات په لویه لاره قول اردوتـه نـږدي واقـع و طالبـانو تـه دینـي کتابونه ویل او تدریس یې جاري ساته. دعثماني صیب کشر ورور چې د تعلیم او جهاد په ډیرو دورو کې له نوموړي سره یوځای اوسیدلی وایي ، چې عثماني صیب په شخصي ژوند کې خورا تقوا لرونکی او په لږ څه قناعت کوونکی و. دبیت المال له شتمنیو سره یې بې کچې احتیاط کاوه او کله یې هم بې ځایه او په شخصي مصـارفو کـې لـه شرعـي ضرورت پرته نه مصرفاوو .

دنوموړي ورور وایي چې عثماني صیب د جهادې دندو او مسؤلیت په ټول وخت کې کله هم دښه موټر ، ښه خوراک یا ښه ژوند او عیش د درلودلو کوښښ نه دی کړی او خپل نږدې ملګري یې هم له داسې څه څخه منع کول ، نوموړي بـه تـل ویـل ( ترڅـو پورې چې زموږ وروڼه مجاهدین په مختلفو سیمو کې په غرو ، دښـتو ، ځنګلـو او نـورو سختو سیمو کې دمشکلاتو سره لاس او ګریوان وي او سختۍ تیروي باید هیڅوک هـم د دنیاوي ښه ژوند او عیش تمه ونه کړي، ځکه په داسې سختو شرائطو کې په دنیـاوي عیش او هوسـونو کـې مشـغولیدل ، یقینـا دمجاهـدینو ، یتیمانـو ، کونـډو او دردمنـو مسلمانانو له هیلو سره جفاکاري او بې پروایي ده )

په دې سربیره شهید عثماني صیب خورا دټینګ عزم او لـوړ توکـل څښـتن وو او په هرډول حالاتو کې یې یوازې په الله تعالی تکیـه کولـه ، کلـه چـې دهیـواد پـه سـترو ښارونو دامریکایي بمبار په نتیجه کې داسلامي امارت واکمنـي پـای تـه ورسـیده، نـو دکندهار ښار له سقوط وروسته اکثره مجاهدین لـه خـورا سـخت حالـت سره مخـامخ شول ، ځکه هیڅ داسې مصئون لـوری نـه و، چـې مجاهـدینو پنـا وروړې وای ، پـه دې سختو حالاتو کې امریکایانو ، او په کندهار کې دهغوئ سـیمیزو ملګـرو دیـوه پخـواني قومندان عبدالواحد( رئیس دباغران ) په واسطه عثماني صیب ته احوال ولیږه، چې که

تاسو له وسلوالې مبارزې لاس واخلئ اودامريکايانو واکمني ومنئ، نو په امن کې به پاته شئ، که نه له ډېر سخت انجام سره به مخامخ شئ .

عثماني صيب ددښمن ددې غوښتنې په مقابل کې خورا له ايماني غيرت نـه ډک ځواب ورکړ او دباغران رئيس ته يې وويل چې ( جهاد پـه مـوږ فـرض او زمـونږ ايـماني مسؤليت دی، داچې حالات داسې سخت شول، موږ خو څه له خپل ايمان څخه نـه شـو تيريدلای، تاسو که هرڅه کوئ ويې کړئ ، ما خدای ته پريږدئ )

دعثماني صيب يو نږدې ملگری چې له ده سره ډېر وخت يوځای پاته شوی وايي، چې نوموړي دجهادي مبارزې دتنظيم او مجاهـدينو داکـمال او انسـجام لپـاره ډيـرې زياتې منډې تررې وکړې ، او مختلفو سيمو ته يې دمجاهـدينو او خلکـو دليـدلو لپـاره سفرونه وکړل. دسيمې په سطحه يې ډيرو ديني عالمانو، طالبانو او عامو مسلمانانو تـه دجهاد داعيه ورسوله ، چې په دې لاره کې ستړيا به يې دځان لپاره افتخار بلله .

نوموړی وايي چې يوه ورځ شهيد عثماني صيب راته وويل ( مجاهـد کـه دخپلـې مبارزې په مهال په يوه کار کې دکيدلو پنځه فيصده امکان ويني ۹۵ فيصده نور بايد دالله تعالی نصرت او پيروزينې ته وسپاري او سمدستی اقدام پرې وکړي، چې همـدې ته توکل وايي ) همدارنگه داسلامي امارت يو مشر مسئول او دعـثماني صـاحب نـږدې ملگری دنوموړي داطاعت اوله جاه طلبۍ نه دکرکې په هکله وايي : کله چـې داسـلامي امارت دمشرتابه له لوري د عـثماني صـاحب پرځـای ملامحمـد رحـيم اخنـد دهلمنـد مسئول وټاکل شو نوزه څـه وخـت وروسـته دعـثماني صـاحب پوښـتني تـه ورغلـم پـه خبروکې مي ورته وويل چي گوره داله دندې لرې کول درباندي درانه نشي اوڅوک دي خطاء نه کړي چي صاحب ته خو غټ سړی وې دا ولي داسي وشول چې لـه دنـدې يـې لرې کړې. عثماني صاحب راته وخندل چي هووالله ځيني خلک راته را غلل او راته ويـې ويل چي ته اوس هم زموږ مشر يې موږ ستا خبره منو چي ته هـر ډول قومانـده راکـوې موږ يوازې هغه منو،مگر ما ورته وويل چي زه څوک يم چي تاسـو زمـا خـبره منـئ اوس خو موزه امير نه يم ورشئ دخپل نوي ټاکل شوي والي صاحب او عمومي مسؤل چې زما

په ځای ټاکل شوی خبره ومنئ او دهغه اطاعت وکړئ او س مو شرعا هغه امیـر دی او ټول به یوازې دهغه امر ته غاړه ږ دو. عثماني صاحب وویل چې کله مې دا حالت ولیـد نو یوه مسجد ته ننوتلم څورکعته نفل لمونځ مـي وکـړ بیـا مـي الله تعـالی تـه پـه ډیـره عاجزي سره سوال وکړ چې یا الله ته خومي په دي امتحانو کې کا میاب کـړي لـه هغـه وروسته مي دنوي والي صاحب پوښتنه وکړه چې چیري دی ځای مي یې معلـوم کـړ او سیده ورغلم په څنګ کې ورسره کښینسـتم ترڅـو ورځـو پـوري چـي بـه والي صـاحب چیري کار کاوو زه به ورسره ناست وم او ګډ کار به مو ورسره کاوو ترڅومو مجاهـدین ووینی چې نه کوم اختلاف شته اونه هم دابدلون کومـه مهمـه خـبره ده. والي صـاحب دي خیر یوسي په هر څه کې به یې له ماسره مشـوره کولـه او مـا هـم پـوره همکـاري ر ورسره کوله مجاهدینو چې به زه دنوي والي په څنګ کې لیدلم چې هغه به زما احترام کاوه او مابه دهغه همکاري کوله ځیني به حیرا نیدل او ډیر به خو شحاله کیدل بیا نـو دهمدي ګډ کار برکت وو چې الله تعالی دهلمند جهادي کارونه نور هم پرمخ بوتلـل او دلویې کامیابۍ سبب شول .

دهلمندولایت تر مسئولیت وروسته بیا شهید عثماني صاحب داسلامي امـارت داقتصادي کمیسیون درئیس په حیث وټاکل شو چې په دي کـار کـې یـې هـم پـه ښـه اخلاص او امانت داري سره خدمت وکړ .

عثماني صاحب خورا لوړ او حسنه اخلاق لرل چـي څـوک بـه ورسره مخـامخ شـو نودده له ښه چلندنه به یې دا خیال کاوو چې زه به دعـثماني صـاحب پـه ډیـرو نـږدي ملګرو کې یم . نوموړي له خپلو استادانو،شاګردانو، ملګرو او ټولو شـناخته ؤسره خـورا ښه راشه درشه درلوده وخت په وخت به یې په ټولو پوښتنه کوله خصوصا دسختۍ پـه وخت کې به یې هغوی ته لاس ور کاوه ،چې څوک به سره خفه یـا مخـالف وو دهغـوی دخوشحالي او نزدیکت کوښښ به یې کاوه او په دي کار کې خورا بر یالی هم و.

دشهیدعثماني صاحب وروrابوالوفا چې ډیر وخت په علمي او جهادي ژونـد کـې له عثماني صاحب سره ملګری پاته شوی وایې: یو وخت عـثماني صـاحب تـه یـو تجـار

راغی ځلورلکه روپۍ یې ورکړې چی دا ستا شخصي د کوردي او دوه ویشت لکه یې نوري دمجاهدینو لپاره ورکړې ،بیا ده ما ته وویل چی دادرواخله زما زړه ډیر خوشاله سو ځکه چي په کورکي ډیره مجبوري وه. په داسبا یې بیا زنګ راته وواهه چي هغه ځلورلکه ملا داروخان مشهورپه ملا شیرین ته ورکړه چي مجاهدینو ته کوټونه پرې واخلي،ماورته وویل چی تا دهغه سړي خبره نه واوریده چي دا ستاشخصي دکور لپاره دي. ده راته وویل چی ما او تا چي په پیښورکي سبقان ویل ولي چاپیسې نه راکولې؟ ګرچه زه ډیر ورسره تینګ شوم خوراسره یې نه منله، بیا مي هغه کس ته چي ده را ښو دلی و ورکړې.

یووخت ده دجهاد په سلسله کي یوخطرناک کارکاوه ماورته وویل چي په کوم ځای کي چي ته داکارکوې داخلک خو له دې کارسره مخالف دي او ته یې کوې نو څه اطمینان لرې که نه ؟ ده په جواب کي راته وویل وروره دین قرباني غواړي.

ده به ماته همیش دا خبره کوله چي په بیت المال کي احتیاط کوه.

یووخت مي په سفرکي داوبو بوتل راواخست ،کله چي هغه اوبه ختمي سوې،ماورته وویل چي یو بل داوبو بوتل به راواخلو ده راته وویل چي نه مخته به همدا بوتل له ساده اوبو راډک کړو بل په پیسو مه اخله.

دده کوشش داوو چي هرڅوک جهاد کوي باید دامارت په چوکاټ کي وي،او په یوه صف کی متحدانه جهادوکړي.

د شهید عثماني پلار مولوي نور محمد صاحب چې جید عالم و د جهاد په موضوع د تحفة المجاهدین په نوم کتاب لیکلی چې په یوه برخه کې یې د عثماني صاحب د شخصیت په اړه هم لیکنه کړې او نوموړی یې دحق د لارې واقعي مجاهد بللی دی.

### او بالآخره شهادت یې

وړاندې وویل شول ، چې دامریکا په مشرۍ دکفاروله لوري دافغانستان تراشغال وروسته عثماني صیب دهلمند ولایت لپاره عمومي جهادي مسؤل په توګه ټاکل شوی

و، نوموړي په هلمند كې دجهادي عملياتو د نظم او انكشاف لپاره خورا ډېرې ستړې تېرې كړې ، چې په بركت يې هلمند دافغانستان په سطحه دمجاهدينو په يوه قوي مركز او ديرغلگرو لپاره په هديره بدل شو، دغه راز په نورو ملكي او نظامي بخشونو كې هم عثماني صيب يو فعال او مؤثر شخص و، چې په كارونو كې دخوځښت پيداكولو او ابتكار ښه مهارت يې درلود.

دشهيد عثماني صيب پرنفوذ او راښكونكي شخصيت دغه راز سياسي او جهادي مخورتوب او مؤثريت ته په پام سره نوموړی داسلام ددښمنانو له لوري تر ډېر تعقيب لاندې و ، چې بالاخره دالله دلارې دا رښتينی خدمتگار د ۱۴۲۷هق ،دذوالقعده پر۲۸مه چې د ۱۳۸٦ هـ ش د قوس له ۱۴ سره سمون خوري ، دهلمند ولايت د ديشو ولسوالۍ دبرامچې د گوليگل په سيمه كې كله چې له خپلو پنځو تنو مجاهدو ملگرو سره دماسپښين دجماعت په لمانځه ولاړ وو، ددښمن دبې پلوټه جاسوسي الوتكې دتوغندي په گوزار ولگېد اوله ملگرو سره په شهادت ورسيد ، چې وروسته يې جسد همدلته په برامچه كې د ډېرو نورو مسافرو او گمنامو شهيدانو په يوه مباركه هديره كې خاورو ته وسپارل شو . دشهيد عثماني صاحب تر شا دری زامن او دوه لوڼې پاته دي ، الله تعالی ته سوال كوو، چې دنوموړي بركت يې په زامنو باندې كيږدې، ترڅو ددين او اولس همداسې سپيڅلي او مخلص خادمان ترې جوړ شي .

رحمه الله تعالی

❋ ❋ ❋

## د شهید مولوي عبدالحنان جهادوال ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

هغه زلمی چې دکندهار دخاکریز په یوه دینداره کورنۍ کې وزیږېد، مور او پلار یې دیني زده کړو ته وقف کړ خو ده په پنځلس کلنی خپل درسي کتاب ونغښت او په پټه جهاد ته لاړ ، په لومړۍ مرحله کې مجاهدینو دکم عمرۍ له وجې له جهادي صف څخه ستون کړ، خو وروسته یې کم عمر د جهادي جذبې په وړاندې خنډ نـه شـو او دکندهار په ارغنداب کې یې د شوروي لښکرو په وړاندې نه ستړي کیـدونکي مبـارزه پیل کړه. مگر کله چې شورویان مات شول دنوموړي جهادي تنده لا هم نـه وه خړوبـه، نوځکه یې په کمونیستي کفر پسې پل واخیست ، جهادي روح یـې لالهانـده وجـود پـه نوې لاره روان کړ ، دافغانستان له پولو واوښت او دماوراء النهر په تاجکستان کې یې د کمونیزم په خلاف جهاد پیل کړ، تر دوه کلـن جهـاد وروسـته یـې پـه افغانسـتان کـې دفسادپه خلاف دپیل شوي جهاد ملگرتیا وکړه ، دشیشان ، ماوراء النهر ، عربي نـړۍ ، افریقا او دنړۍ دهرې برخې له مهاجرو مجاهـدینو سره ملگـری پاتـه شـو او کلـه چـې امریکایان په دې هیواد راغلل، یوځل بیا یې په نوې روحیه جهاد ته کارووایه . دزابـل ، کندهار او هلمند په اوارو او غرنیو سیمو وگرځید،له دښمن سره پـه بیـا بیـا وجنگیـد، ترڅو یې سترې وجود هغه وخت د نه ستړي کیـدونکي روح لـه بوجـه سـپک شـو چـې دهلمند په گرشک کې یې له تهجدوروسته ددعاء په مهال داوسیدو په مېنه امریکایي بم ولگېد او دشهادت جام یې گوټ کړ . شاعر رښتیا ویلي:

اذا كانت النـفوس كــبارا
تعبت في مرادها الاجسام

دمولوي عبدالحنان روح زمورِ دنورو مجاهدينو غونديِ له څو لسيزي ستړياوو ، مزلونو ، شهادتونو او هجرتونو سره سره ستړی نه شو او نه يې هم مقاومت او حوصله له لاسه ورکړه ، بلکې هغه وخت ارام شو کله يې چې غوښن وجود د کروز په پرخچو ولګېد، ونړېد او دجهادي روح له ګرځولو بې سيکه شو. هوکې دسترو ارواحو وصف هم دادی ، چې تل وجود ته شکست ورکوي ، او تن يې په وړلو ستومانه کيږي او مقاومت بايلي .

## پيدايښت او دوژوند ابتدائي مراحل

عبدالحنان جهادوال په۱۳۸۴ هـ ق/ ۱۹٦۴ ميلادي کال د افغانستان دکندهار ولايت دخاکريز ولسوالۍ د (لام ) سيمې په اتلي کلي کې وزيږېد ، دپلار نوم يې محمدابراهيم و، دوی دپښتنو له ( توخي ) قوم سره تړاو لري ، او کورنۍ يې په سيمه کې په دينداري او نيک کردار سره شهرت درلود.

عبدالحنان لا ماشوم و چې پلار يې ددينې زده کړو لپاره په يوه سيميزه مدرسه کې شامل کړ، نوموړي په خپل کلي او نږدې سيمو کې ديني کتابونه لوستل، چې تر پنځلس کلنۍ پورې يې په خپله سيمه کې ديني زده کړو ته دوام ورکړ، نوموړی دزدکړو خورا پوخ استعداد درلود او په لږه موده کې يې خورا ډير علم ترلاسه کړ .

### په جهاد پسې له کوره وتل

هغه مهال چې عبدالحنان نوی دځوانۍ په پړاو ورګډېده په افغانستان کې دکمونيزم او شوروي يرغل په خلاف مسلح جهاد پيل شوی و. نوموړی چې نه ماتيدونکې جهادي تنده يې درلوده ، يوازې دې ته انتظار و چې د عمر له لحاظه دجهاد وړ شي، خو نوموړی لاپوره دځوانۍ مرحلې ته نه و رسيدلی چې جهادي جذبه وربانديِ غالبه شوه. نوموړی ۱۵ کلن و چې دجهاد په نيت له خپلې سيمې هلمند ولايت ته لاړ، په هلمند کې دمجاهدينو ډيرو جبهاتو ته ورغی خو مجاهدينو ځکه ورسره شامل نه کړ چې عمر يې کم و. نوموړی بيرته خپلې سيمې ته راستون شو، خو

وروسته بیا دکندهار ارغنداب ولسوالۍ ته لاړ او هلته یې دطالبانو په یوه مشهوره جبهه کې دملاشیرین اخند ترسرپرستۍ لاندې جهادي دنده پیل کړه .

مولوي عبدالحنان هغه مهال که څه هم دعمر په لحاظ کشر و، خو علمي او جهادي استعداد یې خورا لوړ و. نوموړي دجهاد په ټوله موده کې نه یوازې په خپله دیني زده کړې کولې بلکې نورو مجاهدینو او ملګرو ته یې هم کتابونه تدریسول او په دې توګه یې له جهاد سره سره علمي افاده او استفاده هم روانه وه .

## دکمونیزم په خلاف جهاد

مولوي عبدالحنان جهادوال په کندهار کې لومړی جهاد دملامحمدشیرین اخند په جبهه کې پیل کړ، وروسته یې په ځینو نورو جبهاتو کې هم جهادي خدمت وکړ او په پای کې یې خپله دمجاهدینو دیوه ګروپ سرپرستي په غاړه واخیسته .

په ارغنداب کې دجهادپه وروستیو مراحلو کې دنوموړي ملګري زیاتره هغه عرب، شیشاني او ازبک مجاهدین وو چې د کمونیزم په خلاف دجهاد لپاره افغانستان ته راغلي وو، له همدې ځایه له مهاجرو مجاهدینو سره دمولوي عبدالحنان جهادوال انډیوالي پیل شوه ، تردې چې دعمر ترپایه یې له عربو او نورو مهاجرو مجاهدینو سره خورا نږدې ملګرتیا درلوده .

په ارغنداب کې دجهاد په مهال مولوي عبدالحنان جهادوال دوه ځله ټپي شو، یوځل چې نوموړی دشوروي عسکرو دهاوان دمرمۍ دلګیدو له امله په پرخچو باندې په نس کې ولګید، ټپ یې خورا خطرناک و ددې ټپ له امله نوموړي ته ډاکټرانو پلاستیکي کولمې پیوند کړې خو دې ټپ هیڅکله هم دنوموړي جهادي عمل ضعیف نه کړ بلکې همیشه یې خورا درندې او سترې جهادي دندې سرته رسولې .

مولوي عبدالحنان جهادوال کلونه کلونه په کندهار کې خپله مقدسه جهادي وظیفه سرته ورسوله او کله چې شوروي یرغلګرو او ملګرو یې شکست وخوړ، نوموړی په منځنۍ اسیا کې په پیل شوي جهادي خوځښت کې دګډون لپاره منځنۍ اسیا ته

لاړ، نوموړي دوه كاله دماوراء النهر په سيمه كې په جهادي صفوفو كې تير كړل . دنوموړي ددې جهادي ژوند په اړه ډير معلومات نشته خوهغه څه چې دده ملګرو ته معلوم دي ، وايي چې مولوي عبدالحنان جهادوال صاحب ددې جهادي سفر په مهال په تاجكستان او آذر بايجان هيوادونو كې دكمونيستانو په خلاف په جهادي عملياتو كې برخه واخيسته، ددې جهادي سفر په مهال هم په تاجكستا ن كې شهيدجهادوال صاحب يوځل ټپي او يوځل دروسي عسكرو لخوا نيول شوى و، چې په زندان كې شوروي عسكرو سختې شكنجې هم وركړې وې، خو الله تعالى په خپل فضل سره له دې ټولو امتحاناتو بريالى راويوست .

ددې جهادي سفر په مهال نوموړي نه يوازې ديوه مجاهد په حيث په جهادي عملياتو كې ونډه اخيسته بلكې دمجاهدينو ديوه تربيوي معسكر مشري يې هم په غاړه درلوده، شهيد جهادوال صاحب له دوه كلونو وروسته افغانستان ته راستون شو .

## په اسلامي امارت كې خدمت

كندهار ته له راستنيدو وروسته شهيد جهادوال صاحب لومړى دكندهار د دامان ولسوالۍ دخوشاب په سيمه كې ددينې زده كړو يوه مدرسه جوړه كړه او ددينې طالب العلمانو په روزنه يې لاس پورې كړ. وروسته نوموړي له همدې سيمې خپلې پلرنۍ منطقې د خاكريز لام سيمې ته لاړ او هلته يې ددينې زده كړو تدريس ته دوام وركړ .

په دې مهال دهيواد زياتره سيمې داسلامي امارت دځواكونو لخوا فتحه شوې وې او څرنګه چې داسلامي امارت دواكمنۍ او حكومت د چلښت لپاره استعدادونو ته ضرورت و، مولوي عبدالحنان جهادوال صاحب داميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد لخوا وغوښتل شو او په اسلامي امارت كې په خدمت وګمارل شو. نوموړى په هرات كې دافغانستان دشمال لويديځو ولاياتو د تنظيمه رياست مرستيال او په همدې حوزه كې دمهاجرو مجاهدينو مشر وټاكل شو. په هرات كې دنوموړي دملګرو مركزي قرارګاه په باغ اسلامي سيمه كې وه خو نوموړى به خپله زياتره وخت قول اردو ته نږدې

په يوه ودانۍ کې اوسيده دامهال دنوموړي ترسرپرستۍ لانـدې گـڼ شـمير مهـاجرو مجاهدينو جهادي دنده اجراء کوله چې له جملې څـو تنـه پيژنـدل شـوې څـيرې لکـه ابومصعب الزرقاوي او أبومحمد هم وو، دوی زياتره دافغانسـتان دشـمال پـه مختلفـو جهادي ليکو کې دنده اجراء کوله .

## امريكايي يرغل او په وړاندې يې جهاد

دامريکا تريرغل وروسته کله چې مجاهدين دافغانستان لـه ښـارونو څخـه ووتـل مولوي عبدالحنان جهادوال صاحب هم دخپلې سيمې په خوا ستون شو. نوموړي خپـل ټول جهادي امکانات چې مختلفې وسلې او وسائل په کې شامل وو، هم کنـدهار تـه لـه ځانه سره راوړل او په دې سيمه کې يې دامريکايي يرغلگرو په خلاف دجهادي فعاليت په تنظيم لاس پورې کړ .

نوموړی تردې وړاندې يوه اندازه وسلې په ځينو مخلصو خلکو ددې لپاره ويشـلې وې ترڅو دامريکايانو په خلاف جهاد ته ادامه ورکړي. کله چې خپله کندهار تـه راغـی نو په کندهار او زابل کې يې له جهادي قومندانانو او بااحساسه خلکو سره ليدنې کتنې پيل کړې او ددې لپاره يې دهيوادنورو سيمو تـه هـم سـفرونه وکـړل، ترڅـو دجهـادي خوځښت په گټه افکار او امکانات اماده کړي .

له څه مودې گرځيدلو وروسته نوموړی دزابل دايچوپان ته لاړ او هلته يې دنـورو مجاهدينو په مرسته يو مخفي جهادي مرکـز جـوړ کـړ، خـو دغـه وخـت څرنگـه چـې نوموړی امريکايانو ته ډير مطلوب و دوه ځله يې امريکايانو په کـور چاپـه ووهلـه ، خـو نوموړي ته الله تعالی نجات ورکړ . تردې وروسته يې دده غوندې کور هم نـاکراره شـو، لومړی دکندهار ښار ته وکوچيدل خو کله چې هلته ورباندې گوزاره سخته شـوه نوبيـا دزابل ولايت د مرکز مربوط دسينک په سيمه کې ميشت شول چې څوکلونـو يـې هلتـه تير کړل، خو په دې ټوله موده کې نوموړی په جهادي سفر و او ډير لږ به کورتـه راتلـو، دنوموړی دکورنۍ يو غړی وايي دمولوي صاحب ټول ژوند که لس برخې کړو، نو شـايد

يوازې يوه برخه يې په کور تيره کړې وي او نورې نهه برخې ژوند يې لـه کـوره بهـر پـه جهادي سترړيو کې تير شوی دی .

## په کندهار کې دجهادي مرکز تاسيس

په افغانستان دامريکايي يرغل دريـم کـال و چـې مولـوي عبـدالحنان جهـادوال صــاحب دڅــو تنــو نــورو ملگــرو پــه مرســته دکنــدهار دخــاکريز ولســوالۍ دخنجکتو(Khanjakto ) په غرنۍ سيمه کې لومړنی مخفي جهادي مرکز جوړ کـړ. دا جهادي مرکز دغرونو په يوه لړې پرته سلسله کې جوړ شوچې وروسته په بيا بيا تغير او پراخ شو او دجهادي عملياتو ديوې مهمې هستې رول يې ولوباوو. ددغه مرکـز لـومړنی دميشت ځای له بوټـو او د ونـو لـه ښـاخونو جـوړه شـوې يـوه خارگـاه وه، چـې مولـوي جهادوال صاحب په خپله د يوه کمره له بيخ سره جوړه کړې وه. په پيـل کـې دخـوراک هيڅ انتظام نه و او دخوراکي موادو دراوړلو لپاره به مجاهدينو په پټـه ۳ سـاعته مـزل کاوو ترڅو هوارې ته لاړ شي، حتی ډير ځله به مجاهدينو دخوراک لپاره دغرنيو بوټو له پاڼو او بيخونو استفاده کوله .

دخاکريز په غرنيو سيمو کې همدا مخفي مرکز چې وروسـته پـه کـې مجاهـدينو تربيوي او دسوق الجيش فعاليت هم پيل کړ، په کندهار کې دجهاد له مهمـو مراکـزو حسابيږي. له همدې مرکز څخه په پيل کـې مجاهـدينو پـه خـاکريز سربيـره دامـان ، شاوليکوټ ، نېش او دروزگان دهراوو ولسوالۍ ته تشکيلات کول او دعملياتو لپاره يې کوچنۍ ډلې استولې. خو وروسته دغـه عمليـاتي سـاحه نـوره هـم پراخـه او حتـی تـر هلمنده ورسيده، تـردې چـې دهمـدې مرکـز مجاهـدين چـې عمـومي سرپرسـتې يـې دمولوي جهادوال صاحب په غـاړه وه، پـه گرشـک ، سـنگين ، ژړۍ او ميونـد کـې هـم جهادي عمليات سرته رسول. دافغانستان دجنوب له مختلفو سيمو څخه به مجاهدين همدې مرکز ته راتلل، چې ځينو به جهادي تربيه حاصلوله او يو شمير به يـې دجهـادي هداياتو لپاره راتلل .

دغه جهادي مرکز چې دخاکريز په غرونو کې يې موقعيت و او څو ځله يې ځای بدل شو، امريکايانو وربانديې دوه ځله سخت عمليات ترسره کړل، خو دواړه واري له سخت شکست سره مخامخ شول. لومړی ځل عمليات چې دوه تنه مجاهدين په کې شهيدان شول ، مرکز ته يې ډير تاوان ونه رساوه، خو دوهم ځل ستر عمليات چې دری ورځې يې دوام وکړ، د مجاهدينو د مقاومت له امله دواړو خواوو ته درانه تلفات واوښتل. په دې جګړه کې چې مولوي صاحب مجاهدين په دريو برخو تقسيم کړي وو او په مختلفو سيمو کې له دښمن سره وجنګيدل دمولوي صاحب دملګرو له جملې ۱۰ تنه شهيدان او ۲۲ کسه ټپيان شول او يو تن ملګری ژوندی امريکايانو ته په لاس ورغی ، په دې جګړه کې ۱۲ تنه خارجي عسکر هم له منځه لاړل .

په همدغو ابتدايي مراحلو کې که له يوې خوا مولوي عبدالحنان صاحب دهمدې جهادي مرکز په برکت دکندهار په ټولو سيمو کې جهادي خوځښت ته نوې روحيه ورکړه، له بلې خوايې خورا زيات لوی او واړه جهادي عمليات هم ترسره کړل. په ابتدايي شيبو کې په ورځو روزمره عملياتو سربيره يوه کاميابه جګړه دنېش ولسوالۍ د دره نور په سيمه کې وشوه، چې مجاهدينو دکمين په ترڅ کې دامريکايي يرغلګرو دوه ټانګونه او يو دداخلي اردو رينجر مکمل له منځه يووړل او تر شلو تنو ډير خارجي او داخلي عسکر يې ووژل .

## په نورو سيمو کې جهادي فعاليت

د ۲۰۰۵ کال په ترڅ کې هغه مهال چې جهاد علني شوی و او دکندهار په شمالي او جنوبي سيمو کې مجاهدينو په عملياتو لاس پورې کړی و ، مولوي عبدالحنان صاحب دکندهار او هلمند په نورو سيمو کې جهادي عمليات پيل کړل. په دې مهال نوموړی داسلامي امارت دمشرتابه لخوا دعمومي نظامي کميسيون دمرستيال په حيث ټاکل شوی و، چې زياتره وخت به يې دکندهار او هلمند په جهادي مراکزو کې تيراوو. په دې مهال دنوموړي ډير ملګري دکندهار په ژړۍ ولسوالۍ کې په جهادي خدمت

بوخت وو، هغه وخت داسيمه دهيواد دجنوب په سطحه دجهاد له وتليـو سـيمو څخـه وه دغه راز په ميوند ، غورک او گرشک کې يې هم جهادي وظايف سرته رسول .

په ژړې کې نوموړي لـه امريکايـانو سره څوځلـه خـورا سـخت جنگونـه وکـړل او امريکايي ځواکونو ته يې خورا درانه تلفات واړول، له همدې امله امريکايي ځواکونو پـه نوموړي پسې شول او دده وژلو لپاره يې په سختوهڅو پيل وکړ .

د ۱۴۲۷ هـ ق کال دشعبان په ۱۸ نيټه امريکايي ځواکونو دخپلـو هڅـو لـه مخـې دکندهار په پاشمول کې دمولوي عبدالحنان صاحب مخفي قرارگـاه کشـف کـړه، چـې وروسته يې دکروز توغندي بريـد پـرې وکـړ، پـه دې بريـد کـې دمولـوي عبـدالحنان صاحب د وراره او نائب گل محمد په شمول دنوموړي ۱۹ تنه جهادي ملگـري شـهيدان او ۱۱ نور ټپيان شول ، خو داچې مولوي عبدالحنان صاحب دا مهال په خپل مرکـز کـې نه وو الله تعالى نجات ورکړ .

خوله دې بريد سره سره په نوموړي پسې امريکايي دښمنان سـخت متوجـه وو او هره شيبه يې هڅه کوله چې دنوموړي څرک ومومي او بريد وربانديې وکړي .

دشهادت پيښه

وړاندې وويل شول چې دمولوي صـاحب جهـادي مصرـوفيت ترډيـره دهلمنـد او کندهار په مختلفو سيمو کې و چې له دې جملې د هلمنـد پـه گرشـک ولسـوالۍ کـې نوموړي ډير وخت جهادي دنده اجراء کوله . د ۲۰۰۷ م کال په لومړيو کې هغه وخـت چې مولوي عبدالحنان صاحب دهلمند په گرشک ولسـوالۍ کـې پـه جهـادي خـدمت بوخت دامريکايانو لخوا يوځل بيا دنوموړي دهدف گرځولو هڅې پيـل شـوې ، لـومړی ځل دگرشک په زمبيلي سيمه کې امريکايانو دمولوي صاحب داوسيدو په سـيمه چاپـه واچوله چې مولوي صاحب ورسره دنورو ملگرو په ملتيا مقاومت وکړ ، په دې جگړه کې نوموړي امريکايانو ته هم تلفات واړول، خو دامريکايانو په بريـد کـې دنومـوړي ۹ تنـه

ملګري مجاهدين شهيدان او ۳ ټپيان شول ، خو خپله مولوي صاحب ددښمن له محاصرې څخه روغ رمټ ووت .

په راتلونکې شپه ۲۷/۱/۱۴۲۸ هـ ق / ۱۵/۲/۲۰۰۷ م چې دچهارشنبې شپه وه ، په داسې حال کې چې مولوي صاحب په همدې سيمه يعني دهلمند دګرشک په زمبيلي کې په يوه اطاق کې و، دنوموړي ملګري وايي چې مولوي صاحب دتهجد لمانځه ته پورته شوی وو او له لمانځه وروسته په دعاء بوخت وو، چې ناڅاپه امريکايي الوتکو همدا اطاق په نښه کړ او په پرلپسې بم غورځولو يې مولوي صاحب له ۴ نورو کسانو سره يوځای په شهادت ورساوو .

انا لله وانا اليه راجعون

دمولوي عبدالحنان صاحب نږدې ملګری حافظ محمد چې ډيروخت يې له مولوي صاحب سره نږدې تير کړی وايي ، چې مولوي صاحب ترشهادت لږ وخت مخکې راته دخپل شهادت زيری راکړی و، چې دده له خبرې سره سم کټ مټ رښتيا وخوت .

ترشهادت وروسته دمولوي عبدالحنان صاحب جسد خپل کلي ته انتقال شو او دکندهار دخاکريز ولسوالۍ د اتلي په کلي کې خاورو ته وسپارل شو .

له مولوي صاحب څخه د محمد ناصر ، أنس او ضرار په نامه درې زامن او څلور لوڼې پاته دي ، دامريکا ضد جهاد کې دده د کورنۍ دوه نور غړي وريرونه ( ګل محمد او عبيده ) هم په شهادت رسيدلي او کورنۍ يې له جهادي جذبې سرشاره کورنۍ ده .

دمولوي عبدالحنان جهادوال صاحب ژوند او خاطرې

دکندهار اوسيدونکی حافظ محمد چې دمولوي عبدالحنان صاحب له نږدې او رازدارو ملګرو څخه شميرل کيږي، کله مې چې دمولوي صاحب د ځاني صفاتو، اخلاقو اواستعداد په اړه ترې وپوښتل، نوموړي وويل مولوي صاحب يو جامع سړی و مطلب داچې دعلم، تقوی، ديانت، زغم، استقامت، شجاعت، صبر، توکل او هره اړخه مولوي

صاحب خورا ژور استعداد درلود، خو ترټولو ښکاره صفت یې استقامت وو چې په هیڅ حال کې یې حوصله له لاسه نه ورکوله .

حافظ محمد وایي په جهاد کې بیلابیل تکالیف راتلل ، اقتصادي ستونزې، دځای نشتوالی، دخوراک نشتوالی، ددښمن فشار او نور قسماقسم تکالیف خو الله تعالی دیوه رښتیني مجاهد په صفت مولوي صاحب ته داسې استقامت ورکړی و، چې هرډول امتحاني حالت کې به نورمال و او دوارخطایي او زغم بایللو نښې به په کې نه ښرګندیدې .

د زابل ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل ملاشرف الدین تقي چې ډیر وخت یې له مولوي جهاد وال صاحب سره نږدې تیر کړی وایي: مولوي صاحب خورا ډیره استغناء درلوده او کوښښ یې کاوو چې مجاهدین متوکل ، مستغني او له مادیاتو څخه بې پروا روزدي کړي. مولوي صاحب به همیشه ویل چې هیڅکله په جهادي کار کې په دنیا او دنیادارو پورې زړه مه تړئ، دهر کس او ناکس څخه دمرستې پیسې مه اخلئ څکه په دې سره جهادي برکت له منځه ځي، یوازې له مخلصو او صالحو دنیادارانو څخه د جهاد لپاره کومک اخلئ .

حافظ محمد هم همدا خبره کوي نوموړی وایي: په خاکریز کې په غرني مرکز کې داوسیدو په مهال یو وخت مجاهدین له سختو اقتصادي مشکلاتو سره مخامخ وو، تردې چې دومره څه یې نلرل چې خوړلي یې وای او دخوراک لپاره یې د غره له بوټو لکه ښیزو او نورو استفاده کوله، خو په دې وخت کې یو سړی مرکز ته راغی او شل زره روپۍ یې مولوي صاحب ته دمرستې په حیث وړاندې کړې، مولوي صاحب چې داسړی پیژاند چې مخلص نه دی او له دې مرستې یې یو دنیاوي غرض شته، نو دخپل همیشني عادت له مخې یې مخامخ ښه عزت ورکړاوښه میلمه پالنه یې ورسره وکړه، خو په پای کې یې ورته وویل چې موږ داوس لپاره دغو پیسو ته ډیر ضرورت نلرو، بل ځای کیدای شي ترموږ محتاج مجاهدین وي، نو ښه به دا وي چې دامرسته هغوی ته

وروړې، هغه سړی چې یوازې له موږ څخه دغرض حاصلولو په حیث راغلی و، دمولوي صاحب په دې خبره حیران پاته شو او همداسې بینوا لاړ .

ملاشرف الدین تقي وایي مولوي صاحب به هر ډول شرایطو کې کوښښ کاوو چې دمجاهدینو حوصله لوړه وساتي، او د مادیاتو په نسبت ورته معنویاتو ډیر ارزښت درلود. نوموړی وایي : یوځل له عراق څخه دعراقي مقاومت وتلي مشر۔ شهید أبومصعب الزرقاوي چې دمولوي عبدالحنان صاحب دشاګردۍ شرف یې درلود د عراق د جهاد دمشرۍ په مهال یې له مولوي صاحب سره د ځانګړي قاصد په توسط مکاتبه درلوده او مولوي صاحب ته به یې په لیک کې د ( والدي الاستاذ ) خطاب کاوو، مولوي صاحب ته یې د ټیلفون له لارې وویل چې که ستاسو نقدي مرستې ته ضرورت وي، نو له ماسره څومیلیونه ډالر شته کولای شم مرسته درسره وکړم، خو مولوي صاحب په داسې حال کې چې خپله له سختو اقتصادي مشکلاتو سره مخامخ و، ورته وویل چې نه الحمدلله موږ هرڅه لرو هیڅ مرستې ته مو اړتیا نشته، مجاهدین مو له هره لحاظه پوره دي .

خو کله مې چې له مولوي صاحب څخه ددې خبرو وضاحت وغوښت ، هغه وویل چې دعراق مجاهدین اوس په مقاومت اخته دي او دافغانستان جهاد هم ددوی حوصله لوړه ساتي، که موږ په هرحالت کې یو خو دوی زموږ په مقاومت ډیر مورال اخلي، که موږ له دوی نه دمرستې تمه وکړو، نو کیدای شي دوی ووایي چې دلته مجاهدین په څومره ضعیف حالت کې دي چې له بل جهادي صف څخه مالي مرسته غواړي، نو ښه داده چې موږ دوی ته داسې دضعف انځور ورنه کړو، بلکې ځانونه قوي وښیو ترڅو ددوی مورال نور هم قوي شي .

ښاغلی تقي وایي مولوي صاحب مجاهدین داقتصادي مشکلاتو په حالت کې هم په لوړه روحیه ساتل او له اقتصادي ستونزو یې نه خبرول او ددې لپاره یې بیلابیل چلندونه کارول، مثلا که کله به اقتصادي مشکلات وو او دڅه شي داخیستلو پیسې به نه وي، مولوی صاحب به چې په مرکز کې کوم ځای ډوډۍ، شریني یابل خوراکي شی

ولید چې مجاهدینو بي ځایه ایښی، یا ډوډۍ اضافه شوې، نو به یې ویل چې تاسو مصارف او بي پروایي زیاته کړې او دا مو جزا ده چې په تاسو شریني بنده ده او یا به یې ډوډۍ کمه کړه .

دنوموړي ملګري وایي مولوي صاحب په شخصي تقوی کې هم خورا غښتلی و، دده ملګرو او خپل اعتراف له مخې نوموړي له پنځلس کلنۍ نیولې بیا په ۴۵ کلنۍ کې تر شهادته د ۳۰ کاله په موده کې له اشنایي حالاتو پرته تهجد نه و قضا کړی ، ملګري یي وایي حتی که به دشپې په وروستۍ برخه کې هم ویده شو تهجد ته پاڅیده ، او خپل ملګري یې هم همیشه تهجد ته هڅول .

دمولوي صاحب بل خصوصیت له مطالعې سره شوق و، په سفر حضر او او هرډول جهادي حالاتو کې به له نوموړي سره ضرور څو کتابونه وو، چې مطالعه کول به یې. دنوموړي ډیر مینه داسلامي تاریخ، سیر او احادیثو له کتابونو سره وه ، سورت الانفال او سورت التوبه یې خپله هم یاد وو او په خپلو ملګرو یې هم ضرور یادول او همیشه به یې دهمدې سورتونو ترجمه او جهادي وعظ کاوو .

د سهار او ماښام مأثور اذکار دمولوي صاحب ورځني معمولات وو، چې په ملګرو یې هم یادول او ورته تشویقول یي. دمولوي صاحب ژوند ټول مقصودي ژوندو هیڅکله یې بې مورده وخت تیرول او دودیزه ګپه عادت نه وه، همیشه به یې له وخت نه استفاده کوله او ډیر ځله به یې مجاهدینو ته دجهادي ترغیب او فکري تربیې په اړه وعظ کاوو .

ملا شرف الدین تقي وایي مولوي صاحب له عامو خلکو سره خورا دنرمي او زغم رویه درلوده له همدې امله خو یې په خپله سیمه کې بې ساری عمومي محبوبیت درلود، نوموړي نه یوازې دمجاهدینو نظامي تربیې ته توجه درلوده بلکې فکرا یې هم مجاهدین داسې روزل چې بیا بې استقامتي، ضعف او ستړیا ونه پیژني بلکې جهاد ته د عمر کار ووایي .

شيخ نصر الله وايي: مولوي صاحب يو له زبده مجاهدينو څخه و، چې په جهادي چارو کې ډېر محتاط و او تقوی يې درلوده. نوموړي د امريکايانو خلاف د جهاد لومړيو کلونو کې د جهادي ضرورت په اساس او دا چې د هيواد مختلفو سيمو ته يې سفرونه کول نو خپله ډيره به يې لږ لنډوله، يو وخت چې يي د سفر اراده درلوده، ماته يې ويلي و چې ږيره به راته لنډوي،مازديگر وخت و او ده سبا د تگ اراده درلوده، ما ورته وويل راځه مولوي صاحب اوس داسې ښه فارغ وخت دی او رڼا هم ده، نو ږيره بـه دې درتـه لنډه کړم.

خو ده راته وويل زه سبا سهار د سفر اراده لرم او د سفر تر وخته د ږيرې لنـډولو ته ضرورت نشته، احتمالا که په شپه کې مرگ راته حاضر شي او ما مخکې لـه ضرورت څخه ږيره لنډه کړې وې الله تعالی ته به څه ځواب وايم. نو ښه داده چـې د ضرورت د پيښيدو يعني سفر له پيل سره هم مهال يې لنډه کړم، ځکه الضرورات تقدر بقدرها.

حافظ محمد وايي مولوي صاحب به ويل چې په جهـاد کـې د کاميـابۍ يـوازينی عامل دمجاهدينو عجز، الله تعالی ته زاری او الهي نصرت دی او د ناکامۍ، شکست او تلفاتو عامل بيا فخر او په خپلو کاميابيو باندې غرور دی، چې دالله تعـالی د نارضـايت سبب گرځي، نوځکه به يې مجاهدين هميشه دې ته متوجه کول چـې پـه خپلـو لاسـته راوړنو فخر ونه کړي او نه دکبر احساس وکړي، ځکه دا په جهاد کـې دناکـامۍ سـبب گرځي .

دمولوي عبدالحنان جهادوال صاحب متعهد او متدين ژوند نورهم ډېـر ديـاد وړ اړخونه لرل چې دلته دټولو خاطراتو ذکر کول به شايدليکنه ډېر اوږده کړي نوځکه پـه دې دعاء ليکنه رانغاړو چې الله تعـالی دې دنومـوړي برکـات او اسـتعداد پـه اوسـنيو مجاهدينو کيږدي ترڅو دده غوندې با استقامته او نه ستړي کيـدونکي مبـارزين تـرې جوړ شي ، آمين يا رب العلمين

# د شهيد ملا داد الله آخند ژوند او کارنامو ته کتنه

**ليکنه: نور احمد سعيد**

شهيد ملا داد الله «رهبر» رَحِمَهُ اللَّهُ د حاجی عبـد الله زوی پـه ۱۹٦٧ مـيلادي کـال کي د روزگان ولايت د دهراوود ولسوالۍ په يوه دين دوسـته او مجاهـده کـورنۍ کـې زيږيدلی دی .لومړنۍ زده کړي يې دخپلي سيمي په يوې درسي حجره کي ترسره کړې ، نوموړي لا خپل ديني تعليم نه و پوره کـړی ،چـي گـران هيـواد افغانسـتان د پخـواني شوروي اتحاد دسرو لښکرو تريرغل لاندي راغی .

## جهادي ژوند

دشهيدملا دادالله دجهادي ملگرو دمعلوماتو له مخې نوموړی پـه ۱۹۸۳ مـيلادي کي په کندهار کي د نامتوجهادي قوماندان مولوي اخـتر محمدآغاترمشرۍ لانـدي د شوروي سره پوځ پرضدوسلوال جهادپيل کړ ، نوموړي په لومړي ځل دکنـدهارولايت د ارغنداب ولسوالۍ د شاهين په کلي کي د شوروي عسکرو په مقابل کي په يـوه سـخت جنگ کي گډون وکړ، که څه هـم دا مهـال نومـوړی د عمـر پـه لحـاظ کشرـ و خـو پـه همدغه لومړي جنگ کي دنوموړي ميړانه او جهادي مهارت ټولو مجاهدينو په سـترگو وليداو نوموړی ديوه زړور او باعزمه مجاهد په توگه وپيژندل شو .

په ارغنداب ولسوالۍ کي د شوروي عسکرو له ماتي وروسته ملا داد الله آخند له مجاهدينو سره يو ځای د هلمند ولايت ته ولاړ او له اتـل قومنـدان شـهيد مـلا محمـد نسيم اخندزاده سره ملگری او د شوروی عسکرو په مقابل کـي يـې وسـلوال جهـاد تـه دوام ورکړ. په هلمند کي له يوه کال تيرولو څخـه وروسـته نومـوړی بيرتـه د کنـدهار ولايت ته راغی او د مولوي اختر محمد اغاتر قوماندې لاندې يې خپله اسلامي ، شرعي او جهادي دنده په پوره ميړانه او غيرت تر هغه وخته پوری پر مخ بوتله تر څو چـي پـه

ګران هیواد افغانستان کي شوروي یرغلګرو قواوو او د هغوی کمونستو ګوډاګیانو ماتي و خوړه او په تور مخ له افغانستان څخه وتښتیدل .

د وروستني کمونیست واکمن ډاکټر نجیب دحکومت له سقوط وروسته کله چي د قدرت واګي د مجاهدینو لاس ته ورغلې ا ودیو شمیر په واک مینو او تش په نامه جهادي رهبرانو لخوا د قدرت په سر داخلي جنګونه پیل شول، ملا داد الله آخند له داخلي جنګونو څخه د ځان ساتني په خاطر خپله اسلحه په مځکه کیښوده اوددیني زده کړو دحصول په مقصد یې دبلوچستان ایالت په مرکز کویټه کي د مولوي شفیع الله صاحب په مدرسه کي داخله واخیسته او وروسته بیادنامتوعلمي ،جهادي شخصیت شیخ الحدیث مولوي عبد العلي دیوبندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ مدرسې ته ولاړاوهلته یې خپلو زده کړو ته دوام وکړ.

کله چي په کال ۱۴۱۵ هـ ق کي د هیواد په جنوبي ولایت کندهار کي د طالبانو اسلامي تحریک د مرحوم امیرالمؤمین ملامحمدعمرمجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په مشرتوب د ظلمونو، فسادونواو نارواوو په مقابل کي راپورته شو. شهیدملادادالله آخند له هماغې ابتداء څخه له تحریک سره ملګری شو. نوموړی دشلوتنوانډیوالانوسره د عالیقدر امیر المؤمنین په لارښوونه د کندهار ولایت د پنجوایي ولسوالۍ ته ولیږل شو او د دې ولسوالۍ له نیول کیدو وروسته یې د سپین بولدک ولسوالي په نیولوکي هم ګډون وکړاو د نوروجهادي عملیاتو په تعقیب یې دکندهار هوایي میدان او د ولایت مرکز ښا راو نورو ټولو عملیاتوکې پوره برخه واخیسته .

د طالبانو په لاس د کندهار ولایت له پوره نیولو څخه وروسته نوموړی دمشرتابه له لوري دروزګان ولایت ته ولیږل شو اوهلته یې دخپلي سیمي خلګ له اسلامي تحریک سره یوځای کیدوته دعوت کړل .د روزګان ترتصفیه کیدو وروسته نوموړی دتحریك دقیادت په دستور هلمند ولایت ته ولیږل شو او د سنګین ولسوالۍ له فتحي وروسته دفراه ولایت په لوروخوځید تر هغو هلته و چي د دلارام ولسوالۍ هم طالبانوفتحه کړه .وروسته نوموړی زابل ولایت ته ولاړ د زابل، غزني او میدان وردګو

ولايتونو له نيول کيدو وروسته نومړي دلوګر ولايت او د چهار اسياب ولسوالۍ په فتوحاتوکي پوره ونډه درلوده ،دغه راز يې دپکتيا او خوست ولايتونو ته داسلامي تحريک په کاروان کې هم برخوال و.

کله چې د پلازمينې کابل په شاوخوا کې د احمدشاه مسعود له ځواکونه سره جنګونه شروع شول شهيدملا دادالله اخند په کې برخوال او ډير وخت به د جګړې په لومړۍ کرښه کې اوسيدو.په چهاراسياب کي له سختو جنګونو څخه وروسته نومړی دامير المؤمنين په لارښوونه د هلمند ولايت هغو سيمو ته چي لا هم نوې فتحه شوي وليږل شو، د هلمند ولايت له مکملي تصفيې څخه وروسته فراه ولايت ته ولاړاو دجګړې په لومړيوکرښوکي يې خپل مسوليت ترسره کاوه ،په دغه وخت کي مفسدو مليشو د چهار اسياب په لومړی خط سخت تعرضي جنګونه پيل کړل دمشرتابه له خوايو وار بياملا دادالله د چهار اسياب لومړۍ کرښي ته واستول شو. ملا دادالله اخند د چهار اسياب په لومړی خط کي د يوه سخت جنګ په ترڅ کي ديو مځکني ښخ کړای شوي ماين ښکار شو چي د چاوديدو له امله يې يوه پښه له لاسه ورکړه.نومړی له معالجې وروسته يو ځل بيا جهادي خدمت ته ستون شو.

کله چي د اسلامي تحريک مجاهدينو د کابل ولايت د نيولو پريکړه وکړه او د وريښمين تنګي له لارې يې په کابل ولايت لوی تعروضي عمليات پيل کړل، ملا داد الله د اتل قومندان شهيد ملا بورجان رَحِمَهُ ٱللَّهُ تر څنګ په دغه جنګ کي د زرګونو مجاهدينو مشري کوله او له ډيرو سختو جنګونو څخه وروسته يې د هيواد پلازمېنه کابل دټوپکسالارانواوکمونستانوله وحشي منګولوڅخه خلاص کړ اود امن سپين بيرغ يې پکښي ورپاوه، نوموړی د کابل ولايت د فتحي په جنګ کي له هوائي ډګر(خواجه رواش) سره نژدې په ښي لاس کلک ټپي شو، خو په دغه زخمي حالت کي په دښمن پسې شو او د کابل ولايت په شمالي سيمو شکر دره، پل متک او د کاپيسا په لور يې حرکت وکړ، په لوړو يادو شويو ټولو فتوحاتو کې سره له دې چې ملادادالله اخند

دجګړې عمومي قومندان نه وو ، خو په ټولو فتوحاتو کې یې دیوه فعال ډلګۍ مشر۔ رول ادا کاوو .

په ۱۹۹۷ میلادي کال کې کله چې له جنرال مالک سره داسلامي امارت له لورې موافقه وشوه شهیدملا داد الله له زرګونو طالبانو او داسلامي امارت له نورو مشرانو او قومندانانو سره یوځای دسالنګ تونل له لارې د هیواد شمالي ولایتونو ته ولاړ او چې د بغلان ولایت تر پلخمري پورې یې پرمختګ وکړ، د جنرال مالک د تاریخي غدر اونامردانه عمل نه وروسته چې په ترڅ کې یې زرګونه ددین او وطن په مینه مست سوله غوښتونکي مجاهدین شهیدان شول ،ملا داد الله له خپلوملګرو سره د بغلان ولایت په پلخمري کي محاصره شو،دا مهال چې داسلامي امارت زرګونه محاصره مجاهدین له سخت حالت او لوی خطر سره مخامخ وو د ملادادالله اخند او ملاامیرخان متقي په ګډون داسلامي امارت مشرانو خورا سترجهادي تاکتیک او بصیرت په کار واچاوو ترڅو یې په پایله کې له یوې خوا ټول محاصره مجاهدین ددښمن له ضرر څخه محفوظ وساتل شول او له بلې خوا دهیواد په شمال کې ډیرې سیمې د اسلامي امارت د مجاهدینو لاس ته ورغلې د احمد شاه مسعود ځواکونه په یوه بل جهاد کې په جګړو مصروف او ځواک یې تقسیم شو، داسلامي امارت مسؤلو مشرانو په دې سختو حالاتو کې دخپلو محاصره ملګرو مورال لوړ وساته ، دغه راز یې له ځایي قومندانانو او عامو خلکو سره لیدنې کتنې او تعلقات ګرم کړل. دسیمیزو خلکو اعتماد یې ترلاسه کړ او وروسته یې دځایي جهادي قوماندانوپه بلنه اوملاتړ د کندز په ولایت حمله وکړه له نیکه مرغه چې په ډیري اسانۍ یې دغه ولایت ونیو اود خپل ځا ن او مجاهدینو لپاره یې دیوپو خ او قوي سنګر په توګه غوره کړ. ملادادالله اخند چې په کندز کي یې دمجاهدینو نظامي مشري په غاړه وه ددښمن له خوادپردغه ولایت د سختوتعرضي حملو سره سره یوکال سخت مقاومت وکړ په داسي حال کي چي ټول اکمالات یې د هوا له لاري دطیاروپه واسطه کیدل .

له دې ځخه وروسته ملا داد الله رهبرد باميانو، تخار او د کابل ولايت پـه شـمالي سيمو بګرام، تګاب او نجراب کي په مختلفو عملياتو کې برخه واخيسته .

الحاج شهيد ملا داد الله اخند د اسلامي امارت د قيام او حاکميت په مرحله کې يو له ډيرو مهمو او تاثير ګذارو پوځي مشرانو ځخه و،چې ځواکمن او دښمن ماتوونکي جهادي ډلګۍ يې درلوده او تقريبا په ټولو فتوحاتو او مهمو جګړو کې نوموړی خپله او يا يې هم ملګري ګډونوال و. نومـوړي چـې ډيـره مـوده د کابـل د مرکـزي قـول اردو د قومندان په حيث دنده ترسره کړه د اسلامي امارت د دفـاع او واکمنـۍ د پراختيـا پـه لاره کې ډيرې هڅې وکړې او له همدې امله نوموړی د اسلامي امارت يو له مهمو پوځي مشرانو شميرل کيږي.

کله چي امريکا او متحدينو يې پرګران هيـواد افغانسـتان وحشـيانه اونارواحملـه وکړه شهيد ملا دادالله رَحِمَهُ ٱللَّهُ د هيواد په شمالي ولايتونـو کـي د صـليبي ځواکونـو او د هغوی دغلامانو په وړاندي کلک مقاومت وکړ. خوکلـه چـي شـمالي ولايـات د امريکـا يانواودهغوی دګوډاګيانوپه ولکه کي راغلل او مجاهدين تر ډيرې مودې په کنـدز کـې محاصره شول ملا داد الله اخند او په کندز کې محصورو ټولو مجاهدينو تر ډيرې مودې د امريکايي وحشيانه بمبارد او د امريکا د ګوډاګيانو د حملو پـه مقابـل کـې مقاومـت وکړ. وروسـته مـلا داد الله اخنـد لـه خپلوشـپږوتنو ملګـرو سره د بلـخ ولايـت پـه بلـخ ولسوالۍ کي په يوه کور کي پناه واخيسته، د امريکايي او دوستمي مليشـو لـه سـخت تفتيش سره سره يې بيا هم په دغه کور کي پوره يوه نيمه مياشت تيره کـړه او وروسـته يې د سټلايټ ټليفون له لارې له بي بي سي راډيو سره مرکـه وکـړه او ويـې ويـل چـي : الحمد لله زه نن ورځ مازيګر ځلور بجې روغ سلامت د کندهار ولايت تـه را ورسـيدم. ددې مرکې له اوريدو سره سم د دين او وطن دښمنانانو هم ومنله چي نوموړي د دوی له محاصرې ځخه روغ وتلی له مرکې کولو ځه وخت وروسـته مـلا داد الله د يـو شـمير بااحساسه خپلواکي غوښتونکو هيوادوالو په مرسته د سالنګ له لاري لومړی کابل ته او بيا له کابل ځخه کندهار ته را ورسيد.

اتل شهيد ملا دادالله اخند خپلې سيمې ته له رسيدو او په خپل کور کې له پنځلسو ورځو تيريدو وروسته يوځل بيا خپل ملګري سره راټول او منظم کړل، په صليبي اشغالګروقواوو او د هغوی په غلامانو يې چريکي، کميني او تعرضي حملې پيل کړې، چي په پايله کي يې دښمن ته زيات ځاني اومالي زيانونه واړول . کله چي امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد د يو ځانګړي امر په توسط د ۲۰۰۲م کال د ۲ مياشتي په ۱۲مه نيټه د يرغلګروځواکونو په مقابل کي دجهادي عملياتود ګړنديتوب اودمجاهدينو د ښه تنظم، تجهيز او اکمال لپاره يوه «لس کسيزه شوری » جوړه کړه ملا داد الله رهبريې د همدې شورى غړی وټاکه، نوموړي د امير المؤمنين له امر سره سم په کندهار، هلمند، زابل، روزګان او يو شمير نورو جنوبي ولايتونو کي په زرګونو مجاهدين ښه منظم او اکمال کړل او په صليبي عسکرو او د هغوی په مزدورانو يې مرګوني ګوزارونه پيل کړل. دامهال شهيدملادادالله آخند ديرغلګرانو او د هغوی لاسپوڅو پر ضد د کندهار ولايت په شما ل د«دره نور»په سيمه کي دترسره کړوکاميابو عملياتوپه اړه دمشهور ژورناليست او د بي بي سي راډيوله همکار رحيم الله يوسفزي سره خورا مهمه مرکه وکړه چي بي بي سي هم نشر کړه. په دې مرکه کې ملا دالله اخند په سيمه کي ديوې پراخي جګړې يادونه وکړه او ويې ويل چي په دغه جنګ کي يې شپيته تنه يرغلګراوداخلي عسكروژلي دي اود«دره نور»دره يې چي دکندهار-ارزګان لويه لارپکښي تيريږي تړلې ده ، شهيدملادادالله ددې پوښتني په ځوا ب کي چي «امريكايان افغانستان ته په خورالوي قوت اوزورسره راغلي دي ښايې تاسي يې په وتلوونه توانيږئ ؟»وويل چي «روسانوهم نه غوښتل چي له افغانستانه ووځي خوچي مځکه ورته ګرمه شوه بياځنګه وتښتيدل نوامريكايان به هم دنورويرغلګروپه څېرناکامه اوشرميدلي زموږله غيرتي خاوري څخه وځي انشاءالله » داتل رهبردې مرکې دومره تاثيروکړچي دکابل دنانځكي اداري دمشرکرزي زړه اودماغ ته يې ټکان ورکړ،کرزي پربي بي سي خوله راخلاصه کړه او دملا دادالله آخند دمرکې خپريدل يې وغندل ،کرزي له رسينووغوښتل چي نورنوبايدپه اصطلاح دترهګرو(!!) دخبرونشرته

وخت ورنه کړي. دې مرکې په هغه سخت مهال کې په درست هیواد کې مجاهدینو ته خورا لوی مورال ورکړ او ډیر ښه اثر یې درلود .

## شخصیت او خاطرې

شهید ملادادالله اخند داسلامي امارت دهغو نظامي مشرانو او قومندانانو څخه و ، چې داسلامي امارت زعیم عالیقدر امیرالمؤمنین ورباندې ځانګړی اعتماد درلود ، نوموړی زړور ، باعزمه او دلوېې ارادې او همت خاوند و، داسلامي تحریک په پخوانیو فتوحاتو او وروسته دامریکایانو په خلاف دجهاد په جاري ساتلو کې ملادادالله اخند مهم او اساسي رول درلود .

دنوموړي دهمت او جهادي خدمت دجذبې په اړه دده یوتن جهادي ملګری وایي چې دشوروي ضد جهاد په مهال یو ځل روسي قواوو د کندهار ولایت ارغنداب ولسوالي له هري خوا څخه سخته محاصره کړه او غوښتل یې چې په نوموړې ولسوالۍ کي د مجاهدینو مرکزونه له منځه یوسي او ولسوالي تر خپل واک لاند راولي، ملا داد الله رهبر چي د نوموړي ولسوالۍ د محاصره شوو مجاهدینو په ډله کي و یوه ورځ یې له سهاره تر ماښامه ټوله ورځ له شوروي عسکرو سره په جنګ کي تیره کړې وه او له ماخوستن څخه وروسته یې په یوازې ځان په داسي حال کي چي هیڅ څوک ورسره نه و تر سهاره پورې یې ۱۵۰ کیلو ګرامه« اوړه » لامده اوبیا پاخه کړل اولسګونو مجاهدینو ته یې ډوډۍ تیاره کړه.

هغه مهال چې ملادادالله اخند په کندز کې له څلورو خواوو محاصره و او په ډیر سخت حالت کې یې قرار درلود ، دنوموړي ملګري وایي چې په نوموړي کې یې هیڅکله د وارخطایي او دوه زړه توب اثار نه دي لیدلي ، په داسې حال کې چې په محاصره کندز باندې به دمسعود، دوستم او نورو مختلفو جنګیالیو لخوا له هرې خوا بریدونو روان و، ملادادالله اخند به په خورا متانت دخپلو ملګرو رهبري کوله ، دعادي حالاتو په شان به یې له ملګرو سره مجلس او ټوکې ټکالې کولې، چې دجګړې په توده ساعت کې به دنوموړي دې نورمال چلند ټولو مجاهدینو ته مورال ورکاوو.

دالجزيرې تيلويزيون يو خبريال چې په هلمند کې يې له ملادادالله اخند سره څه وخت يوځاى تير کړى وايي: چې ملادادالله اخند ډير متوکل سړى و ، چې له امريکـايي هوايي ځواک څخه هيڅ نه ويريده ، نوموړى ملادادالله اخند دامريکاضد جهاد په مهال په هلمند کې خورا ازاد ګرځيده ، نوموړى په داسې حال کې چې په يوه پښه معيـوب و په هلمند کې اوږده مزلونه پياده وهل او په غرونو کې به يې داسې حرکـت کـاوو چـې هيڅ دمعيوب شک ورباندې نه راته ، دغه خبريال وايي چـې يوځـل مـې پوښـتنه تـرې وکړه چې تاسو دامريکايانو لپاره ډير مطلوب ياستئ ، مګر بيا هم دومره ښکاره ګرځئ ، آيا له امريکايي ځارونکو سپوږمکيو څخه ويره نه احساسوئ ؟

ملادادالله اخند راته وويل چې پوهيږم چې زموږ لـه پاسـه دامريکايـانو څـارونکي سپوږمکۍ شته ، خو بايد ووايم چې ترهمدې سپوږميکو لوړ زموږ قادر ، حافظ او ناصر رب جَلَّجَلَالُهُ هم شته ، هغه رب جَلَّجَلَالُهُ چې موږ پرې ايمان لـرو او دهغـه لپـاره جهـاد کوو، موږ دخپل بشري وس په اندازه به دځان ساتنه کوو ، خو زموږ اصلي سـاتونکى الله تعالى دى او دهغه په لار کې شهادت ته هميشه حاضر يو .

**دملادادالله اخند شهادت**

الحاج ملادادالله اخند له اوږده جهـادي او متعهدانـه ژونـد نـه وروسـته د ۲۰۰۷ ميلادي کال دمى دمياشتي په ۱۴مه چي د۱۴۲۸ هق د ربيع الثـاني لـه ۲٦ سره سـمون خوري دهلمند ولايت دګرمسير ولسـوالۍ دلـوى درويشـان پـه کـلي کـې دامريکـايي ځواکونو په چاپه کې په شهادت ورسيد .

له ملادادالله اخند څخه ۴ اولادونه پاته دي، الله تعالى تـه دعـا کـوو چـې دنومـوړي برکات يې په اولادونو کيږدي، تر څو همداسې دحق دلارې زړور مبارزين ترې جوړ شي.

انا لله وانا اليه راجعون

❊ ❊ ❊

# د شهید مولوي محمود سیف الله ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

له نصوصو او تاریخي جریان څخه ثابته ده چې الله تعالی د خپل دین او خلقت د مقاصدو د ساتنې لپاره همیشه، په هرځای، هر عصر او هر ډول حالاتو کې مجاهد او مبارز رجال پیدا کوي، تر څو د هغوی په واسطه د دین د ساتنې، دفاع او خپراوي فعالیتونه تجدید او ورته نوې ساه ورکړي.

د افغانستان په جنوب لویدیځه څنډه کې، هغه ریګستان چې د کندهار له حدودو پیل بیا د هلمند جنوب او د نیمروز ولایت تر غربي او شمالي ساحاتو رسیدلی په دې ساحه کې د جهاد، دیني علم او دین ته د تعهد د نوي دوران لپاره الله تعالی د مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ په نوم یو متدین، مجاهد او مبارز ځوان انتخاب کړ. هغه چې په خپل ویاړمن کردار سره یي نه یوازې دا سیمه د امریکایي یرغل په وړاندې د جهاد په نه ماتیدونکي سنګر بدله کړه، بلکې د تعلم، تعلیم او دین ته د التزام فرهنګ یي هم په سیمه کې په میراث پرېښود، چې له برکته یي اوس دا سیمه نه یوازې په جهادي فکر سمباله ده، بلکې د دیني مدارسو ډیوې هم په کې بلې دي.

راځئ یوه شیبه د ریګستان په سوزنده صحراوو کې ددې راټوکیدلي غاټول د ژوند او کردار نندارې ته تم شو، تر څو یي د یوه مجاهد او مبارز شخص په حیث له ویاړمن تاریخ څخه خوند او پند واخلو.

**زوکړه او نشأت**

مولوي محمودد ملا عبدالحمید زوی چې د بلوڅ قوم له شاهوزی قبیلې سره یي تړاو درلود په۱۳۹۲ هـ ق کال کې چې له ۱۹۷۲ میلادي سره سمون خوري د افغانستان

د نیمروز ولایت د چخانسور ولسوالۍ مربوط د تپه نادعلي په کلي کې دنیا ته سترګې وغړولې.

نوموړي خپلې ابتدائي زده کړې په خپل کور او د کلي په مسجد کې پیل کړې،د کمونیستانو د واکمني او شوروي یرغل په مهال ددوی کورنۍ ایران ته په هجرت اړ شوه، نوموړي څه موده د ایران په زاهدان کې سبقونه وویل او بیا پاکستان ته لاړ او د بلوچستان د مرکز کویټې په تجویدالقرآن مدرسه کې یې زده کړې پیل کړې.

مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ په یوه کاملا علمي او جهادي چاپیریال او عصر کې رالوی شو،که له یوې خوا د دیارهجرت په بیلابیلو مدارسو کې په زده کړو بوخت و،له بلې خوا څرنګه چې همدا مهال په افغانستان کې د کمونیستي کفر به خلاف مسلح جهاد روان و، نو جهادي جذبه یې هم ویده نه وه پاتې بلکې د تاندې ځوانۍ په موسم کې هغه مهال چې د کمونیزم په آخري واکمنۍ وروستي ګوزارونه روان و نوموړی عملا د جهاد ډګر ته لاړ او د مسلح جهاد له خونده یې ځان خبر کړ.

مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ په نوې ځوانۍ کې د ډاکټر نجیب د واکمنۍ له سقوط دوه کاله وړاندې په لومړي ځل کندهارولایت ته د جهاد لپاره لاړ، هلته یې د ارغسان په سیمه کې په یوه جهادي معسکر کې حربي روزنه ترلاسه کړه او بیا یې د دامان، تخته پل او د کندهار ښار په شاوخوا کې په نورو جهادي معرکو کې هم برخه واخیسته.

له جهاد څخه له راستنېدو وروسته نوموړی دبلوچستان مستونګ ته لاړ او هلته یې د دیني علومو تعلم ته دوام ورکړ،له دې وروسته مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ د پاکستان او ایران په بیلابیلو مدارسو کې تر هغه وخته دیني زده کړو ته دوام ورکړ ترڅو په افغانستان کې د فساد او هرج ومرج په وړاندې د مبارزې جهادي صف یعني اسلامي امارت ظهور وکړ.

**په اسلامي امارت کې شرکت او خدمتونه:** د افغانستان د اسلامي امارت له تأسیس او پرمختګونو وروسته هغه مهال چې مجاهدینو د هرات ولایت مرکز فتحه

کړ، څه موده وروسته مولوي محمود صاحب سره له څو تنو ملګرو د اسلامي امارت په صف کې داخل شو، نوموړي څه موده په شینډنډ کې دنده ترسره کړه او وروسته د کندهار په هوايي ډګر برج راهدار کې مؤظف شو.

دغه مهال چې د کابل په شاخوا د طالبانو کلابندي راګرځیدلې او د چهار اسیاب په سیمه کې تعرضي خطوط و،د جهادي ضرورت په اساس مولوي محمود صاحب له خپلو ملګرو سره چهاراسیاب ته لاړ او هلته د وتلي مجاهد ملا دادالله اخند په ډلګۍ کې داخل شو.

مولوي محمود صاحب د شهید ملا دادالله اخند تر قیادت لاندې په جهادي کرښو کې ستر او د قدر وړ خدمتونه ترسره کړل، په دې لړ کې چې کله د ټانک د مسلک ماهرینو ته ضرورت پیښ شو، مولوي محمود له ګڼو نورو مجاهدینو سره هرات ته لاړ او هلته یي په ځانګړي کورس کې د ټانګ او ګڼو نورو ثقیله اسلحو زده کړه او تخصص تر لاسه کړ. نوموړی وروسته بیرته کابل ته راغی او کله چې کابل د طالبانو په لاس فتحه کیدو نوموړی د هغو سوبمنو مجاهدینو له جملې څخه و چې د ریشخورو له استقامت څخه پلازمینې کابل ته داخل شول.

د کابل له فتحې وروسته مولوي محمو صاحب څه وخت د کابل د شمال په جنګي خطوطو کې پاتې شو او وروسته د خپلودیني زده کړو د تکمیل لپاره مدارسو ته ستون شوچې په دې مرحله کې یي د ایران او پاکستان په بیلابیلو مدارسو کې دیني زده کړې تعقیب کړې، په ۱۴۱۸ هـ ق کال کې یي د ایران له مشهور سني عالم شیخ مولانا محمد عمر سربازي صاحب څخه علمي فیض ترلاس کړ او څو کاله وروسته یي د پاکستان په صادق اباد کوته سبزل سیمه کې په الجامعة السعدیه کې ددیني علومو او احادیثو د زده کړې مروجه سلسله پای ته ورسوله او د فضیلت دستار یي وتاړه.

له دیني علومو له فراغت وروسته چې کله د جهادي خدمت لپاره ستون شو، نو د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په هدایت او منظوری نوموړی د بلوڅو مجاهدینو د ډلګۍ مشر وټاکل شو،او په دې ډول یي د مستقلې ډلګۍ په چوکاټ کې

فعالیت پیل کړ،چې یوه اندازه ملگري یې په کابل او نور د شمال په تخار ولایت کې په خدمت لگیا و، په دې وخت کې مولوي محمود د څه وخت لپاره د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ د ولسوال په حیث هم دنده اجراء کړه،خو د نوموړي جهادي ملگري په هغه ځانگړي قطعه کې بسیج شوي و چې د امیرالمؤمنین په فرمان له څلورو لویو ډلگیو څخه جوړه وه، مرکزیت یې د کابل به بالاحصار کې و او د هیواد په مختلفو جنگی محاذونو کې یې خدمت کاوو.

د امریکایي یرغل په تعقیب د شهید مولوي محمود د ډلگۍ ۱۲۰ تنه مجاهدین چې مشري یې حافظ غلام الله صاحب په غاړه وه او د تخار په جبهاتو کې و د نورو زرگونو مجاهدینو سره یوځای بندیان شول چې له جملې یې ۴۰ تنه د دوستمي ملیشو لخوا په کانتینرونو کې شهیدان او پاتې یې د مولوي محمود صاحب په ډیرو هڅو او د پیسو په توسط له زندان څخه ازاد شول.

## د یرغل په خلاف د جهاد پیل

د کابل له سقوط وروسته مولوي محمود له خپلو ملگرو او وسلو سره د هلمند د دیشو ولسوالۍ مربوط سرحدي سیمې برامچې ته لاړ چیرته چې نوموړي له پخوا څخه په یوه غرنۍ سیمه کې معسکر جوړ کړی و. د کندهار ښار له سقوط څو ورځې وړاندې د روژې په نیمایي کې امریکایانو او داخلي اجیرانو یې د برامچې په ملک غره کې په همدې معسکر برید وکړ،او په لومړي ځل په دې سیمه کې له یرغلگرو سره سخته جگړه وشوه،چې ددښمن یو ټانگ په کې وویشتل شو،وروسته امریکایانو دا سیمه سخته بمبار کړه چې په پایله کې یې ۳۲ تنه مجاهدین شهیدان شول، ددې معسکر له نړیدو وروسته مولوي محمود صاحب د مشکاني غره په سیمه کې جهادي مرکز جوړ کړ، خو دا ځل یې ځان چریکي جگړې ته اماده کړ نو ځکه یې وسلې خوندي او ملگري یې متفرق کړل تر څو ددښمن د بمبار هدف ونه گرځي.

له څو میاشتې ځنډ وروسته مولوي محمود صاحب خپل پخواني جهادي ملگري او یو شمیر علماء کرام رایوځای کړل تر څو د جهاد د پیل په اړه ورسره خبره شریکه

کړي،مولوي عبدالعزيز جهاديار وايي چې په دې مجلس کې مولوي صاحب وويل چې : موږ يو اسلامي نظام درلود چې په ډېرو قربانيو مو تأسيس کړی و، صليبيان راغلل او زموږ نظام يي ونړاوو،دښمن له هر لحاظه په ډېر قوي حالت کې دی او موږ تاسو هيڅ نلرو په داسې حال کې موږ ته څه کول په کار دي؟ آيا په همدې تش لاس جهاد پيلوو او که آرام کينو؟

د مولوي صاحب ددې خبرې په ځواب کې ځينو کسانو وويل چې : موږ له جهاد څخه منکر نه يو مګر دا هم وينو چې امريکايان ډېر په قوت کې دي، په ځمکه او هوا برلاسي دي او که يي په مقابل کې څوک ادنی حرکت کوي هم نو له منځه يې وړي. . .

ددوی په ځواب کې مولوي صاحب وويل: چې داسې ده نو تاسو په قرآن او احاديثو کې يو داسې دليل او مبرر وپلټئ چې موږ له جهاد څخه معذور وبولي تر څو ټول خپلو کورونو او مدارسو ته ستانه شو او د امريکايانو تر واک لاندې د آرام ژوند پيل کړو.

ددې خبرې په اوريدو د مجلس ټول ګډونوال خاموش شول. لږ وروسته مولوي محمود صاحب خاموشي ماته کړه او ويي ويل: زما يقين دی چې تاسو د دين له نظره مبرر نه شئ پيدا کولای،د کفر په خلاف جهاد فرض شوی دی او چې فرض دی،زه به که په تش لاس هم وي دغه فريضه پيلوم،خير دی که ددښمن په لاس موږ ووژل شو، لاسونه او پښې مو غوڅ شي او يا محبوس شو، نو به د الله تعالی په نزد واقعا معذور شو او الله تعالی ته به ووايو چې اې الله تعالی موږ خو ستا د فريضې د ترسره کولو عزم درلود مګر د همدې فريضې په لاره کې قتل او معيوب شوو نو ځکه رانه په نيمه کې پاته شوه.

په دې مجلس کې ملګرو ته د قناعت ورکولو نه وروسته مولوي محمود صاحب عملا ددښمن په خلاف د تعرضي بريدونو لپاره په تياريو لاس پورې کړ،تر دې چې د ۱۴۲۴ هـ ق کال د ذوالحجة الحرام مياشتې په لومړيو کې يي لومړني عمليات د هلمند ولايت د ديشو ولسوالۍ په چوټو سيمه کې د ګوډاګيانو په يوه مهم مرکز ترسره کړل.

حاجي ضرار چې ددې عملیاتو برخوال و، وایي: په چوټو کې د قومندان ایوب په مشرۍ ددښمن ډیر عسکر اوسیدل چې څو پوستې او مراکز یې درلودل، مجاهدینو لومړۍ ددوی په یوه مرکز حمله وکړه، پیره دار یې د چاړې په گوزار وواژه او بیا مرکز ته ننوتل خو ددښمن عسکر له دې مرکز څخه وتلي و، مجاهدینو څه شیان غنیمت کړل، ددې برید په تعقیب د چوټو بازار ته نږدې له دښمن سره مخامخ جگړه وشوه چې د قومندان ایوب ماما په شمول ۷ تنه عسکر په کې ووژل شواو مالونه یې مجاهدینو په غنیمت ونیول.

## د جهادي دعوت او عملیاتو دوام

مولوي محمود صاحب دا مهال له جهادي عملیاتو سره یوځای د دعوت پروگرام هم تعقیباوو، نوموړی د خپلې سیمې په اکثرو علماء کرامو،قبایلو او قومي مشرانو وگرځېد او د جهاد دعوت یې ورکړ،چې له جملې یې ځیني ورسره په سر او مال ودرېدل او ځینو ورته د همکارۍ ډاډ ورکړ، له دې جملې د بلوڅو دمحمدحسني قوم د یوه مشر حاجي غریب شاه دا تاریخي کارنامه د یادولو ده چې په ډیر سخت او امتحاني حالت کې یې مولوي محمود صاحب ته وویل چې جهاد یوازې په تاسو نه دی فرض بلکې موږ هم مسلمانان یو او په موږ هم فرض دی، تاسو جهاد پیل کړئ موږ په سر مال او حتی د ماشومانو او ښځو په قرباني کیدلو درسره ولاړ او هرې قربانۍ ته حاضر یو.

د مولوي محمود صاحب تر مشرۍ لاندې مجاهدینو د ۲۰۰۳ میلادي کال له نیمایي څخه د هلمند په جنوب کې په دښمن د بریدونو لړۍ پیل کړه، چې په ۲۰۰۷ میلادي کال د نوموړي د شهادت تر وخته یې خپله مولوي محمود صاحب مشري کوله، په دې اوږدو کې نوموړي د اسلامي امارت د نظامي کمیسیون د عضو او د نیمروز ولایت د جهادي مسؤل په حیث هم دندې اجراء کړې.

په دې مرحله کې د شهید مولوي محمود تر مشرۍ لاندې گڼ شمیر عملیات وشول لکه د دیشو ولسوالۍ په مرکز مکررې حملې،د مارجې او خانشین په مربوطاتو کې ددښمن په پوستو، مراکزو او کتارونو بریدونه،د گرمسیر په سفار سیمه کې ددښمن په

مرکز حملې،دغه راز د کندهار پنجوايي او د نیمروز ولایت بیلابیلو سیمو ته جهادي ملګري لیږل تر څو له نورو مجاهدینو سره په ګډه په جهادي عملیاتو کې برخه واخلي.

په دې مرحله کې د مولوي محمود صاحب جهادي مرکز د برامچې مربوط د مشکاني غره په سیمه کې وه چې د هلمند، نیمروز، او کندهار په مربوطاتو کې یې له نورو مجاهدینو سره اوږه په اوږه په جهادي عملیاتو کې ونده اخیسته، دغه راز په برامچه کې د نوموړي لخوا د مجاهدینو د تدریب لپاره یو معسکر هم تاسیس شوی و چې ګڼو مجاهدینو ته یې په جهادي اعداد سربیره د ریموټ جوړولو او نورو تخنیکونو زده کړې هم ورکولې دا معسکر اوس هم د موقعیت په تغیر سره موجود دی او جهادي خدمتونه ترسره کوي.

په دې جهادي مرحله کې یویو ځل د مجاهدینو لخوا د دیشو او خانشین ولسوالیو مراکز هم فتحه شول، څرنګه چې د بهرامچې مهمه سیمه بشپړه د مجاهدینو په کنترول کې وه، نو په ۲۰۰٦ م کال کې د دښمن یوه لویه قوه د بهرامچې په خوا راووته، خو مجاهدینو ورته د ساسولي په سیمه کې کمین ونیو او ددښمن ګڼ شمیر عسکر یي ووژل چې مړي یي په میدان پاته شول.

ددغه شکست د جبیره کولو او خپلو عسکرو د اجسادو د وړو لپاره د هلمند امنیه قومندان عبدالرحمان جان په خپله له یوې قوې سره بهرامچې ته راغی،خو مولوي محمود صاحب د نوموړي د مخابرې نمبر پیدا کړ او اخطار یي ورکړ که تر سبا له سیمې ونه وځي نو مجاهدین به وربانديې داسې برید وکړي چې پخوانی شکست به یي هیر شي،عبدالرحمن جان ددې اخطار په اوریدو په هماغه شپه کې خپل ټول عسکر او تشکیلات له بهرامچې وایستل او په دې ډول د دیشو ولسوالۍ مکمله د مجاهدینو په لاس کې شوه چې تراوسه وربانديې واکمن دي، له هغه وروسته امریکایانو دوه ځله د هوا له لارې د بهرامچې په بازار چاپې وهلي او بازار یي نړولی دی چې هر ځل ورته مجاهدینو درانه تلفات هم اړولي نور دښمن په دې نه دی توانیدلی چې په دې سیمه کې کومه ثابته قرارګاه جوړه کړي.

په هلمند کې په جهادي خدماتو سربیره څرنګه چې مولوي محمود صاحب د نیمروز ولایت جهادي مسؤلیت درلود په نیمروز ولایت کې یې هم لوی جهادي خدمتونه وکړل، نوموړي لومړی ددې ولایت مختلفو سیمو ته دعوتي ملګري ولیږل تر څو علماء کرامو، مخورو او په کور ناستو مجاهدینو ته د جهاد پیغام واستوي، وروسته یې بیلابیلو سیمو ته تشکیلات پیل کړل، او عملا یې په نیمروز کې په دښمن بریدونه شروع کړل چې له دې جملې د دلارام ولسوالۍ فتحه او د امنیه قومندان وژل کیدل، دغه راز په دې سیمه کې د هندوانو کمپ سوزول دیادولو وړ دي.

**شهادت**

۲۰۰۷ میلادي کال چې د جهادي عملیاتو او فتوحاتو د پراختیا یو مهم کال بلل کیږي، مولوي محمود صاحب غوښتل له خپل مرکز بهرامچې څخه نیمروز ولایت ته جهادي تشکیلات پراخ کړي،په دې لړ کې د همدې کال د جون په اتمه نیته چې د ۱۴۲۸ هـ ق د جمادی الثاني له ۲۳ سره سمون خوري د جمعې په مبارکه ورځ د دیشو ولسوالۍ د جوکي په سیمه کې په داسې حال کې چې د ګڼو ونو منځ کې په جهادي ترتیب بوخت و امریکایانو ورباندې چاپه واچوله او وروسته یې د نوموړي په ملګرو سخت بمبار وکړ،چې په ترڅ کې یې خپله مولوي محمود سیف الله صاحب له ۹ تنو ملګرو سره په شهادت ورسید چې د شهیدانو په جمله کې ورسره تکړه مجاهد ملګري مولوي محی الدین صاحب هم و.

شهید مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ او نور شهیدان ملګري یې د دیشو مربوط د بهرامچې د شهیدانو په مشهوره هدیره کې خاورو ته وسپارل شول. رحمهم الله تعالی

**د شهید مولوي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ د ژوند څو خاطرې**

شهید مولوي محمود صاحب د ګڼو امتیازي خویونو څښتن و، نوموړي ته الله تعالی په ښه علم،جهادي عزم، جرأت او شجاعت سربیره تقوی، دیانت او اخلاص هم ورنصیب کړی و، د نوموړي ځیني ملګري د ده د شخصیت په اړه داسې وایي:

مولوي عبدالعزيز انصاري صاحب وايي: مولوي صاحب له بيت المال سره خورا زيات احتياط کاوو، او د بيت المال پيسې يي له عامه جهادي ضرورت پرته کله هم په شخصي ډول او بلا ضرورته نه خرچ کولې، کله چې په کندهار کې يي وظيفه وه نو زه يي د مالي چارو مسؤل ټاکلی وم، نو چې به له نورو ملګرو سره بازار ته د سودا خيستلو لپاره لاړو ،ملګرو به د فاکهې او مشروباتو د اخيستلو غوښتنه درلوده، ما له مولوي صاحب څخه پوښتنه وکړه چې آيا د بيت المال له پيسو ملګرو دا شيان واخلم؟ مولوي صاحب راته وويل څرنګه چې دا مجاهدين دي او پيسې هم ورسره نشته نو که فتوی رانه غواړې اجازه درکوم چې ورته اخله يي مګر زما خپله تقوی داده چې په داسې ځای کې که څه هم لږ وي بايد د بيت المال پيسې مصرف نه شي.

حافظ غلام الله صاحب وايي: کله چې مولوي محمود صاحب په ميوند ولسوالۍ کې د ولسوال په حيث دنده درلوده، نو يوه ورځ په دې سيمه کې يوه ملګري قاري ايوب صاحب چې دهمدې علاقې اوسيدونکی و ميلمستيا وکړه،مولوي صاحب نورو مسافرو مجاهدينو ته چې جهادي خط ته روان وو وويل چې ميلمستيا ته تاسو ورشئ، ځکه تاسو سبا يا بله ورځ روان ياست، زه ددې سيمې حاکم يم او ميلمتستيا کوونکی هم ددې سيمې سړی دی،نو مناسبه نه بولم چې په ميلمستيا کې يي شرکت وکړم، ترڅو که سبا يي له چا سره دعوه وي نو ماته دواړه جانبه علی السويه وي او د چا تر منت لاندې به نه يم.

حاجي ضرار وايي: د مولوي صاحب لوی خصوصيت دده اخلاص او له مجاهد سره محبت و، ده به له هر مجاهد او هرچا سره داسې وضعيت کاوو چې هغه به فکر کاوو چې تر ټولو له ماسره ډير محبت لري،ډير زيات عابد و،د بيت المال د پيسو له غلط استعمال څخه يي ډير لرې ځان ساته، د دنيا او متاع هيڅ شوق يي نه درلود،بله دا چې هر چا ليدلی و نو ډير به ورته محبوب و چې همدا عامه محبوبيت يي د قبوليت لويه نښه وه.

مولوي خالد صاحب وايي: شهيد مولوي محمود صاحب لکه څنګه چې په يوه وتلي او منلي مجاهد سره مشهور و، همداسې يي له علم ، علماء کرامو او مدارسو سره هم هميشنۍ رابطه وه،نوموړي ډير خلک علم او د مدارسو تأسيس ته تشويق کړل، د علماء کرامو او طالبانو يي ډير احترام کاوو.

په شرعي امورو او د طرفينو تر منځ په ثالثيت کې ډير محتاط او شريعت ته پايبند و، يوه ورځ د سيمې يو عالم ورسره مخامخ شو، مولوي محمود صاحب يي ډير احترام وکړ، وروسته دې عالم له جيب څخه يو موټی شنې را وايستې او مولوي صاحب ته يي ورکړې،مولوي صاحب يوه دانه خولې ته واچوله،خو دغه عالم سم دستي د خپلې دعوا بيان او سپارش شروع کړ،مولوي صاحب يي خبرې ته غوږ نيولی و خو چې کله دغه عارض رخصت شو، مولوي صاحب هغه د شنې يوه دانه چې خولې ته اچولې وه، په خوله کې يي ساتلې وه او بيرته يي وغورځوله، پاته شنې يي عامو مجاهدينو ته ورکړې او ويي ويل: ددې سړي څه عرض شته، نو زه چې مسؤل يم احتياط دا دی چې دده له لاسه کوم شی ونه خورم، تاسو چې عام مجاهدين ياست او له داسې قضاياو سره مو کار نشته تاسو ته يي خوړل باک نلري.

قاري هارون الرشيد وايي: هغه وخت زه د بهرامچې د تيمورچاي په سيمه کې په بدرالعلوم مدرسه کې د شعبه حفظ استاد وم، مولوي صاحب چې په جهادي چارو بوخت و، کله به په خفيه شکل مدرسې ته راتلو او دلته د لنډ وخت لپاره اوسيده، ما چې مولوي صاحب له نږدې ليدلی و، د ډير معتدل مزاج، لوړو اخلاقو، تواضع او پرنفس د حاکميت څښتن و. مثلا زه به ددوه وړې خاطرې ذکر کړم چې ما په خپله ليدلي او ددوی د شخصيت کمال ترې معلوميږي.

موږ په مدرسه کې اوسيدلو نو دلته په يوه اطاق کې د بسترو له جملې د يوه بالښت پوښ يو څه خيرن و،بله ورځ مولوي صاحب همدې اطاق ته ورغلی و، نو يو ځل ګورم چې مولوي صاحب د همدې بالښت پوښ ايستلی، او بيا د اوبو ځای ته تللی دی، پوښ يي په صابون پاک مينځلی او په لاسونو يي لمر ته نيولی تر څو وچ شي، ما چې

کله وليد نو ورغلم او ترې وامې خيست. نو مطلب دا چې د نوموړي مشرتوب او دا چې دلته د يوه معزز ميلمه په حيث اوسيده ددې په وړاندې نه و مانع شوي چې د مدرسې خدمت وکړي.

يوه بله ورځ چې مولوي صاحب همدلته د ميلمه په حيث اوسيدو، په مدرسه کې مو پسه حلال کړی و، موږ د پسه ينه کباب کړه او مولوي محمود صاحب ته مو ورووړه، کله مو چې ورووړه ده پوښتنه وکړه چې آيا دا يوازې زما لپاره ده که نورو طالبانو او استادانو ته هم دا خوراک رسيدلی؟ موږ ورته وويل چې دا مو يوازې تاسو لپاره تيار کړی.

مولوي صاحب وويل : دا طالبانو او نورو استادانو ته ورووړه هغوی هم زما غوندې انسانان دي او دغسې زړه او خواهشات لري، زه پر دوی هيڅ برتري نلرم چې په دې خوراک سره خاص شم، ماته يوازې هغه خوراک راوړئ چې ټول طالبان او ملګري يې خوري .

له دې څخه معلومه شوه چې نوموړي په خپل ځان او نفس تر ډيره حده کنټرول درلود اوطبعي خواهشات يي تر پښو لاندې کولای شوای چې همدايي د بريا او د شخصيت دکمال لوی رمز و.

د مولوي محمود سيف الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ له شهادت وروسته د نوموړي نږدې ملګری مولوي عبدالرشيد صاحب دده په ځای وټاکل شو تر څو جهادي مسؤليتونه ترسره کړي.

❋ ❋ ❋

# د شهـيد ليــکوال او اديـب
# ملا محمد حسين مستسعد ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

الله تعالی د خپل دين د دفاع،خپرولو او خدمت لپاره په هره زمانه کې د بيلابيلو صلاحيتونو او استعدادونو درلودونکي رجال پيدا کړي دي.کـه الله تعـالی د تـورې او جهاد د ميدان د خدمت لپاره توريالي او حماسه ساز ميړونه پيدا کوي نو د علم، ادب او فرهنگ د خدمت لپاره بيا د قلم او بيـان پـه اسـتعداد سـمبال قلمـوال، شـاعران او ليکوالان د خدمت ميدان ته سوق کوي.

اما داسې به لږ ليدل شوي وي چې د حق د لارې په کوم مبارز کې د قلم او تورې استعداد هم مهال يو ځای شوی وي. راځئ دلته د همداسې يو مجاهد او د حق مسـير د لاروي داستان سره ولولو چې نه يوازې د علم، سياست او جهاد د لارې مبارز و بلکې الله تعالی ورته د قلم او ليکوالۍ استعداد هم وربښلی و او په دې ټولـو برخـو کـې يـې وياړمن خدمتونه سرته رسولي.

## ملا محمد حسين مستسعد

ملا محمد حسين مستسـعد د مرحـوم مولـوي فـيض الحـق اخنـدزاده زوی او د مرحوم ملا محمد سرتور لمسی دی چې پـه ۱۳۹۳ هــجري قمـري کـال چـې لـه ۱۹۷۲ ميلادي سره سمون خوري د افغانستان د زابل ولايت د شملزو ولسوالۍ په نسوزو کلي کې يې دې فاني دنيا ته سترگې غړولي دي.

د مستسعد صاحب کورنۍ له پخوا څخه د علم او فضل درلودونکي کـورنۍ پاتـه شوې، د نوموړي د نيکه پلار مرحوم ملا عبدالرحمن يو صوفي او بزرگ عالم و او په اړه

یې مشهوره ده چې څو ځله د بیت الله شریف حج ته په پښو تللی و او وفات یې هم په همدې سفر کې شوی و.د مستسعد صاحب پلار د کابل د قلعه جواد د حضرت نورالمشائخ صاحب مرید او شاګرد و ،مستسعد صاحب په همدې علمي او متدینه کورنۍ کې وزیږېد او ستر شو نوځکه یې په د دین او علم مینې په رګونو کې ځای وموند او د شهادت تر نیتې یې د یوه رښتیني او جرأتمن مسلمان په حیث متعهدانه ژوند وکړ.

## د دیني او عصري زده کړو مرحله

شهید مستسعد لومړنۍ دیني ضروري زده کړې په خپل کور کې له خپل عالم پلار څخه پیل کړې،نوموړی لا ماشوم و چې په افغانستان کې د ثور کودتا وشوه وروسته شوروي تجاوزګرو په افغانستان برید وکړ او مسلح جهاد پیل شو، د شهید مستسعد کورنۍ هم له خپل پلرني ټاټوبي د پاکستان بلوچستان ته هجرت وکړ او د مسلم باغ د مهاجرینو په کمپ کې میشت شول.شهید مستسعد همدلته خپلو دیني او ورسره هم مهاله عصري زده کړو ته دوام ورکړ. صرف، نحو، فقه، عقائد، منطق او د نورو دیني علومو کتابونه یې تر ډېره حده ولوستل. په ۱۹۸۸میلادي کال کې د علم په تلاش د بلوچستان مرکز کوټې ښار ته لاړ او هلته یې په اسلامیه هایي سکول کې داخله واخیسته څلور کاله وروسته چې له دې لیسې فارغ شو نو یې د کوټې ښار په ختیځ کې د ګورنر موسی په نوم کالج کې د ادبیاتو په پوهنځي کې داخله واخیسته او دوه کاله یې همدلته خپلو زده کړو ته دوام ورکړ.

شهید مستسعد له عصري زده کړو سره هم مهال دیني زده کړې هم تعقیبولې او تر تکمیل درجې پورې یې دینې زده کړې د کوټې په شالدره مدرسه، تجویدالقرآن مدرسه او نورو بیلابیلو مدرسو کې ترسره کړې.په رسمي تحصیلي بهیر سربیره شهید مستسعد دعلمي پلټنې او مطالعې ځانګړې قریحه درلوده.پرلپسې یې ازادې مطالعې،لیکوالۍ او شاعرۍ ته ادامه ورکوله چې همدې هڅو د نوموړي پټ

استعدادونه راویښ کړل او هغه ته یې د علـم او معلومـاتو کـم سـاري برخـه ورنصـیب کړه.

د شهید مستسعد لوړ استعداد او د علم په لاره کې محنت او همـت لـه دې هـم اټکلولای شو چې هغه په مورنۍ ژبه پښتو سربیره په فـارسي، عـربي، اردو او انګلیسيـ ژبو پوهیدو او حتې په ځینو یادو ژبو یې شعر او نثر هم لیکلی شوای.

## د طالبانو له اسلامي تحریک سره پیوستون

په ۱۹۹۴ میلادي کال چې له ۱۳۷۳ هجري شمسي سره سمون خـوري هغـه مهـال چې په افغانستان کې د شر او فساد او داخلي ګډوډۍ د ورکولـو پـه مقصـد د طالبـانو اسلامي تحریک پاڅون کړی و ملا محمد حسین مستسعد خپلـې دینـي او عصرـي زده کړې پای تـه نـږدې کـړې وې. خونومـوړي خپـل د تعلـم سـفر نیمګړی پریښـود او د طالبانو له اسلامي تحریک سره وصل شو.

د اسلامي تحریک په ابتدائي وختونو کـې نومـوړي پـه نـورو بیلابیلـو جهـادي او اداري خدمتونو سربیره د مطبوعاتو په برخه کې هم خدمت پیل کـړ. د طلـوع افغـان ورځپاڼه چې له ډیرې مودې ځنډ وروسته د طالبانو د اسلامي تحریک له قیام سره هم مهال یو ځل بیا له چاپه راووته شهید مستسعد پکې د نورو جهادي قلموالـو تـر څنـګ خدمت کاوه او ددې وزینې او تاریخي ورځپاڼې له صفحو یـې هیوادوالـو تـه اشـعار او مقالې نشرولې.

د افغانستان د اسلامي امـارت مؤسـس مرحـوم امیرالمـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهد چې د ملا محمد حسین مستسعد عالي شخصیت او استعداد یې درک کـړی و نومـوړي تـه یـې د اسـلامي امـارت د تـاریخ د لیکلـو مسـؤلیت وسـپاره. مرحـوم امیرالمؤمنین شهید مستسعد ته متحـدالمال مکتـوب ورکـړ او د هغـه لـه لارې یـې د امارت ټول چارواکي او منسوبین په دې مأمور کړل چـې لـه شـهید مستسـعد صـاحب

سره د تاریخي معلوماتوپه شریکولو کې همکاري وکړي ترڅو د اسلامي امارت یو بشپړ او معیاري تاریخ ولیکل شي.

شهید مستسعد ددې کار په مقصد ډیرې هڅې او تلاشونه وکړل،ګڼ شمیر مرکې یې وکړې او ډیر معلومات یې راټول کړل، د ګڼ شمیر کتابونو پاڼې یې واړولې تر څو ( له راشده خلافته تر اسلامي امارته) د اسلامي واکمنۍ یو معتبر تاریخ مرتب او په هغه کې د دیني علومو د طالبانو نقش او تاریخي خدمات برجسته او نړیوالو ته وښيي.نوموړي ددې کتاب یوه برخه چې اوس چاپ شوې هم ده د امام اعظم رَحِمَهُ ٱللَّهُ د ژوندلیک څیړنې ته ځانګړې کړه. د نورو بیلابیلو مراحلو په اړه یې هم ډیر څه ولیکل چې تراوسه یې نهایي ترتیب او چاپ ته تیاري نه ده شوې.

## په اسلامي امارت کې بیلابیل وظائف

د اسلامي امارت د مجاهدینوپه لاس د کابل له فتحې وروسته د اسلامي امارت په لومړنۍ کابینه کې ملا محمد حسین مستسعد دعلومو د اکاډمۍ د رئیس په حیث وټاکل شو. دغه اداره چې د علمي او اکاډمیکو څیړنو مرکز بلل کیږي د شهید مستسعد له ذوق او استعداد سره جوړ منصب و چې نوموړي په کې په ډیر اخلاص او عالي روحیه علمي او څیړنیز خدمات سرته ورسول.

د نوموړي د ریاست په موده کې د علومو اکاډمۍ لخوا بیلابیل سمینارونه دائر شول چې شهید مستسعد هم په کې خپل تحقیقي ارزښتمن مقالات وړاندې کول.د علومو په اکاډمۍ کې د دندې په مهال د پوهاند رشاد، وتلي مؤرخ محمد ابراهیم عطایي او د هیواد له نورو تجربه کارو څیړونکو سره تعارف او ګډ کار د شهید مستسعد علمي ظرفیت ته نوره وده هم ورکړه او د نوموړي علمي او معلوماتي بوخڅه نوره هم غني شوه.

د علومو اکاډمۍ د رئیس په حیث له څه مودې دندې ترسره کولو وروسته شهید مستسعد د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د چارو د ادارې د لوی ریاست لومړی

مرستیال وټاکل شوچې په همدې مهمه اداره کې یې هم د قدر وړ خدمتونه ترسره کړل. وروسته نوموړی د اسلامي امارت د مالیې وزارت مرستیال وټاکل شو چې په افغانستان د امریکاد یرغل او اسلامي امارت د واکمنۍ د سقوط تر وخته یې په همدې منصب دنده ترسره کړه.

خو په دې ټولو موده کې نوموړي د یوه فعال او نوښتګر قلموال او شاعر په حیث همیشه مطبوعاتي او فرهنګي فعالیت هم ترسره کاوو.د اسلامي امارت په مطبوعاتو لکه ورځپاڼو، مجلو او او جریدو کې همیشه د نوموړي ارزښتمنې مقالې او اشعار چاپیدل چې د ځانګړې ادبي سبک او غني محتوا له اړخه یې د امارت په مطبوعاتو کې خاص ځای درلود.

## د امریکایي یرغل په وړاندې قلمي او مسلحانه جهاد

په ګران افغانستان د امریکایي تجاوزګرو له یرغل وروسته ملا محمد حسین مستسعد د ګڼو نورو مجاهدینو تر څنګ مسلحانه او ورسره په څنګ کې قلمي جهاد پیل کړ.نوموړي په نورو جهادي هڅو سربیره د نورو ملګرو سره یوځای د امریکایانو په مراکزو د فدایي حملو ترتیبات پیل کړل چې په دې لړ کې یې په اشغالګر بیا بیا د فدایي حملو رهبري ترسره کړه چې په کې دښمن ته درانه تلفات ورسیدل. شهید مستسعد د حالاتو له نامساعدتیا سره سره د هیواد مختلفو سیمو ته سفرونه کول،جهادي عملیات یې طراحي کول او خلک یې د امریکا په وړاندې قیام ته دعوت کول.د یرغل په هماغو لومړیو کلونوکې په داسې حال کې چې د امریکایي طاغوت په وړاندې د قلم او مطبوعاتو ژبې ګونګې وې او د هیواد زیاتره قلموال د ډالرو او امریکا د مزدورۍ په مزو اوښتي وو شهید مستسعد له خپو تنو نورو قلموالو لکه ملا عبدالرحیم ثاقب، مرحوم انجنیر عبدالله ګل ریان،ملا عبدالحی مطمئن، ملا سردار محمد شکیب او ځینو نورو با احساسه قلموالو سره په ګډه د عزم په نوم مجله را وایسته چې د هغې له لارې یې د امریکایي طاغوت په وړاندې د قیام او مسلح جهاد غږ پورته کړ.

وروسته چې دغه مجله د سختو شرایطو له امله وتړل شوه او ځینې مسؤلین یې ونیول شول. شهید مستسعد د توکل په نوم یوه بله مجله را وایسته چې زیاتره لیکنې یې خپله دده لخوا په بیلابیلو مستعارو نومونو لیکل کیدلې. شهید مستسعد په دې ډول د مسلح جهاد تر څنګ قلمي جهاد ته هم تر هغه مهاله ادامه ورکړه ترڅو د جهادي وظایفو په لړ کې د۱۴۲۸هق ،د رجب پر۹مه نیټه چي د۲۰۰۷ میلادي دجولایې له ۲۲ مې سره سمون خوري دزابل ولایت دشملزوولسوالۍ دابازوپه کلي کې دامریکایې یرغلګروسره دمخامخ پنځه ساعته نښتي په پایله کې له ۱۲ تنو نورو مجاهدینو سره یوځای دشهادت لوړمقام ته ورسید.اناالله واناالیه راجعون

## د شهید مستسعد اند او فن

شهید ملا محمد حسین مستسعددعالي ارمان ،روڼ فکر،ټینګ عزم ،غښتلي استعداد،پراخي مطالعې اوژوري پوهي څښتن مدبرشخصیت و. په پښتو،دري ،عربي ،اردو او انګریزي ژبو پوهیده.که له یوې خواد دیني اوعصري علومو عالم و،نو بل طرف ته بیا یو هڅاند مؤرخ، تکړه لیکوال، مصنف، څېړونکی اوښه شاعرهم و. په بیلابیلوفورمونوکي یې ازاد او قافیه وال شعرونه لیکلي دي.په ګڼ شمیر سیاسي ،تاریخي اواجتماعي مقالې،ادبي اوطنزي لیکني اولنډې کیسې یې لیکلي دي چې د کتابونوپه برخه کې یې په ځانګړې توګه لاندي چاپ اوناچاپ اثاریادولای شو.

## چاپ آثار :

- دامام اعظم ابوحنیفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ دژوندانه بیلابېل اړخونه
- دسنګرطالبه مبارکۍ ته به درځم
- شپېلۍ مي مه ماتوئ (شعري ټولګه)
- دعلامه رشادپر«دتودو وینو حمام افغانستان شو»(شعري غونډ) سریزه اوزیاتونه

**ناچاپ آثار:**

- ✓ طالبان په افغانستان کي له راشده خلافته تراسلامي امارته
- ✓ اسلامي خلافت
- ✓ اصحاب صفه
- ✓ ژوندۍ خاطرې
- ✓ اسلام اونوی ساینس
- ✓ متفرقي مقالې
- ✓ لنډي کيسې
- ✓ اويوه شعري مجموعه

شهيد ملا محمد حسين د شعر ځانګړی له سوز او ګداز ډک سبک درلود چې په هر مخاطب يې اغيز پرېباسه. د هغه له غريو نيولې زړه راپورته شوې چيغې زمونږ د جهادي شاعرۍ يو بې بيلګې برخه ده چې د امريکايي يرغل د لومړيو شپو ورځو ډير ترخه يادونه په کې خوندي دي. دلته د نوموړي د سوزنده اشعارو له جملې درسره يو شعر شريکوو چې د امريکايي يرغل په عکس العمل کې يې ليکلی دی.

**دبلال کړيکه**

اهـريمن خـوښ دی چـې نـن زمـا ښـکلی جـوهر رانـه وړي
واک مي په زور، توره پـه فريـب، ديـن پـه منـتر رانـه وړي

د سره ښـــامار لـــه شرميـــدلې مـــاتې ونـــه شرمېـــد
کفـــر يوشـــوی دی اســـلام مـــو پـــه اشر رانـــه وړي

لـــه واتيکـــان نـــه راســـتون شـــوي يـــو زاړه لاس پـــوځي
چاتـــه ويـــل : د حســـين سر بـــه نـــن شـــمر رانـــه وړي

منحـوس صـلیب مـو کـور او کلـی نـن پـه سر اخیسـتی
زمـــوږ عقیـــده د مســـیحا د ژونـــد نظـــر رانـــه وړي

د بـــدلمنو و ســـینګارته یـــی کورســـونه جـــوړکړل
حیـــاد پیغلـــو مـــو ځپـــي او شـــال د سر رانـــه وړي

څـــومره احمـــق دی زمـــا لـــه دینـــه نـــاخبره غلـــیم
د دیـــن پـــه تـــور د پـــلار نیکـــه ښـــکلی هـــنر رانـــه وړي

غلـیم لـه وختـه دې تـه غلـی دی چـې لاس یـی بـر شي
پـه نـوم د سـولې راځـي زمـا د لاس خنجـر رانـه وړي

د آزادۍ طلایـــــي وړانګـــــو ژرســـــئ وځلیـــــږئ !
د تـــورو شـــپو لښـــکر راغلـــی روڼ ســـحر رانـــه وړي

د بابـــا تـــوري وچلیـــږه ایمـــاني جګـــړه ده
د پـــت کیســـه ده پخـــوانی نـــوم د تـــبر رانـــه وړي

د بـــلال کړیکـــه د درد نـــه ده د ایمـــان نښـــه ده
احـــد احـــد یـــې عقیـــده اثـــر د شر رانـــه وړي

د احـــرار چیغـــې د هیـــواد پـــه غـــرو کـــې و ازانګـــه
غلـیم و تیښـتې تـه چمتـو دی اوس روغ سر رانـه وړي

❊ ❊ ❊

## د شهيد قاري فيض محمد سجاد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ژوند ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

**ښکلي ښکلي خلک**

دنيا د ازمېيښت ډگر دی، الله تعالی بې شميره مخلوقات پيـدا کـړي، چـې ددې مخلوقاتو له جملې مهتم بالشأن يي مکلف مخلـوق يـا انسـانان دي. دانسـان مکلفيـت دادی چې دالله تعالی له احکامو سره موافق ژوند وکړي، ترڅو دالله تعالی رضاء ترلاسـه کړي او دالله تعالی محب او محبوب وگرځي .

د نبوي احاديثو له مخې د انسانانو ترمنځ غوره هغه څوک دی چې دالله تعالی لـه مخلوق سره ښه او له ديانته ډکه رويه ولـري ،امـام بيهقـي رَحِمَهُ ٱللَّهُ يـو حـديث روايـت کړی چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : الخلق عيال الله فاحـب الخلـق الـی الله مـن احسن الی عياله .

خلک دالله تعالی داولاد په منزله دي، په خلکو کـې الله تعـالی تـه محبـوب هغـه څوک دی چې د الله تعالی له عيال / خلکو سره ښه / نيکي کوونکی وي .

ددې حديث په استناد کوم څوک چې دعامو مسلمانانو پـه قضـاوت کـې ښـه بلـل کيږي، هرڅوک يي صفت کوی او دنيکۍ يادونه يي کـوي ، څـوک تـرې شـکايت او بـده خاطره نلري، بلکې خپل او پردي ټول تـرې خوشـاله وي، دلـوړ نبـوي حـديث پـه اسـتناد دداسې کس په اړه ويلای شو، چې الله تعالی تـه مقبـول او قريـب انسـان دی، ځکـه دالله تعالی مخلوق چې له چا څخه راضي شو، نوهمدا دالله تعالی دراضي کيدلو په معنی دی.

په راروانو کرښو کې چې موږ دکوم چا په اړه بحـث کـوو، دا هـم دهغـو بختـورو انسانانو له جملې څخه دی، چې الله تعالی ورباندې لوړيـاد شـوی صـفت پيـرزو کـړی

دی، قاري فیض محمدسجاد دجهادي مخکښانو په ډله کې یو دهغو کسانو لـه جملـې څخه دی، چې هیڅوک ترې بده خاطره نلري. دکـورنۍ غـړي یـې، دجهـاد او مدرسـې ملگري یې، دزندان او سفر انډیوالان یې او حتی له فکري لحاظه مخالف کسان یې ټول په ښه خوله یادوي. ټول یې یوازې دحسـن خلـق یادونـه کـوي، هغـه حسـن خلـق چـې داسلام له نظره د سړیتوب او مروت معیار بلل کیږي، د اسلام له نظره دانسان تول پـه همدې ترازو کیږي هغه چـې رسـول الله ﷺ یـې پـه اړه فرمـایي : ولا حسـب کحسن الخلق . .د نیکو اخلاقو پـه شـان بـل شرف یـا دافتخـار وړ شـی نشـته . . رواه البیهقي .

## قاري فیض محمد سجاد

قاري فـیض محمـد سـجاد د ایمانـداد زوی د مـلا عبـدالوهاب لمسـی پـه قـوم پښتون/ اڅکزی په ۱۳۸۵ هـ ق کال چې له ۱۹٦۵ میلادي سره سمون خـوري د کنـدهار ولایت د تخته پُل ولسوالی په ملاید کلي کې دنیا ته سترگې وغړولې .

په کوچنیوالي کې دمور او پلار په خدمت او د کښت او مالدارۍ په چارو کې له خپل والد صاحب سره مصروف و، چې یو څه ستر شو، نودیني زده کړې یې پیـل کـړې، ابتدائي تعلیم یي په خپل اصلي ټاټوبي کې ترسره کـړ او وروسـته یـې ددینـي علـم پـه حصول پسې د افغانستان او پاکستان مختلفو سیمو ته سفر وکړ .

ډیری دیني کتابونه یي دپاکستان په کوټه، پیښور او لاهور کې په مختلفـو دینـي مدارسو کې ولوستل، د قرآن کریم دقرأت او تجوید علم یې په لاهور کـې ترلاسـه کـړ، کله چې دکمونیزم په خلاف جهاد بریالی شو او هیواد لـه کمونیسـتانو ازاد شـو قـاري فیض محمد سجاد صاحب د کندهار په خـاکریز ولسـوالۍ کـې دینـي زده کـړې پیـل کړې، د علمي سفر په دې ټوله دوره کې نوموړي مروج فنون خـلاص کـړل خـو دنبـوي احادیثو دوره یې لا نه وه کړې چې په افغانستان کې دطالبانو اسلامي پاڅون پیـل شـو، چې په دې سره له نوموړي څخه خپلې دیني زده کړې په نیمایي کې پاته شوې .

## جهاد او په اسلامي امارت کې خدمتونه

هغه مهال چې قاري فيض محمد صاحب نوی ځوان و په افغانستان کې دکمونيزم په خلاف مسلح جهاد روان و ، نوموړي په تانده ځوانۍ کې لومړی ځل په کندهار کې دکمونيستانو په خلاف په مختلفو جګړو کې شرکت وکړ، له دې جملې يوه مهمه جګړه د زابل او کندهار دلويې لارې په اوږدو کې د کمونيست رژيم دجبار مليشې سره تاريخي جګړه وه چې په نتيجه کې يې دغه مليشه په بشپړ ډول له منځه لاړه ، قاري صاحب په دې جګړه کې ديوه فعال مجاهد په حيث برخوال و .

د کمونيستي نظام له سقوط وروسته قاري صاحب وسله په ځمکه کيښوده او دکندهار په خاکريز کې يي ديني زده کړې پيل کړې، مګر کله چې په تنظيمي دوره کې فساد او ګډوډي اوج ته ورسيده او واقعي مجاهدين يې د ټوپکي مفسدينو په خلاف پاڅون ته اړ کړل ، قاري صاحب دهغو محدودو مجاهدينو له جملې څخه و، چې دکندهار په ميوند کې يې په لومړي ځل دملامحمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې پاڅون وکړ. دطالبانو داسلامي تحريک بنسټ يي کيښود او په تدريج سره يې کندهار ولايت اووروسته درست افغانستان د داړه مارانو او پاټکيانو له منګولو خلاص کړ .

د کندهار په ژړۍ کې چې د صالح قومندان په نامه ديوه محلي مفسد په خلاف طالبانو لومړنی جنګ وکړ قاري صاحب په کې برخوال و، چې د قومندان صالح له تيښتې وروسته په همدې سيمه کې د طالبانو د محلي مرکز مشري قاري صاحب ته وسپارل شوه، کله چې طالبانو دکندهار باغ پُل سيمه ونيوله، د باغ پُل په سيمه کې د جهادي طالبانو د مرکز مسؤليت ورته وسپارل شو .

د کندهار له فتحې وروسته چې طالبانو زابل او غزني ولايات هم ونيول او دميدان وردګو ولايت ته ورسيدل، دغه مهال قاری فيض محمد سجاد د ملامحمد عمر مجاهد په امر د ۳۲ مجاهدينو په مشري ميدان وردګو ولايت ته وليږل شو، په دې سيمه کې نوموړي نه يوازې د ميدان ښار او دکابل دچهاراسياب په جبهاتوکې په

جگړو کې برخه اخیسته بلکې څه موده یي د میدان وردگو ولایت د سیداباد ولسوالۍ د ولسوال په حیث هم خدمت ترسره کړ .

## د سید اباد مثالي ولسوال

قاري فیض محمد صاحب په ۱۴۱٦ هـ ق کال کې د ۸ میاشتو لپاره د وردگو ولایت دسیداباد دولسوال په حیث پاته شو ، خو په دې ۸ میاشتو کې یې هلته داسې کردار ترسره کړ ، چې تراوسه یې نیک یادونه پاته دي .

دا هغه مرحله وه چې افغانستان له سختې گډوډۍ او بې نظمۍ څخه د راوتلو په حالت کې و، دطالبانو تحریک چې نوی یې د سیاست او حکومت دارۍ په عرصه گام ایښی و، د اوس غوندې منظم نه و او نه یي تشکیلات دومره چوکاټ ته لویدلي و، خو له ټولو مشکلاتو سره سره قاري صاحب په سیداباد کې دعدل او انصاف یوه مثالي اداره رامنځته کړه، د عام اولس داسې رضایت او اعتماد یې تر لاسه کړ، چې تراوسه پورې دهمدې سیمو اولس په خورا اخلاص او کلک اعتماد دخپلو طالبانو وروڼو ترڅنگ ولاړ دي .

مولوي حیات الله چې هغه مهال له قاري صاحب سره یوځای اوسیدو، وایي چې دقاري صاحب د ولسوالۍ په وخت کې د قوموندان مسلم په نامه دحزب اسلامي یو قوموندان چې پخوا دطالبانو مخالف پاته شوی و، دنوموړي دښې گوزارې له امله په خپله سیمه کې ازاد اوسیدو، دغه راز یې نه په یاد کیږي چې قاري صاحب دې کوم څوک که څه هم مخالف به و وهلی، توهین کړی او یا هم بې آبه کړی وي او حتی خپلو هغه ملگرو ته یې عتاب ورکاوو چې له چا سره به یې بد چلند کړی و .

مولوي حیات الله وایي یو ورځ زه او ملا فضل باري د سیداباد یوه قوموندان ته چې پخوا له موږ سره مخالف و ورغلو او ورته ومو ویل چې موږ ته راپور راغلی چې تا دمجاهدینو موټر او نور وسائل پټ کړي دي ، چې باید موږ ته یې راوسپارې .

كله چې موږ بيرته راتلو نو دغه قومندان قاري صاحب ته راغلى و او دغـه كيسه يي ورته كړې وه ، كله چې موږ راغلو قاري صاحب ډير خپه و او مـوږ تـه يـې خوشـكې وكړې ، چې تاسو ولې په خپل سر داسې غلـط كارونـه كـوئ ، تاسـو كشرـان پـرون لـه مدرسو څخه راپورته شوئ، الله تعالى يو فرصت دركړ اوس نه مجاهد گورئ نه مشر او په بې احترامۍ ورسره حسابونه كوئ، تاسو دغه پخواني مجاهـدين او قومنـدانان بايـد وپيژنئ ، دوى داسلام لپاره دومره ستر خدمت كړى چې مثال يي نشـته، دوى د خپـل همت او ايمان په زور د شوروي غوندې خداى دښمنه طاغوت تـه شكسـت وركـړى، د دوى قدر او منزلت بايد وپيژنئ ، له دوى سره كه موټر وي ، خو په خپل غيرت بـه يـې په غنيمت كې گټلى وي ، ستاسو څه مجبوريـت دى چـې پـه خپـل سر لـه خلكـو سره حسابونه كوئ .

مولوي حيات الله وايي د قومندان مسلم په نوم يو قومندان چـې پخـوا دطالبـانو سخت مخالف وو او اوس بيا دكرزي په حكومت كې دسيداباد ولسوال دى هغه وخت دقاري صاحب دنيک چلند څخه دومره متاثره شوى و ، چې نور خلک به يـې دطالبـانو صف ته دعوتول او حتى د وردگو په جلگه ولسوالۍ كې يې په يوه غونډه كې خلكـو تـه دطالبانو په پلوۍ تقرير وكړ .

د قاري صاحب د ښې حكومت دارۍ يـو ښـه مثـال دافغانسـتان دوتـلي ليكـوال احسان الله آرينزي هغه ليكنه ده چې په ۱۳۷۴ هـ ش كال د حوت په ۲۱ مه د شريعـت اونيزې په پرلپسې ۱۲ مه گڼه كې چاپ شوې ، ددې ليكنې عنـوان دى ( دسـيداباد پـه شرعي محكمه كې ديوې حقوقي دعوى خلاصول ) د احسان الله آرينزي پلار په سيداباد كې له حاجي خليل نومي كس څخه يوچارک ځمكه پخوا اخيستي خـو وروسـته حـاجي خليل دتنظيمي بالادستي له امله بيرته ترې گرځولې او پوره لس كاله يې په ظلم كرلـې ريبلې ده، كله چې په سيداباد كې قاري فيض محمد ولسوال شوى احسـان الله آريـنـزي خپل شكايت قاري صاحب ته كړى او هغه داسنادو دليدلو ، پوښـتنو او تصـفيې څخـه

وروسته دمحکمې له لارې په څو ورځو کې دعوه حل او فصل کړې او ځمکه يې له لس کلن غصب وروسته بيرته خپل اصلي مالک ته سپارلې .

دا پيښه وتلي ليکوال احسان الله آرينزي ډېره په دلچسپه بڼه بيان کړې، قاري صاحب يې يو آرام سړی بللی چې دعارضينو خبرې يې په ډېر حوصله ترپايه اوريدې، نوموړی په پای کې وايي: دلته بايد دا په ډاگه کړم چې دسيداباد ولسوالي دطالبانو په وخت کې له څوکاله رکود وروسته بيا فعاله شوه، که څه هم په شعباتو کې قالينې ، ښکلي ميزونه ، موبل او فرنيچر موجود نه وو، خو ډېره تقوی موجوده وه، ما دخپلې دعوی په جريان کې په سلگونو کسان هلته وليدل چې دخپلو کارونو داجراء يا دخپلو حقوقي او جزائي دعواگانو د حل او فصل لپاره په شعباتو کې گرځيدل که څه هم دکارونو اجراء وخت نيوه او زيات تگ راتگ خلک پريشانه کوي ، خو هيچا د دوه افغانيو د رشوت خبره راته ونه کړه ، له مراجعينو سره دمامورينو پيش آمد ښه او دواسطې ، پيسو او زور قصه بيخي ختمه شوې وه .

## د جهادي مدرسې مهتمم

د وردگو ولايت په سيدابادکې له ۸ مياشتې خدمت څخه وروسته د عاليقدراميرالمؤمنين په امر قاري فيض محمد صاحب کندهار ته راوغوښتل شو، مولوي حيات الله چې دصحنې شاهد دی وايي په کومه ورځ چې قاري صاحب له سيداباد څخه روانيدو، نو د ددې سيمې سپين ږيرو او مشرانو د ډېر محبت له امله وړپسې ژړل ، خو دمشرتابه امر و چې دغه پاک حاکم خپل رعيت د اخلاص له اوښکو سره پريښود او کندهار ته لاړ، قاري صاحب په کندهار کې څه موده د باغ پُل په سيمه کې د مظهرالعلوم مدرسې سرپرستي وکړه او کله چې د کندهار ستره جهادي مدرسه تاسيس شوه، قاري صاحب ددې مدرسې د مهتمم په حيث وټاکل شو، چې دامريکايي يرغل ترمهاله يې څلورکاله همدې دندې ته ادامه ورکړه .

د کندهار جهادي مدرسه يوه تعليمي /جهادي اداره وه په دې مدرسه کې هغه طالبان اوسيدل، چې په عادي حالاتو کې يې ديني درسونه ويل، خو دضرورت په وخت کې د جګړې لومړيو کرښو ته تلل .

قاري فيض محمد سجاد صاحب ددې مدرسي عمومي مشر او مهتمم و. نوموړی دمدرسې د چارو په سمبالښت سربيره دکال په اوړدو کې جهادي کرښو ته هم تلو، په دې لړ کې د کابل دشمال د جنګي کرښو سربيره په کندز ، تخار او سمنګانوکې نوموړي دخپلې مدرسې دطالبانو په مشرۍ جهادي وظيفه ترسره کړې ده.

په کندهار کې د جهادي مدرسې او نورو اړوند مدارسو دطالبانوجهادي مشري يوه مهمه او سخته وظيفه وه چې قاري صاحب په ډير ښه ډول اجراء کړه، نوموړی د خپل سرشار اخلاص، تقوی او حسن تعامل په واسطه توانيدلی و، چې د څلورو کلونو په اوږدو کې دمدرسې د طالبانو چې شمير يې د ۱۷۰۰ او ۲۵۰۰ په منځ کې چليدو، ښه رهنمايي وکړي، ديني زده کړو ته يې متوجه کړي او د مدرسې نظم برقرار وساتي، هغه طالبان چې په دې موده کې په يادو مدارسو کې پاته شوي له قاري صاحب څخه يوازې ښې خاطرې لري .

د جهادي مدرسې د مشرتوب سربيره نوموړي له اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد سره هم خورا نږدې تعلقات درلودل، امير المؤمنين صاحب په نوموړي خورا زيات باور درلود او دده استعداد يې درک کړی و، ملاخليل احمد چې هغه مهال دقاري صاحب ملګری و، وايي چې اکثره وخت مازديګر يې ملامحمد عمر مجاهد ليد چې په موټر کې به راغی، قاري صاحب به يې له ځان سره واخيست او دماښام له لمانځه وروسته به يې واپس راووړ، چې همدا له اميرالمؤمنين سره دنوموړی په هميشني او نږدې مصاحبت دلالت کوي .

**د شمال محاصره او زنداني کيدل:** هغه مهال چې امريکايي يرغلګرو په افغانستان يرغل ترسره کاوو، قاري صاحب فيض محمد له خپلوجهادي ملګرو سره دخپل اسلامي هيواد ددفاع په خاطر دافغانستان شمال ته تللی و او په تخار ولايت کې

یې جهادي دنده ترسره کوله ، نوموړی له خپلو ملګرو سره په کندز کې محاصره پاته شو، چې وروسته له دوستم سره دموافقې په نتیجه کې د نورو طالبانو غونډې ورسره وعده وشوه چې کندهار ته درسیدلو لار به ورکول کیږي .

خو دوستم دخپل تاریخي غدر په لړ کې کله چې طالبان خلع سلاح کړل ، کانتینرو ته یي واچول او د شبرغان او بلخ په خوا یي انتقال کړل، قاري فیض محمد صاحب په دې مرحله کې دهغو کسانو له جملې څخه و چې شبرغان ته په لاره په کانتینر کې ژوندی پاته شوی و، چې وروسته دشبرغان زندان ته واچول شو، د شبرغان په زندان کې چې کله د دوستم کسانو او سي آی اې د مامورینو لخوا دطالبانو دمشرانو پلټنه پیل شوه، قاري صاحب هم دطالبانو دمشر په صفت وپیژندل شو چې امریکایانو لومړی دکندهار د هوایي ډګر کرغیړن زندان او ورپسې د کیوبا د ګوانتانامو زندان ته انتقال کړ .

په ګوانتانامو زندان کې له یو نیم کال تیرولو وروسته نوموړی دهغو لومړنیو بندیانو له جملې څخه و چې راخلاص شو، دکیوبا په زندان کې نوموړي ۲۰ سیپارې قرانکریم حفظ کړ چې پاتې لس سیپارې یي له خلاصون څخه وروسته پوره کړ او په دې توګه یې دقرانکریم د حفظ ویاړ ترلاسه کړ .

## دامریکا خلاف جهاد او شهادت یې

د ګوانتانامو له زندان څخه له راخلاصیدووروسته نوموړي یوځل بیا دامریکا په خلاف مسلح جهاد پیل کړ. دامریکایي یرغل په دریم کال دخپلو هغومجاهدینو په مشرۍ چې دجهادي مدرسې له وختو یي ملګري وو دکندهار په معروف ولسوالۍ کې یې جهادي فعالیت پیل کړ، وروسته یې په ارغسان ، شاولیکوټ او میانشین ولسوالیو کې جهادي فعالیت ته ادامه ورکړه په دې مهال نوموړی ډیره موده د جنوب او جنوب غرب حوزو دعمومي نظامي کمیسیون دمشرـ په حیث هم دنده اجراء کړه ، چې دجهادي کارونو په نظم او ترتیب کې یې مهم رول درلود .

دکندهار ولايت په لوړو يادو ولسواليو کې نوموړي ديوه مشرـ جهـادي رهـبر او لارښود په حيث خورا ډير خدمتونه ترسره کړل، دمجاهدينو جهادي صفوف يي مـنظم کړل او ګڼ شمير مجاهدين يې مؤثر فعاليت ته اماده کـړل، پـه شـاوليکوټ کـې لـه ۲ کالـه خـدمت وروسـته نومـوړی داسـلامي امـارت دمشرـتابه لخـوا دروزګـان ولايـت دجهادي مسؤل په حيث وټاکل شو. نوموړي په روزګان کې هم ټولو جهادي سيمو تـه سفرونه وکړل، جهادي تشکيلات يي منظم کړل ، خو دهمدې جهادي خدمت پـه تـرڅ کې يي د ۱۴۲۸ هـ ق کال د رجب دمياشـتې پـه ۱۱ مـه نيټـه د چهارشـنبې پـه شـپه د شهادت ارمان تـرسره شـو. پـه دې نيټـه نومـوړي د روزګـان ولايـت دخـاص روزګـان ولسوالۍ په شالۍ ناوه سيمه کې دماښام د لمانځه له جماعت وروسته خپلو ملګرو ته ديني وعظ کاوو، چې ددښمن په هوايي ناځاپي بريد کې په نښه شـو او دشـهادت لـوړ مقام ته ورسيد. انا لله وانا اليه راجعون

قاري صاحب پنځه زامن تر شا پرې ايښي چې نومونه يي محمد ، احمد ، حسـن ، عبدالرحمن او کوچنی سعد دي، سعد دنوموړي دشهادت نـه څـه مـوده مخکـې پيـدا شو، نوموړي د ټيلفون له لارې خپلې کورنۍ ته احوال ورکړ چې په نوي پيدا شوي زوی يي سعد نوم کيږدي ، خو قاري صاحب خپل دغه کشری زوی په دنيا کې ونه ليد ځکه نوموړی په همدې جهادي سفر کې شهيد شو ، الله تعالی دې وکړي چې په عقبـی کـې يې په جنت کې سترګې پرې يخې شي .

## د قاري فيض محمدسجاد صاحب د شخصيت په اړه

وړاندې وويل شـول، چـې قـاري صـاحب دخپلـو ملګـرو او متعلقينـو تـرمنځ يـو غيرمتنازع شخص دی، شخصا ما يي تراوسه له کوم چا څخه بده خاطره نه ده اوريدلې ، ټول ملګري يې دښه شخصيت ، ښه اخلاقو او ديانت صفت کوي .

دديني علومو استاد مولوي حيات الله له قاري صاحب سره ډير وخت نږدې پاتـه شوی، نوموړی وايي: قاري صاحب يو عجب ديندار سړی و، مجاهد هـم و، دطريقـت بيعت يي هم کړی و، تبليغ يي هم نه هيراوو په تبليغي دعوت کې بـه يـې دری ورځـې

یاځه زیات وخت لګاوو حتی کله ناکله تر څلورو میاشتو په تبلیغ کې تلو، دیني علم یې هم نه هیراوو، حتی دسفر او جهاد په حالت کې به ورسره یو بکس و چې کتابونه به په کې و او له فرصت نه په استفاده یې مطالعه کوله، قاري صاحب به ویل چې داسلام پـه ټولو شعبو کې باید عملا کار وکړو، اسلام باید یوازې په جهاد یا علـم کـې منحصر۔ نـه کړو، بلکې ټولې شعبې په خپل ځای باید مهمې وبولو او خدمت په کې وکړو .

مولوي حیات الله وایي د قاري صاحب یو بل بارز صفت زهد و، له دنیایي عیش و نوش سره یې نه لګیده، ډیرې زیاتې نفـلي روژې یـې نیـولې، کلـه بـه چـې لـه جهـادي مدرسې څخه جهادته تلو نو امارت ورته ګڼ شمیر موټران ورکول ، چې ده به پـه جهـاد کې ترې استفاده کوله، مګر کله به چې بیرته راغی، ټول موټر بـه یـې اړونـده ادارو تـه وسپارل او حتی ځانته یې یو موټر هم نه پریښود، پـه مدرسـه کـې یـې دعـادي طالـب غوندې ساده ژوند کاوو .

د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې دهرات پخوانی والي او دفوائـد عـامې پخـوانی وزیر مولوي احمدالله مطیع وایي : قاري صاحب له الله تعالی څخه ویریـدونکی انسـان و، دیانت یي ډیر ښه و، په خپلو وظایفو کې زحمت کش او نـه سـتړی کیـدونکی وو او که رښتیا ووایم بې جوړې سړی و .

ملاخلیل احمد وایي : په یادیږي یې کله به مو چې په موټر کې سـفر کـاو، قـاري صاحب به په ډیر خواږه غږ تلاوت کاوو او دحضر په مهال هم دقرانکریم دتلاوت ډیـر پایبند و .

مولوي حیات الله چې دامریکا خلاف جهاد کې له قاري صـاحب سره نـږدې پاتـه شوی دی وایي : قاري صاحب د جهادي ژوند یو ځانګړی پروګرام درلـود، ملګـري یـې عبث وخت تیرولو او بې حاصله ګپ شپ ته نه پریښودل ، دورځې بـه یـې دری وختـه دیني وعظ او بیان کاوو او دابه یي دملګرو ترمنځ د یوه ځانګړي ترتیب له مخې تقسیم کړی و، د سهار او ماښام مسنون اذکار( أذکار الصباح و المساء) یې په ملګرو زده کول او عملي کول، که به مجاهدین ملګري کومې خوا ته روان و، اوپه لوړځـای بـه ختـل نـو

قاري صاحب به غږ کړ، هلئ دلوړ ختلو ذکر الله اکبر شروع کړئ او که به په کوم ځای ښکته کیدو نو غږ به یي کړ د ښکته کیدلو ذکر سبحان الله وایاست .

دغه راز د ډوډۍ د پیل او پای، مجلس، خوب او هرډول حالاتو اذکار یي همیشنی معمول و، او په ملګرو یي هم زده کول، که په مجاهدینو کې د چا سم قرأت نه و زده ، نو مجبورول یي چې له نورو قاریانو ملګرو څخه قرانکریم سم زده کړی، لمونځ ورته تیر کړي ترڅو یي عبادت سم شي .

خپلو مجاهدینو ملګرو ته یې په همیشنی مذاکره کې د ژوند د هر اړخ آداب ورښودل، دډوډۍ اداب ، دمجلس اداب ، له مشرانو او کشرانوسره دګوزارې آداب او داسې نور مسنون آداب یې ملګرو ته ورښودل اوعملي اړخ ته یي دومره متوجه و ، که به چا په چپ لاس ډوډۍ پورته کړه سمدستې یې وربانديې غږ کاوو چې د ډوډۍ خوړلو مسنونه طریقه په ښي لاس خوراک دی .

د قاري صاحب دغه اصلاحي پروګرام په ډیره مسلکي طریقه اود نیک اخلاقۍ په چوکاټ کې و چې په هیچا نه بوج کیده ، بلکې اکثره داسې علماء او مدرسین چې له ده څخه په علم او عمر کې زیات و، له ده څخه یې زده کړه کوله ، دده په ملګرتیا یي فخر کاوو، ځکه دقاري صاحب جهادي ملګرتیا یوازې جهاد نه و، بلکې یو اصلاحي پروګرام و. که به چا وخت ورسره تیر کړ نو له جهادنه سوا به یې د شخصیت داصلاح په برخه کې ډیره ګټه کړې وه .

د قاري صاحب دجهادي ملګرو شمیر خورا زیات و، خو د هریوه یي نه یوازې نوم زده وو بلکې د کورنۍ د غړو ، والدینو او شخصي ژوند پوښتنه یي هم ترې کوله که به کوم ملګری له کور څخه سنګر ته راستون شو، قاري صاحب به د یوه مشفق قریب غوندې د ټولو خپلوانو پوښتنې ترې کولې ، چې دا ډول صمیمیت اوس په خورا لږو خلکو کې لیدل کیږي .

مولوي حیات الله صاحب دقاري صاحب د ژوند او شخصیت په اړه خورا جالبې خاطرې لري، د لیکنې داوږدیدو له امله به پـه دې کفایـت وکـړو، چـې قـاري صـاحب دنبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دطریقې مطابقت پـه جهـاد کـې پـه اعمالـو او عبـاداتو سره جنګ کولو ته ډیره توجه درلوده، نوموړي به چـې د وسلو اومهماتـو د اخیستلو لپـاره دامارت مشرتابه ته د پیسو پیشـنهاد کـاوو، نـو د وسلو ترڅنـګ بـه پـه لسـت کـې د مجاهدینو د مسواکونو مصرف هم لیکل شوی و، ځکه نوموړي به پـه جبهـه کـې خـورا ډیر مسواکونه له ځان سره ساتل ترڅو مجاهدین له دغه مسنون عمل څخه بې برخې نه شي .

باور وکړئ ما ( لیکوال) چې کلـه دشـهید قـاري صـاحب فـیض محمـد سـجاد د شخصیت په اړه دده دملګرو څخه ځیني خاطرې واورېدې او بیامې دلیکلو په مهال له ځانه سره لحاظ کړې، نو بې اختیاره مـې لـه سـترګو اوښـکې وبهېـدې ،دا پیښـه ماتـه دقاري صاحب د دیانت یوه ځانګړتیاښکاره شوه، ځکه زه خپل دلیکوالۍ پـه ژونـد کـې تراوسه له داسې پیښې سره نه وم مخ شوی ، سبحان الله ، د فتنوپه دې عصر کې دومره دیانت ساتل ، چې تش یاد یې په یوه سخت زړه باندې اثر کوي او اوښکې ترې رابیلوي ، خو بیا مې له ځان سره وویل

این سعادت به زور بازو نیست
تانبخـشد خـدای بخشـــنده

راځئ دعاء وکړو ، چې متعال رب تعالی دې د رحمت دخپلوبې پایه خزانو څخـه په موږ ټولو مجاهدینو باندې هم رحم وکړي ، اخلاص ، نیک اخلاق، دیانت او صبر مـو دې الله تعالی نصیب کړي ، ترڅو د دنیا او اخرت فائزین شو .

رحمه الله تعالی

❋ ❋ ❋

## د شهید ملا عبدالمنان احمد ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه: قاري سعید

د اسلام تاریخ له زړه وړونکو صحنو مالامال دی. د تاریخ د جالبو صحنو له جملې یو هم د هغو تنکیو زلمیانو او کم عمره قائدینو داستانونه دي چې په کم عمر یې داسلام لپاره ستر ستر خدمات کړي او تر خپل قامت لوړ د میړانې او ویاړ داستانونه یې تر شا پرې ایښي.

که زموږ پخوانی تاریخ په دې برخه کې د تنکیو اتلانو معاذ او معوذ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمَا او د محمد بن قاسم رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شان د ځوانو قائدینو بیلګې لري نو معاصر او نوی تاریخ مو هم په دې برخه کې خوار نه دی.دا خبره د لمر غوندې روښانه ده چې د امریکایي جهاني طاغوت په خلاف زموږ د سرلوړي جهاد ډېر بوج زموږ د مسلمان ملت ځوانانو او تنکیو زلمکیانو په اوږه واخیست. همدوی وو چې خپلې ګلورینې ځوانۍ او ګلابي شبابونه یې د دین له شمعې ځار کړل.همدوی وو چې د امریکایي دجالي تخنیک په وړاندې په ټوله میړانه ودریدل، د کفر په لښکرو یې فدایي بریدونه او مخامخ حملې وکړې تر دې چې بالاخره یې د الله تعالی په نصرت د نړیوال کفري یرغل زور اوبه او یرغلګر یې له هیواده تیښتې ته اړ کړل.

د شهیدو اتلانو د سوانحو په لړ کې دا ځل د هغه ځوان قائد یاد راتاندوو چې په نوې ځوانۍ کې یې د صلیبي تاړاکګرو په خلاف مسلح جهاد پیل کړ او ډېر زر په جهادي میدان کې د یوه وتلي او مخکښ جهادي قائد په حیث وپیژندل شو. هو کې ، شهید ملا عبدالمنان احمد یادوو. . . هغه ستوری چې لا پر جهادي افق بشپړ نه و ځلیدلی چې د شهادت په ګلورینه غیږه کې دمه شو.

## شهید ملا عبدالمنان أحمد

شهید ملا عبدالمنان احمد د محمد واصل زوی د حاجي محمد دین لمسی په قوم حسین خېل په ۱۳٦۱ هـ ش کال کې یې چې لـه ۱۴۰۳ هــ ق سره سمون خوري د کابل ولایت په موسهي ولسوالۍ کې دنیا ته سترگې غړولي. ددوی پلرنی کلی دهمدې ولسوالۍ د حاجي خیلو کلی دی مگر فعلا په میاخیل کلي کې هستوگن دي.

د ملا عبدالمنان د پیداینښت کلونه په افغانستان کې د شورویانو په خلاف د جهاد له کلونو سره مصادف دی. نوموړی هغه مهال وزیږېد چې د کمونیزم په خلاف جهاد زور اخیستی و او د افغانستان هر کلی او صحرا د سختو معرکو شاهد و، نوموړی په همدې انقلابي ماحول کې راستر شو نو ځکه یې جهادي جذبې له کوچنیوالي په زړه او دماغ کې ځای ونیو.

## دیني زده کړې

نوموړي ابتدائي زده کړه له ښوونځي پیل کړه او د دریم ټولگي پورې یې ښوونځی واویه په شپږ کلنۍ کې یې د دیني زده کړو تعلم پیل کړ د فقهې او نورو دیني علومو لومړني کتابونو یې له خپل نیکه او د خپلې سیمې له مختلفو علماء کرامو څخه ولوستل.

د طالبانو د اسلامي تحریک په مهال یې په کابل کې د شهید ملا معاذ الله او شهید ملا بورجان رحمهماالله په مدرسو کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ دغه راز یې څه مهال د ننگرهار ولایت په درونټه کې په جهادي مدرسه دارالعلوم صدیقیه کې هم دیني تعلم وکړ.

ملا عبدالمنان د خوست ولایت په مظهر العلوم مدرسه،د پاکستان په ټل درسمند کمپ کې په دارالعلوم حنفیه او د پیښور په باغبانان کمپ کې په دارالنجاة مدرسه کې دینې زده کړې وکړې او د قران کریم تفسیر او ترجمه یې د خیبر پښتونخوا په صوابۍ شامنصور کې له شیخ القرآن مولانا نورالهادي صاحب څخه وکړه.

جهادي ژوند

ملا عبدالمنان لومړی ځل هغه په جهادي عملیاتو کې اشتراک وکړ کله چې یې د ننګرهار ولایت په جهادي مدرسه کې دینې زده کړې کولې،د اسلامي امارت په جهادي مدارسو کې به هغو طالبانو سبقونه ویل چې د جهادي عملیاتو په وخت به جهادي جبهو ته تلل،جهادي مدارس په ډیرو ولایاتو کې وو او په زرګونو مجاهد طالبان په کې په زده کړو بوخت وو.دغه طالبان به چې جهادي جبهو ته تلل زیاتره وخت به یې مشري د کندهار د جهادي مدرسې د مشر او نوموتي مجاهد شهید قاري فیض محمد سجاد پر غاړه وه، ملا عبدالمنان احمد لومړی ځل داسلامي امارت د واکمنۍ په وروستي کال د عمر په ۱۹ کلنۍ کې د شهید سجاد صاحب تر مشرۍ لاندې د تخار ولایت جهادي جبهاتو ته لاړ چې دا یې په جهادي عملیاتو کې لومړنی ګډون و.

له دې څه موده وروسته چې امریکایي طاغوت په افغانستان یرغل وکړ ملا عبدالمنان احمد هم د ډیرو نورو مجاهدینو په شان له هیواد څخه قبایلي سیمو ته په هجرت مجبور شو او له دینی زده کړو تر څنګ یې جهاد هم پیل کړ.

نوموړي دا ځل خپل جهادي عملیات د خوست له ولایت څخه پیل کړل، لومړني بریدونه یې د نورو مجاهدینو په ملتیا د خوست ښار په توپچي پاټک او باک پر ولسوالۍ وو.نوموړی چې د طالبۍ په مهال په دې ولایت کې اوسیدلی او بلدتیا یې درلوده له لومړنیو کسانو څخه و چې په دې ولایت کې یې په چریکي او وروسته په تهاجمي بریدونه کې برخه واخیسته.

ملا عبدالمنان احمد د خپلې جهادي وړتیا له امله وروسته د جهادي ملګرو خپل تشکیل جوړ کړ چې په پیل کې دده تر قومنده لاندې د مجاهدینو شمیر ۱۱ تنه وو او زیاتره یې د خپلې سیمې طالبان ملګري وو مګر وروسته یې د ملګرو شمیر تر لسګونو او سلګونو ورسید چې د هیواد د وتلي جهادي سالار مولوي جلال الدین حقاني صاحب تر مشرۍ لاندې یې د اسلامي امارت په چوکاټ کې جهادي فعالیت کاوو.

د امریکایي یرغل په لومړیو کلونو کې د هیوادله جنوب ختیځ سره د وزیرستان په سرحدي قبایلي سیمو کې مجاهدینو خفیه جهادي مراکز جوړ کړل او له همدې ځایه یې په سرحدي علاقو کې د یرغلګرو په مراکزو او ګزمو تهاجمي بریدونه پیل کړل. ملا عبدالمنان احمد د جهادي بریدونو ددې لړۍ له لومړنیو ګډونوالو څخه و چې د بټې، منې کنډو، لواړه، منګړیتۍ، منبې کنډو، ترخوبي او نورو سرحدي غرییزو علاقو کې بیا بیا په امریکایانو او د هغوی په ګوډاګیانو ځپونکي بریدونه وکړل.

ملا عبدالمنان احمد د خوست ولایت په ډیری عملیاتو کې له خپلو ملګرو سره برخوال و له دې جملې د خوست ولایت د قلندر او د پکتیا د جاني خېل ولسوالیو د مراکزو په فتحه کې یې مهم رول درلود. د خوست ولایت د علیشیرو ولسوالۍ فتحه چې د خوست ولایت ډیرو مجاهدینو په کې برخه درلوده د هغه وخت یوه ستره جهادي کارنامه وه، خو ملا عبدالمنان احمد ځکه ددې فتحې په خوند پوه نه شو چې له فتحې وروسته د امریکایي یرغلګرو لخوا په بمبار کې د خوست د لسو تنو نورو مجاهدین تر څنګ د ملا عبدالمنان یو تکړه مجاهد ملګری ملا مصطفی هم د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

۲۰۰۷ میلادي کال چې له ۱۳۸٦ هـ ش کال سره سمون خوري د ملا عبدالمنان احمد په جهادي ژوند کې له حوادثو ډک کال و، ددې کال په لومړیو کې نوموړی د خوست په ولایت کې د امریکایانو په یوه ناڅاپي حملې کې ددښمن په اسارت کې راغی او د بګرام زندان ته انتقال شو. نوموړی ۸ شپې په دې زندان کې محبوس و او امریکایي پلټونکو ترې تحقیقات کول. اما له ټولو تعذیبونو سره سره یې هم له نوموړي دا اعتراف وانخیست چې زه عبدالمنان احمدیم. له ۸ ورځو وروسته نوموړي د الله تعالی په نصرت سره له دې زندان څخه نجات وموند او یو ځل بیا په جهادي ډګر کې له خپلو ملګرو سره وصل شو.

له زندان څخه د راخلاصیدو وروسته نوموړي دپکتیا ولایت د ښواک او ستهو کنډو په غرنیو سیمو کې د جهادي جبهې د فعالولو کار پیل کړ. دا سیمه چې د

شوروي ضد جهاد په مهال د هیواد د وتلي مجاهد مولوي جلال الدین حقاني صاحب جهادي سنگر و دا ځل د نوموړي تر سرپرستۍ لاندې ملا عبدالمنان احمد او ورسره سلگونو مجاهدینو په کې د غربي اشغالگرو په خلاف جهاد عملیات پیل کړ.

د ۱۳۸٦ هـ ش کال په پسرلي او اوړي کې ملا عبدالمنان احمد او ورسره ملگرو یې چې شمیر یې د ۴۰۰ تنو مجاهدینو په شاوخوا کې و د پکتیا ولایت په سټوکنډو او شاوخوا سیمو کې په امریکایي اشغالگرو په لسگونو مختلف النوع بریدونه لکه چاودنې،کمینونه، توغندیز بریدونه او استشهادي عملیات ترسره کړل چې دښمن ته یې د سراو مال درانه تلفات ورسول. ملا عبدالمنان احمد چې د خپلو دې فاتحانه معرکو ویډیويي صحنې یې هم ثبتولې او نشرولې په لومړي ځل یې په مستند شکل خلکو ته وښودل چې امریکایي ټانگونه ماتیدلای ، په تیښته اړ کیدلای او بالاخره د بارودو په لمبو کې لوخړه کیدلای شي. د ملا عبدالمنان احمد د جهادي عملیاتو مستندو ویډیوگانو نه یوازې د مجاهدینو روحیات پیاوړي او ددښمن تبلیغات دروغ ثابت کړل بلکې په عامه میډیا کې یې هم لویه هنگامه راویښه کړه تر دې چې تر الجزیرې او نورو نړیوالو شبکو پورې ټیلویزوني چینلونو په دې اصداراتو تبصرې وکړې چې دا د پوځي بریا تر څنگ په رواني او تبلیغاتي جنگ کې هم د مجاهدینو لپاره یوه مهمه بریا او ټاکونکی پړاو و.

## ځیني خاطرې یې

د ملا عبدالمنان احمد د مدرسې د مهال ملگري وایي چې نوموړی له پیله یو مخلص او مؤدب انسان و په مدرسه کې یې له ملگرو سره نیکه رویه، د استادانو احترام او د وخت له ضیاع نه ځان ساتل له مهمو صفاتو څخه وو.

د نوموړي جهادي ملگري وایي چې هغه د ایثار ، استقامت او تحمل صفات درلودل نو ځکه یې جهادي تکالیف برداشت کولای شول. یو ځل چې له خپلو ملگرو سره د لواړه سرحدي سیمې ته په غرنیو لارو د عملیاتو لپاره روان و په لاره کې یې

وليدل چې د يوه مجاهد بوټونه شليدلي دي او سم مزل نـه شي كـولی. نومـوړي خپـل بوټونه همدې مجاهد ته ورکړل او خپله يې په هغو شليدلو بوټونو کې مزل شروع کړ.

د امريكايانو په خلاف د جهاد لومړني كلونه د تكاليفو او ازمويښتونو له اړخه ډير سخت كلونه وو چې ددې تكاليفو له جملې يو هم د مجاهدينو مـالي افـلاس او فقـر و. خو د ملا عبدالمنان اخند په شان د لوی عزم څښتنانو له دې حالاتو سره په ډير همت ډغرې ووهلې. يو ملگری يې وايي يـو وخـت پـه قبـايلي علاقـه كـې حالـت خـراب شـو نوموړي د خپل مركز مجاهدين ډيری د ترجمې لپـاره مدرسـې تـه وليـږل او خپلـه پـه داسې حال كې چې يوازې څلور زره كلداري ورسره وې له شپږو مجاهدينو سره دلـواړه جهادي سيمې ته لاړ هلته يې ډير وخـت پـه همـدې كمـه خرڅـه گـوزاره وكـړه چـې د مجاهدينو د اعاشې اباتې تر څنگ يې نور جهادي ضروريات هم پرې رفع كول.

ملا عبدالمنان به هميشه ويل چې مجاهدين بايد د وس مطابق اسـبابو لـه تهيـې وروسته په الله تعالى باندې توكل ولري. ده به ويل چې اميرالمؤمنين ملا محمـد عمـر مجاهد محض په الله تعالى باندې توكل درلود نو ځكه الله تعالى بری ورپه نصـيب كـړ او چې ددې تحريک پيل په توكل شوی بايد توكل هېر نه كړو.

نوموړي علماء كرامو او ديني پوهانو ته ژور احترام درلود په هر جهادي كار كـې يې د هغوی مشوره اخيسته حتـی ډيـره ځلـه بـه يـې مـدرس عالمـان خپـل مراكـز تـه راوغوښتل تر څو مجاهدينو ته وعظ وكړي او د جهاد احكام او مسائل ورته بيان كړي.

څو تنه ديني علماء كرام چې په سرحدي سيمه لواړه كې يې د ملا عبـدالمنان لـه مركز څخه ليدنه كړې وايي چې مجاهـدينو يـې جـلا خصوصـيات درلـودل ، د اصـلاح، اخلاص او ديانت له اړخه ډير ښه صفات په كې موجود و.

**شـهادت يـې:** مـلا عبـدالمنان احمـد بـالاخره د ۲۰۰۷ مـيلادي كـال د اكتـوبر د مياشتې په ۲۷ مه نيټه د يكشنبې په ورځ مـازديگر مهـال هغـه وخـت د شـهادت لـوړ

مقام ته ورسيدكله چې د پکتيکا ولايت په سرحدي سيمه لواړه کې د امريکايانو له کمين سره مخامخ شو.

نوموړي په وروستۍ ورځ هم له امريکايانو اشغالگرو سره په ميړانه مقاومت وکړ او د څو امريکايي ککرو له رغړولو وروسته بالاخره د شهادت لوړ مقام ته ورسيد.انا لله و انا اليه راجعون

د يادونې وړ ده چې د شهيد ملا عبدالمنان احمد کورنۍ يوه جهادي کورنۍ ده چې له ده وروسته يې دوه نورو ورونه شهيد اميرگل او شهيد نور محمد هم د جهاد په لاره کې شهيدان شول.

د نوموړي جنازه په قبايلي سيمه ميرانشاه کې د زرگونو مجاهدينو او مهاجرينو په گډون سره اداء شوه د جنازې په مراسمو کې يې وتلي مجاهد او خطيب استاد محمد ياسر چې څه موده وړاندې له زندان څخه راخوشې شوی و زړه وړونکې وينا وکړه او وروسته د اسلامي مبارزې د لارې ددغه ځوان قائد ملا عبدالمنان احمد جسد د هجرت او جهاد په همدې قبايلي سيمه کې د گڼو نورو شهيدانو تر څنگ خاورو ته وسپارل شو.

روح يې ښاد او ياد يې تلپاتې اوسه

❋ ❋ ❋

# د شهید مولوي دستګیر صاحب ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

دامریکایي یرغل په خلاف د جهاد یوه توده او دښمن ځپونکي سیمه د هیواد په شمال غرب کې دبادغیس ولایت و. دا ولایت که څه هم دجهادي خوځښت په وړاندې خورا ډیر موانع او مشکلات په کې موجود و، چې له دې جملې په سیمه کې د امریکاپلوو ټوپکي قومندانانو او وسلوالو حاکمیت،ددښمن فشار، دوسلو، جهادي امکاناتو نه موجودیت او دهیواد په جنوب کې له ګرمو جهادي سیمو څخه لریوالی او دمجاهدینو محاصره حالت د یادولو وړ دي.

خو له دې ټولو موانعو او مشکلاتو سره سره ددې ولایت غیور اولس او ایثارګر مجاهدین وتوانیدل چې د یرغل له آزمون سره ډغرې ووهي،د موانعو او خنډونو حصار مات کړي اوددښمن په وړاندې دجهادي خوځښت یو پایدار سنګر رامنځته کړي.

بادغیس د جهاد په تیره لسیزه کې د هیواد په سطحه یو نوموتی او غلیم ځپونکی سنګر و،چې بیا بیا په کې دښمن سخت تلفات ولیدل،سره له دې چې دبادغیس د جهادي فتوحاتو په امتیاز کې ټول هغه مجاهدین او مجاهد اولس شریک دی چې په تیرو څوکلونو کې یې قربانۍ ورکړې،خو یو کس چې په دې ولایت کې د جهادي خوځښت محرک او مبتکر بلل کیږي اود بادغیس ولس ورته د خپل جهادي لارښود په سترګه ګوري شهید مولوي دستګیر صاحب و.هغه څوک چې په خپل جرأت، ایمانداری،اخلاص او قربانۍ سره یې په بادغیس کې نه یوازې دعلني جهاد بنسټ کیښود بلکې د الله تعالی په مرسته او مدد یې جهاد ددې ولایت ګوټ ګوټ ته وغځاوو او اولس یې دجهاد هراړخیز ملاتړ ته تیار کړ.

راځئ دلته څوشیبې ددې مخورمجاهد په ژوند پیښو وغږیږو .

## مولوي دستګیر رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ

مولوي دستګیر د حاجي اصل خان زوی د حاجي فیض محمدخان لمسی په قوم پښتون / نورزی په ۱۳۹۷ هـق کال کې د بادغیس ولایت د بالامرغاب ولسوالۍ د چلونک په کلي کې په یوه دینداره کورنۍ کې زیږیدلی .

نوموړي دماشومتوب په مهال لومړنۍ زده کړې په خپل کلي کې ترسره کړې،ورپسې يې د بالامرغاب د جهاندوستې په سیمه کې دمولوي محمدوزیرصاحب په نامه د سیمې له یوه مخور عالم څخه دیني تعلیمات ترلاسه کړل. وروسته نوموړي د بادغیس ولایت په مختلفو سیمو کې دغه راز د هرات ، فراه،کندهار او هلمند په ولایاتو کې په مختلفو دیني مدارسو کې خپله ددیني زده کړو لړۍ تعقیب کړه، داسلامي امارت د واکمنۍ په مهال ډیره موده دهرات ښار چهار راهي مستوفیت ته نږدې د یوې مدرسې ناظم و او هم يې خپلې دیني زده کړې تعقیبولې .

په ۱۴۲۷ هـ ق کال کې نوموړي د ددیني علومو څخه د فراغت سند د پاکستان د بلوچستان ایالت په مرکز کویټه کې د شالدارې له مشهورې مدرسې څخه ترلاسه کړ، د همدې سیمې د مشهور عالم شیخ الحدیث مولوي عبدالواحد صاحب څخه يې د احادیثو داجازې په اخیستلو سربیره د فضیلت سپین دستار هم په سر کړ .

## په بادغیس کې د علني جهاد پیل

مولوي دستګیر صاحب د نوې ځوانۍ له مهاله جهادي جذبه درلوده،د نوموړي نږدې ملګری مولوي حیات الله اکبري وایي: دامریکایي یرغل په لومړنیو کلونو کې چې مولوي دستګیر صاحب په هلمند ولایت کې درسونه ویل له هغه وخته يې په جهادي عملیاتو کې شرکت کاوو،نوموړي خپل جهادي ژوند په هلمند او کندهار کې له جهادي فعالیت څخه پیل کړ.

په بادغیس کې سره له دې چې جهادي کاروانه له وړاندې پیل شوي و او په دښمن خال خال بریدونه روان و، خو دې ولایت ته د مولوي دستګیر صاحب له راتګ

مخكې جهادي كاروونه ډير كم او په مخفي ډول و. مجاهدينو وسلې ،امكانات او منظم تشكيلات نلرل خو په ۲۰۰۷ م كال كله چې مولوي دستگير صاحب له ديني علومو فارغ او په لومړي ځل يي په خپله سيمه كې جهادي فعاليت پيل كړ په خپلو هڅو سره يې په دې ولايت كې يو بشپړ جهادي انقلاب راووست.

د نوموړی يو ملگری دبادغيس دمقر ولسوالۍ اوسيدونكی مولوي عبدالقدوس چې د جهادي خوځښت په پيل كې ورسره همسنگر و داسې كيسه كوي: مولوي دستگير صاحب خپل كار په ډيرو ابتدايي هڅو پيل كړ ، په لومړي ځل چې كله نوموړي دجهاد اقدام كاوو نو تش لاس و او يو ميل وسله يې هم په لاس كې نه درلوده ، له ده سره يوازې زما په شمول څو تنه نور ملگري وو. لومړی دوسلو دپيدا كولو لپاره د بالامرغاب دپنيرک په كلي كې يوه پخواني جهادي قومندان ملاگلاب الدين ته ورغلو چې دوسلو كومک راسره وكړي، هغه دې خير يوسي دوه ميله كلاشينكوف يې راپيدا كړل. بيا دهمدې ولسوالۍ دغورتو دسيمې مولوي بازمحمد صاحب يوميل راكټ راكړ ، په دې توگه مونږ يوڅو نور ملگري هم دوخت په تيريدو سره پيدا كړل او په همدې دری ميله اسلحه باندې مو جهاد پيل كړ. يو وخت چې شمير مو ۱۲ كسانو ته رسيدلی وو ، لومړی مو په سيمه كې ددښمن ديوې NGO په ساتونكو بريد وكړ بله شپه مو دبالامرغاب په ولسوالۍ بريد وكړ او بيا مو په مختلفو پوستو بريدونو ته دوام وركړ ،لومړی مو كاروونه يوازې دشپې كول خو دوخت په تيريدو سره مو غنيمتونه ترلاسه كړل، ملگري مو نور هم زيات شول او دوسلوله اړخه بسيا شوو. دلته نوبالامرغاب ته نږدې يوغرنۍ سيمه ده په نامه د ( حوض كبود ) دلته مونږ مركزيت جوړ كړ او كله چې په بادغيس كې زمونږ ددې جهادي قوي مركزيت اوازه خپره شوه ، نو له مختلفو ولسواليو څخه خلكو له مونږ سره روابط جوړ كړل . نو په دې توگه دمجاهدينو شمير هره ورځ په زياتيدو وو خپل علني عمليات مو نورو ولسواليو لكه مقر ، دره بوم او نورو سيمو ته هم وغځول او ډيرې پراخې سيمې مجاهدينو فتحه كړې.

مولوي حیات الله اکبري وایي: په پیل کې د بادغیس دمجاهدینو مشري دمولوي عبدالرحمن په غاړه وه او مولوي دستګیر دنوموړي دمحاذد نظـامي مسـؤل پـه حیـث دنده اجراء کوله،د نوموړي په راتګ سره په بـادغیس کـې علنـي جهـادي کاروانـه پیـل شول، مثلا نوموړي په لړه موده کې د بالامرغاب د سالوچار پـه سـیمه کـې پـه پوسـته برید وکړ،ورپسې یي دبالامرغاب په ولسوالۍ حمله وکړه د مقر ولسوالۍ په مرکـز یـي عملیات وکړل،د بالامرغاب د اڅکزو په سیمه کې یي ددښمن په کمپاین برید وکړ،چې دې عملیاتو ددښمن سخت عکس العمل راوپاراوو او لـه هـرات او بـادغیس لـه مرکـز څخه یي لویه قوه بالامرغاب ته راوسته، د مولوي دستګیر صاحب په مشرۍ مجاهدینو د جوی کار د تنګي په سیمه کې له همدې قوې سره جنګ وکړ،دښمن شکسـت وخـوړ او بیرته د ولسوالي په خوا وتښتیدل او مجاهدینو په همدې سیمه کې دښمن ته دفاعي کرښه جوړه کړه،دښمن چې په همدې جنګ کې شکسـت وخـوړ نـو پخـوانی رعـب او هیبت یي له منځه لاړ له همدې سره په ولس کې عمومي دجهاد جذبه راپورته شـوه او جهاد بشپړ علني شکل غوره کړ.

مولوي حیات الله صاحب وایي: مولوي دستګیر صاحب د ګوتو په شمیر څـو تنـو ملګرو سره جهادي فعالیت پیل کړی و، چې وسلې یـي هـم نـه درلـودې خـو دوه کالـه وروسته دنوموړي له شهادته بعد چې دمجاهدینو احصایه واخیستل شوه دنوموړي تـر قومنده لاندې یوازې دمسلحو بالفعله مجاهدینو شمیر ۳ زره تنو ته رسیده .

## مهمې جهادي کارنامې

د جهاد له علني کیدو وروسته د بادغیس ولایت په لراوبر کې دمولوي دسـتګیر صاحب تر نظامي مشرۍ لاندې جهادی عملیاتو زور واخیست یوازې د ۲۰۰۷ م کال په جریان کې په دښمن ۵۲ اغیزمن عملیـات تـرسره شـول دغـه راز پـه ۲۰۰۸ م کـال کـې جهادي عملیات تردې هم زیات شول، په لاندې کرښو کـې د مشـت نمونـه خـروار پـه توګه څو هغو جهادي عملیاتو ته اشاره کـوو چـې دمولـوي دسـتګیر صـاحب ترمشرۍ لاندې یي صورت نیولی.

د جوی کار په سیمه کې له جنګ څخه وروسته د مرغاب د بوکن په سیمه کې د داخلي او خارجي عسکرو یوه قوه چې د غورماچ په خوا روانه وه، مجاهدینو وربانـدې برید وکړ چې په نتیجه کې یي ددښمن ۱۸ مړي په میدان پاته شول،۵ رینجر موټر ترې مجاهدینو ونیـول یـو خـارجي ټانـګ او دوه رینجـر چـې د جګـړې پـه سیمه پاتـه وه امریکایانو بمبار کړل،مجاهدینو یوشمیر داخلي عسکر ژوندي ونیـول او ډیـرې وسلې یي هم غنیمت کړې،په دې جګړه کې چې کـوم عسـکر ژونـدي پاتـه شـول امریکایـانو دڅرخکو په واسطه له سیمې پورته کړل او په دې توګه یـې قـوه لـه منځـه لاړه، پـه دې جګړه کې ددښمن د بمبار له امله ۷ تنه مجاهدین هم شهیدان شول .

د مرغاب د منګان په سیمه کې چې دښمن غوښتل پوستې جوړې کړي،د مولـوي صاحب په مشرۍ مجاهدینو ورباندې برید وکړ چې په نتیجه کي یي دښـمن تـه د سر دزیان په اړولو سربیره ۲ رینجر موتر او نور غنائم هم مجاهدینو ونیول ددښمن عسکر له سیمې وتښتیدل او پروګرام یي کاملا ناکام شو.

د بالامرغاب د مرکز په شاوخوا کې چې دښمن د محاصرې پـه حالـت کـې و، یـو ځل یي غوښتل چې عملیات وکړي په همدې موخه د ولسوالۍ له مرکـز څخـه راووتـل خو مجاهدینو یي په وړاندې مقاومت ته ادامه ورکړه دې جګړې نږدې یـوه هفتـه دوام وکړ چې په پای کې دښمن غوڅ شکست وخوړ او بیرته پر شا وتښتید .

مولوي دستګیر سره له دې چې د جهاد په پیل کـې هـم یوځـل پـه کنـدهار کـې ددښمن لخوا نیول شوی او لنډ توقیف یي تیـر کـړی و،د ۲۰۰۸م کـال پـه لومړیـو کـې ددښمن لخوا په هرات کې ونیول شو او د کابل دپلچرخي زندان ته انتقال شـو،نوموړي شاوخوا اوه میاشتې په زندان کې تیرې کړې، څرنګه چې مولوي صاحب د بـادغیس پـه عام اولس کې فوق العاده محبوبیت درلود دبادغیس ولایت قومي مشرـانو، مخـورو او علماء کرامو دنوموړي دخلاصون لپاره هڅې پیل کړې، تردې چې د ۷۰ کسانو یوه لویـه ډله کابل ته لاړه او له حکومته یي په کلکه غوښتنه وکړه چې مولـوي صـاحب راخـلاص

كړي، څرنګه چې دبادغيس ټـول اولـس دنومـوړي پـه ملاتـړ ولاړ و، حكومـت مجبـورا نوموړی له زندان څخه خوشي كړ.

له راخلاصيدو وروسته چې مولوي صاحب خپلې سيمې تـه سـتون دعـاموخلكو او مجاهدينو له خورا پراخ هركلي سره مخـامخ شـو، دعينـي شـاهدانو پـه وينـا د مولـوي صاحب راخلاصيدل په سيمه كې ديوه ولسي جشن به حيـث تجليـل شـول حتـی عـامو خلكو ډير دشكرانې خيراتونه وكړل،ځكـه نومـوړي د يـوه مخلـص مجاهـد پـه حيـث د ولسي خلكو په زړونـو كـې ژور ځـای خپـل كـړی و. دسـيمي دخلكـو اومجاهـدينو پـه غوښتنه نوموړی د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا دبادغيس ولايت د عمـومي جهـادي مسؤل يا والي په حيث وټاكل شو، نوموړي دامارت دمشرتابه له لارښوونو سره په سيمه كې دولسواليو نظامي او ملكی تشكيلات، كميسـيونونه ،محـاكم اونـور ادارات لـه سره منظم كړل او په بادغيس كې منظمه جهادي اداره رامنځته شوه .

د مقر ولسوالۍ اوسيدونكی مولـوي صـديق الله وايـي: پـه همـدې مهـال دښـمن غوښتل چې د مقر ولسوالۍ په سنجيتک سيمه كې چې د بادغيس دمركز قلعه نـو پـه ۱۰ كيلومترۍ كې پرته ده،پوستې جوړې كړي.مجاهدينو ددښمن له دې پروګـرام سره مخالفت وكړ او دښمن ته يي اجازه نه وركوله چې دغلته پوستې جـوړې كـړي، پـه دې مهال دښمن د سيمه ايزو پخوانيو مليشو او حكومت پلوه اولسي خلكو سره په ګـډه پـه مجاهدينو هجوم ورووړ نه يوازې يي سيمه ايز مجاهدين تر بريد لاندې ونيول بلكـې د مجاهـدينو او دهغـوی دملاتـړو مالونـه يـي هـم چـور كړل،كورونـه يـي وسـوزول او دمجاهدينو دسيمي عام خلک يي په هجرت كولو او غرونو ته په تيښتيدلو اړ كړل. پـه دې بريد كې دحكومتي مليشو په لاس ۲۰ تنه عام مؤمن هيوادوال شهيدان شول او بـې اندازې مالونه يي لوټ شول،دغه مهال چې مولوي دستګير صاحب په بالامرغاب كې و دهمدې جهاد پلوه اولسي وګړو د دفاع لپاره يي مجاهدين همـدې سـيمې تـه راوسـتل اوددښمن له مليشو سره يي جنګ پيل كړ. دې جګـړې يـوه هفتـه دوام وكـړ، چـې پـه نتيجه كې دحكومت پلوه مليشو د مشر عثمان بيګ په شمول ګڼ لوټماران ووژل شـول

او ياده سيمه بيرته مجاهدينو له مليشو څخه تصفيه کړه، په دې توګه دسيمي بي ځايه شوي خلک بيرته ځای په ځای شول او حکومت پلوه مليشو داسې شکست وخوړ چې بيا يی کله هم دداسې هجوم فکر ونه کړ . په دې حادثه کې چې مولوي دستګير صاحب دعام اولس د ملاتړي او مرستندوی په حيث راڅرګند شوی و او ولسي۔ خلکو ته يي نجات ورکړی و په سيمه کې دمجاهدينو په حق کې اولسي اخلاص نور هم زيات شو.

د مولوي دستګير صاحب جهادي کارنامې خورا ډيرې دي خو هغه کارنامه يي چې ډيره خبرسازه شوه ،هغه په په ۲۷/۱۱/۲۰۰۸ ميلادي نيټه په بالامرغاب ولسوالۍ کې پيښه شوه.

مولوي حيات الله وايي : له هرات څخه ددښمن يوه خورا ستره قوه چې ۱۰۰ پوځي موټر به په کې وو د بادغيس مرکز ته راغله او له هغه ځای څخه يي د عملياتو په نيت دبالامرغاب په خوا حرکت وکړ،مجاهدينو ددې قوې د ماتولو لپاره په سيمه کې پوره امادګي نيولې وه، قوه چې د منګان سيمې ته راورسيده لومړی وربانديې هماله بريد وشو،خو له هغه ځای څخه چې راتيره شوه د اکازو د جوی نو په سيمه کې مجاهدينو ورته د سرک په دواړو خواوو کمينونه نيولې وو. کله چې دغه قوه پوره دمجاهدينو سيمې ته ننوته مجاهدينو وربانديې بريد پيل کړ، دغه جنګ چې غرمه پيل شوه ترمازيګره په کې ددښمن قوه په بشپړه توګه تارومار شوه،، په دې عملياتو کې ددښمن د لسګونو موټرو له جملې ګڼ دمجاهدينو په لاس تخريب شول او ۲۱ رينجر ٦ اکمالاتي موټر چې په وسلو بار وو روغ رمټ مجاهدينو ونيول. په دې عملياتو کې ددښمن ۴۵ تنه عسکرووژل شول او تر ۲۰ ډير ژوندي ونيول شول په دې جګړه کې مجاهدينو دومره وسلې او مهمات غنيمت کړل چې تړراتلونکو دوو کلونو پورې وربانديې مجاهدين چليدل په دې عملياتو کې مجاهدينو ته په لسګونو ميله سپکې وسلې ، هاوان ، هشتادو دو ، دهشکې ، ثقيل ماشيندار او نور ډول ډول وسلې په لاس ورغلې.

دې عملياتو نه يوازې په نړيوالو مطبوعاتو کې غوغا جوړه کړه بلکې په کابل کې يي په حکومتي کچه هم سخت مخالفتونه او اعتراضونه راوپارول، مطبوعاتو وليکل

چې دا په تیرو څو کلونو کې حکومتي قواوو ته ترټولو درنه ضربه وه،له دې عملیاتو سره په نړیوالو مطبوعاتو کې دمولوي دستګیر صاحب نوم د دې برید د اصلي طراح په توګه یاد شو، نوځکه خارجي او داخلي دښمنان متوجه شول ترڅو دغه قهرمان غازي په شهادت ورسوي.

مولوي حیات الله اکبري وایي له دې عملیاتو وروسته د کرزي دحکومت د استخباراتو مرستیال ډاکټر عبدالله لغماني مولوي صاحب ته ټیلفون راوکړ او رسما یې دمرګ اخطار ورکړ، مولوي صاحب ورته وویل چې څه مو له وسه کیږي ویې کړئ ، زه داسې څوک نه یم چې له مرګه وډار شم .

## شهادت یې

مولوي دستګیر صاحب ددښمن تر سخت تعقیب لاندې و،تردې چې د ۲۰۰۹ کال د فبرورۍ په ۱٦ مه چې د ۱۴۳۰ هـق د صفرالمظفر له ۲۱ سره سمون خوري ددښمن به بې رحمانه بمبار کې په شهادت ورسید.

مولوي حیات الله اکبري وایي: مولوي صاحب د ولسيـ خلکو د مشکلاتو او عرایضو له اوریدلو او لازمو کارونو دترسره کولو نه وروسته ماښام زموږ کور ته راغی او دڅو تنو نورو مجاهدینو سره یوځای یې همدلته په میلمه ځای کې شپه شوه، په دې شپه طیارې بیخي زیاتې ګرځیدلې څرنګه چې مولوي صاحب ستومانه و د ماخوستن دلمانځه له اداء کولو وروسته سمدستي ویده شو، زه هم کور ته لاړم خو د شپې لس نیمې بجې شاوخوا به وې چې ناڅاپه دروند بمبار وشو.

کله چې راووتو الوتکو دمیلمنوځای په نښه کړی و او دری بمونه یې پرې غورځولي و،چې یو په کوټه او دوه نورهم ورته نږدې لګیدلي وو، په بمبار کې یوازې یو تن په زخمي حالت کې ژوندی پاته و او دمولوي صاحب په ګډون اوه تنه مجاهدین په شهادت رسیدلي و.

په شهيدانو کې د بادغيس ولايت يو تکړه مجاهدمعاون بازمحمد هم و مولوي دستگير هم چې په ځيگر يي دامريکايي بم پرخچه خوړلې وه په شهادت رسيدلی و،نوموړی چې په جنازه کې يي گڼ شمير خلکو او ملگرو گډون کړی و، په خپل پلرني کلي کې خاورو ته وسپارل شو،د نوموړي يو زوی ترشا پاته شو چې دده دشهادت په مهال يي عمر ۸ مياشتې و .

## خاطرې او يادونه

مولوي دستگير په دې سربيره چې يوه زړور ،مخلص او تکړه مجاهد و دسيمې په سطحه اود مجاهدينو په منځ کې يي د يوه مشر- په حيث غيرمعمولي محبوبيت درلودچې همدا يي دکاميابۍ راز و،ملايارمحمد اخند چې دنوموړي له نږدې ملگرو څخه دی وايي: مولوي دستگير صاحب په بادغيس کې خورا زيات محبوبيت او نفوذ درلود،دهغه دعامه محبوبيت وجه دا وه چې هيڅ تعصب يي نه درلود، قوم پالنه ،ډلگۍ پالنه او نور تمايلات په کې نه و، له هرچا سره يي د شريعت په رڼا کې چلند کاوو. خپل جهادي مسير ته خورا وفادار و او هميشه يي خوښوله چې د خپل اولس په منځ کې واوسي،له هغوی سره هميشه په رابطه کې و ځان يي تر عامو خلکو لوړ نه باله او همدا نږدې تعلقاتو په ده باندې داولس باور پوخ کړی و. کله چې نوموړی له زندانه راخلاص شو نو د بادغيس په عام اولس کې داسي خوشالي گډه وه لکه د هرکور کوم غړی چې راخلاص شوی وي.

مولوي حيات الله اکبري صاحب هم همدې خبرې ته اشاره کوي او وايي: په هماغو شپو کې مې له يوه عام سړي څخه واوريدل چې په خپلو مرحومو قريبانو پسې مې دومره خيراتونه ندي کړي لکه دمولوی صاحب د راخلاصيدو په خاطر مې چې وکړل ،مولوي اکبري صاحب زياتوي: کله چې مولوي دستگير صاحب بندي و، زه او مولوي اسمعيل صاحب يوې لرې دښتي سيمې ته چې مالداران په کې اوسيږي لاړو او هلته د مالدارانو دکيږديو په منځ کې په يوه لوځ جومات کې چې يوې کيږدۍ ته نږدې و کيناستو او له عامو خلکو سره مو مجلس کاوو، په همدې کې يوې زړې ښځې

له کيږدۍ څخه راغږ کړ، او پوښتنه يي وکړه چې مولوي دستگير نه دی راخلاص شوی؟

موږ ځواب ورکړ چې تراوسه نه دی راخلاص . په دې سره هغه بوډۍ ښځه ژړا واخيسته او ورسره يي دمولوي صاحب د راخلاصيدو لپاره دعاگانې پيل کړې، موږ يي غږ اوريد او په داسې عجز يي دعاگانې کولې چې حتی موږ يي ورسره وژړولو .

مولوي حيات الله صاحب وايي:دمولوي دستگير کورنۍ جهادي کورنۍ ده، دنوموړي پلار چې دروسانو په مهال مجاهد و پخوا وفات شوی او دامهال يي يوازې مور ژوندی وه، دمولوي صاحب مور يوه خورا ديندراه او غيرتي ښځه ده چې خپل زامن يي په جهادي روحيه سمبال روزلي دي، دمولوي دستگير له شهادت وروسته دده يو بل ورور هم په جهاد کې شهيد شو او کله چې موږ دفاتحې لپاره ورغلو نو مور يي راغله مور يي موږ ته وويل چې دوه زامن مې په جهاد کې شهيدان شول خو تراوسه ما ورباندې ژړلي نه دي.

په دې مهال د مولوي دستگير صاحب زوی چې کوچنی ماشوم دی راغی،د هغه په سر يي لاس تيراوو او ويل يي چې زه خپل زامن او لمسيان د جهاد لپاره لويوم اوتربيه کوم، او دوی مې دالله تعالی لارې ته وقف کړي خو که دوی شهيدان شول په خپله هم حاضره يم چې دالله تعالی ددين لپاره وجنگيږم .

د نوموړي نور ملگری او هغه مجاهدين چې مولوي دستگير صاحب سره يي نږدې وخت تير کړی په دې خبره متفق دي چې نوموړی يو مخلص مجاهد او اغيزمن مشر و، چې ترپايه يي خپل جهادي کردار په ډير ښه ډول ترسره کړ.

رحمه الله تعالی



# د شهيد ملا عبدالسلام مجروح ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

## پيدايښت او ابتدائي ژوند

ملا عبدالسلام د حاجي شکراکا زوی په قوم پښتون/نورزی په ۱۳۴۵ هـ ش کال کې د هلمند ولايت د نوازد ولسوالۍ د تيزني سيمې په گلبينه کلي کې په يوه ديندار کورنۍ کې دنيا ته سترگې وغړولې.

نوموړي د لس کلنۍ په عمر په کليوالو مدرسو کې ديني زده کړې پيل کړې، لومړی يې دنوزاد په ولسوالۍ کې څه موده زده کړې وکړې او بيا د موسی کلا ولسوالۍ ته لاړ،نوموړی لا د ژوند په لومړنيو مراحلو کې و چې په افغانستان کې کمونيستان واک ته ورسيدل، افغانانو جهادي پاڅون وکړ،کمونيستانو په کليوالو سيمو بريدونه او بمبارونه پيل کړ او په دې توگه له هيواد څخه د هجرت لړۍ پيل شوه چې ملا عبدالسلام هم د هجرت ددې لړۍ يو لاروی و.

## هجرت او د کمونيزم په خلاف جهاد

ملا عبدالسلام اخند په تانده ځوانۍ کې د خپلې سيمې پريښودو ته اړ او په جهاد يې پيل وکړ. په جهاد کې لومړی شموليت يې د کندهار په ارغنداب ولسوالۍ کې د ملا عبدالغني په جبهه کې و، له هغه وروسته يې پاکستان ته هجرت وکړ او د څو کلونو په اوږدو کې يې د کندهار او هلمند په بيلابيلو سيمو کې جهاد ته ادامه ورکړه، په دې مرحله کې يې د ديني علومو درسونه هم تعقيبول، د کندهار او هلمند په مختلفو سيمو سربيره يې د پاکستان په کويټه،چمن،گردي ځنگل، پنج پای او گنو نورو سيمو کې هم درسونه وويل او د تعلم سفر يې تر پنځمې درجې پورې ورساوو.

په دې مرحله کې ملا عبدالسلام ډېر ځله کندهار ولایت ته د جهـادي فریضـې د اداکولو لپاره تلو نوموړي د پنجوایي، ژړی، ډنډ او ارغنداب ولسوالیو په ډېرو جنگونـو کې شرکت کړی دی دغه راز یي دکندهار ښـار پـه داخـل کـې هـم پـه ځینـو چریکـي عملیاتو کې شرکت کړی.

په کندهار سربیره نوموړی د لنډ وخت لپاره په روزگان،فراه او غور ولایـاتو کـې هم جهاد کړی دا چې نوموړي د جهادي اعداد او نظامي تربیې دوره ترسره کړې وه نـو په ټولو خفیفه او ثقیله وسلو کې یي پوره مهارت درلود. دجهاد په وروستیو کلونو کـې یي ډېر موده په هلمند ولایت کې جهاد ته ادامه ورکړه د سنگین په فتحه او د قلعه گز او گرشک په جنگونو کې یي شرکت درلود، په هلمند کې نوموړي په پیل کې د مولـوي عطاء محمد په جبهه کې و خـو وروسـته مـلا محمـد نسـیم اخنـدزاده ورتـه ځـانگړی تشکیل ورکړ.

په هلمند کې یو تریخ حقیقت د جهاد په وروستیو کلونو کـې د تنظیمـي جگـړو پیښیدل و. دغه جنگونو چې اصلي سـیمه یـي دهلمنـد شـمالي ولسـوالۍ وې د حـزب ،حرکت او جمعیت د مختلفو قومندانانو ترمنځ وو چې د طالبانو د اسلامي تحریـک د قیام تر وخت پورې یي دوام وکړ او زرگونو جنگیالي او عام بې طرفه خلک پـه کـې لـه منځه لاړل.

کله چې دغه تنظیمي جنگونه پیل شـول مـلا عبدالسـلام لـه دغـې نـزاع څخـه د خلاصون په خاطر په خپله سیمه د نوزاد په تیزني کې یوه دیني مدرسـه تاسـیس کـړه. دغه مدرسه څلور کاله فعاله وه چې سلگونه کشرانو او مشرانو طالبانو په کې دیني زده کړې حاصلې کړې خو وروسته د یوه ځایي ټوپکمار قومندان لخـوا د نومـوړي مدرسـه وربنده کړای شوه په دې وخت کې د مجاهدینو د حکومت په لومړي کـال نومـوړی د حج د مبارکې فریضې د اداء کولو لپاره حرمینو ته لاړ او دغه ستره فریضـه یـي تـرسره کړه له حج څخه له راگرځیدو وروسته نوموړي تر هغـه وختـه یـوازې د ځـان او خپلـو

مجاهدو ملګرو د ساتلو هڅه وکړه او په کور کیناست ترڅو د طالبانو اسلامي تحریک راپورته شو.

## د طالبانو په تحریک کې شمولیت

کله چې د کندهار په میوند او ژړۍ ولسوالیو کې د طالبانو قیام پیل شو او وروسته یي د کندهار په ډنډ ولسوالۍ کې مرکز جوړ کړ دغه مهال د ملاعبدلکریم په نوم یو تن مجاهد چې د ملا عبدالسلام نږدې ملګری و دطالبانو له تحریک سره مل و. هغه ملا عبدالسلام ته خط ولیږه چې راشه او د طالبانو له دې تحریک سره ملګری شه،نوموړی د طالبانو له تحریک سره په رابطه کې شو او کله چې د طالبانو قطعات د هلمند په خوا لاړل نوموړی له خپلو ملګرو سره د هلمند مرکز ته راغی او د تحریک له نظامي قومندان ملا محمد اخند سره یي له نږدې ولیدل، له همدې ځایه یي د طالبانو له تحریک سره عملي خدمت شروع کړ.

ملا عبدالسلام د خپلو خاطراتو یو کوچنی کتاب لیکلی چې د اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال ۱۳۷۸ لمریز کال کې په هرات کې چاپ شوی دی. نوموړي په دې کتاب د هلمند د نیولو په اړه لیکلي:د هلمند د مرکز او ګرشک مهمې سیمې د پخوانیو قومندانانو لکه میرولي، عبدالرحمن جان او معلم یوسف په لاس کې وې دوی ته له پخوا څخه ډیرې جرګې لیږل شوي وې چې له پاټکمارۍ لاس واخلي،خو دوی هیڅ هم نه منل نو ځکه دلته په دوی باندې عملیات پیل شول،د لنډو عملیاتو په ترڅ کې د هلمند ټولې مرکزې مهمې سیمې ونیولې او ټوپکیان زیاتره ونیول شول چې ټول بیرته خوشي شول او مشران یي د شمالي سیمو غور یا د سرحدي ولسوالیو په خوا وتښتیدل.

## د هلمند جنګونه او د هرات فتحه

د هلمند له تصفیې وروسته دوه لویې پیښې وشوې د یوسف په نوم تښتیدلي قومندان په نوزاد حمله وکړه او دا ولسوالي یي له طالبانو ونیوله چې بیا د ملا محمد

اخند او ملا عبدالسلام په ګډون طالبانو وربانديې ځوابي حمله وکړه او ولسوالي يې بيرته ونيوله. له دې وروسته د هلمند تښتيدلي قومندانان د ديشو ولسوالۍ په سرحدي غرنۍ سيمه چوټو کې رايوځای شول او لوی مرکز يي جوړ کړ چې هره شيبه يې طالبان تهديدول. د اسلامي تحريک د مشر په لارښوونه د ملا عبدالسلام او ګڼو نورو تکړه قومندانانو په شمول د چوټو په خوا تشکيل وشو چې په نتيجه کې يي په دې سيمه کې د تښتيدليو ټوپکيانو مراکز له منځه يووړل شول او هلمند د تل لپاره ترې خلاص شو.

دغه مهال ملا عبدالسلام د نوزاد ولسوالۍ د ولسوال او د ګرشک د فرقې د قومندان په حيث بيلابيل مسؤليتونه ترسره کړل، نوموړی به ډير ځله د هيواد په لويديځ کې د فراه په ولايت او د هلمند په لويديځو سيمو کې و هلته چې د تورن اسمعيل خان او طالبانو ترمنځ پرلپسې جنګ روان و.

د ۱۳۷۴ هـ ش کال په اوړي کې چې د هيوادپه لويديځ کې لوی تحول راغی او د فراه، نيمروز ، هرات او بادغيس ولايتونه د طالبانو لخوا ونيول شول، ملا عبدالسلام په دې سترو فتوحاتو کې د نورو جهادي مشرانو ترڅنګ مخکښ رول درلود. نوموړي په خپل کتاب کې ددې پيښو تفصيلي جريان بيان کړی چې دلته يي تاريخي اهميت ته په پام سره خلاصه تقديموو.

د اسمعيل خان او غفار اخندزاده ځواکونو چې له کابل څخه احمدشاه مسعود هم ورته سلګونه جنګيالي راليږلي وو په يوه پراخ تعرض سره يي د فراه په ګلستان کې د طالبانو په کرښو بريد وکړ،ګلستان يي ونيو او وروسته يې د دلارام له ولسوالۍ هم طالبان راپه شا کړل. ملا عبدالسلام چې په ګرشک کې يي د فرقې مسؤليت و ليکي: زه د دلارام په خواروان شوم خو په لاره ملا فاضل اخند په مخه راغی ويل يي چې دجګړې عمومي قومندان ملا محمد اخند ورته امر کړی چې په شوراب باندې خط ټينګ کړئ، ځنځير واچوئ او طالبان مه پريږدئ چې په شا لاړ شي، وروسته موږ په شوراب کې په وضع الجيش اخته شوو، ملا محمد آخند هم راغی ماته يي وويل چې ته

گرشک ته لاړ شه هلته احتیاطي دفاعي تدابیر برابر کړه او مازدیگر بیرته شوراب ته راشه، زه گرشگ ته راغلم او مازدیگر له څو تنو ملگرو سره بیرته دشوراب په خوا روان شوم، خو په لاره د حوض خشک په سیمه کې ملا دادالله اخند او گڼ نور طالبان په مخه راغلل، ډیر غمجن وو ویل یي چې ملا محمد اخند په شوراب کې شهید شو او طالبان پر شا را روان دي،په دې وخت طالبان سخت مایوسه وو او د مقاومت کوم حوصله نه وه ورپاته. دغه مهال له کندهار څخه د امیرالمؤمنین فرمان راورسید چې ملا رحمت الله اخند یي د شهید ملامحمد په ځای د جنگ مشر۔ټاکلی و،په همدې وخت کې د اسمعیل خان او مسعود ځواکونو له یوه پراخ تهاجم او نه ماتیدونکي دریځ سره په مخ را روان وو او دگرشک ډیرې سیمې یي هم نیولې وې، د ملا رحمت الله اخند په مشرۍ د طالبانو مشرانو د ځوابي برید عاجل پروگرام جوړ کړ،د ۳۰۰ کسانو په تشکیل سره یې په دریو استقامتونو د ځوابي عملیاتو نقشه داسې طرحه کړه چې ۱۰۰کسان به د ملا دادالله اخند،ملا سراج الدین او ملا خان محمد په گډون د بغرا په استقامت ځوابي حمله کوي،د ملا رحمت الله په مشرۍ به سل کسان د نفرسنگي چهارراهي په استقامت د سرک ښي اړخ ته برید کوي او سل تنه به د ملا عبدالسلام تر مشرۍ لاندې مخامخ په ډامبر/ سرک باندې متقابل برید کوي.

ملا عبدالسلام لیکلي: سهاروختي جنگ پیل شو،موږ اته تنه ملگري په یوه لنډ کروزر کې ددښمن د قواوو منځ ته ورداخل شوو، اکثرو خلکو فکر کړی و چې ملا عبدالسلام د غفاراخندزاده پخوانی ملگری دی او ورتسلیم شو. خو موږ د سهار په تیاره کې له ټولو جهتونو سره په توافق عملیات پیل کړل، زموږ په خوا کې د جنگ له پیل سره لومړی ټانگ د ملازړگي لخوا وویشتل شو او په ټولو خواوو کې جنگ زور واخیست،دښمن سختې وسلې وکارولې خو د پرمختگ مخه یي ډب شوه او شاتگ ته اړ ایستل شول، تر مازدیگر پورې سخت جنگ وشو او ددښمن لښکر بیرته دحوض خشک سیمې ته په شا ووهل شو، په جگړه کې طالبانو ته تر اندازې زیات وسایط، وسایل ، لوژیستیکي مواد او بندیان په لاس ورغلل. د اسمعیل خان له کسانو پنځلس

زغروال ټانگونه چالان د جگړې په ډگر پاته وو، د څهل ميلو او په لوژيستيکي موادو بار ټيلر په گډون مو ډېر مواد غنيمت کړل په همدې ورځ اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد گرشک ته تنها په موټر کې راغی د جگړې په لومړۍ کرښه کې يې له مشرانومجاهدينو سره وليدل خو مجاهدينو ورباندې تاکيد وکړ چې بيرته کندهار ته لاړ شي ځکه په گرشک کې د بمبار خطر و، وروسته د ملا محمد رباني، ملا مشراخند، حاجي بشر صاحب او نورو مشرانو سره يوځای گڼ شمير طالبان راغلل ددلارام له نيولو وروسته دلوېې لارې په سر تر يوه پله لاندې د اميرالمؤمنين تر مشرۍ لاندې غونډه وشوه او د فراه او هرات د سرتاسري فتحې لپاره عاجل تشکيلات وشول چې بيلابيلو جهادي قومندانانوته بيلابيل استقامتونه وروسپارل شول تر دې چې الله تعالی ټول په خپلو مسؤليتونو کې بريالي کړل او له فراه وروسته د هرات تاريخي ښار هم د طالبانو لاس ته ورغی.

## د هرات د قول اردو د قومندان په حيث

دهرات له فتحې وروسته نوموړی د هرات ولايت د څلورم نمبر قول اردو د قومندان په حيث وټاکل شو،خو د نوموړي جهادي ملگري د بادغيس او هم د کابل په جنگي کرښو کې په دندو بوخت وو. دهرات له فتحې شپږ مياشتې وروسته نوموړی د کابل جنگي خطوطو ته راغی، همدغه مهال چې د احمدشاه مسعود قواوو د عينک په سيمه کې د طالبانو په خط بريد وکړ او ډېرې سيمې يې ونيولې د ځوابي عملياتو لپاره ملاعبدالسلام او زرگونه نور طالبان عينک ته لاړل، د ځوابي عملياتو په ترڅ کې يې ټولې سيمې له مسعود څخه بيرته ونيولې او آن د کابل ښار تر لمنو ورسيدل خو څرنگه چې احمدشاه مسعود ټولې سيمې په ماينونو پوښلې وې گڼ طالبان په ماينونو شهيدان او ژوبل شول په دې لړ کې د ملا عبدالسلام موټر هم په ماين منفجر شو چې په نتيجه کې يې دده ملا او دواړه پښې ماتې شوې.

پښې يې چې ټول هډوکي يې ريزمريز او له منځه تللي و دائما معيوبي شوې که څه هم د اسلامي امارت مشرتابه د نوموړي په علاج ډېر کوښښ وکړ پاکستان او

جرمني هیواد ته یي ولیږه خو له ټولو معالجو سره سره یي بیا هم پښې یو مخ روغې نـه شوې بلکې مجبور وو چې په لکړو وګرځي.

د نوموړي له جراحت وروسته دده مسؤلیت مؤقتا دده مرسـتیال مـلا عبـدالولي زړګي ته وسپارل شو چې د کابل په فتحه کې یي بارز رول درلود ملا زړګـی وروسـته د مزار په لومړنۍ فتحه کې د جنرال مالک له قـواوو سره د سـخت جنـګ پـه تـرڅ کـې شهید شو. ملا عبدالسلام چې له معالجې راستون شو لـه ټـول معیوبیـت سره سره یـې خپلې دندې ته دوام ورکړ، په دې وخت کې د شمال ټول ولایتونه یو ځل بیا تصفیه او د اسلامي امارت تر واک لاندې راغلل چـې د مـلا بـرادر اخنـد،ملا فاضـل اخنـد او نـورو مشرانو سره یوځای ملا عبدالسلام هم په کې د هرات د قول اردو د قومندان په حیـث نقش درلود،نوموړي تر هغه وخته خپلې وظیفې ته دوام ورکړ ترڅو د امریکایـانو لخـوا په افغانستان یرغل وشو او د اسلامي امارت مجاهدین د ټولو ښارونو غوندې له هـرات ښار څخه هم ووتل.

## د امریکایي یرغل په وړاندې جهاد

د هرات له سقوط وروسته ملا عبدالسـلام خپـل اصـلي وطـن نـوزاد تـه راغـی او څرنګه چې د امریکایانو لخوا ورته خطر متوجه و، نو له څه مودې ښکاره ژوند وروسـته یې مخفي ژوند پیل کړ،نوموړي ۳ کاله او ۳ میاشتې په مخفي حالت کې ژوند وکړ چې یوازې ٦ تنه اعتمادي ملګرو یي ورسره رابطه او لیده کاته درلـودل، پـه دې وخـت مـلا عبدالسلام خپلـو ملګـرو تـه د جهـاد ترغیـب ورکـاوو او د عملیـاتو لپـاره یـې بیلابیـل هدایات ورکول.

وروسته نوموړی د علني جهادي ډګر میدان ته راووت،د نـوزاد، کجکـي، موسـی کلا او نورو سیمو تر منځ یي تګ راتګ پیل کړ. د اسلامي امـارت لـه مشرانو سره پـه رابطه او مشوره یي د مجاهدینو د تنظیم چارې پیل کړې،په دې لړ کې نوموړي یوځـل د هلمند، فراه او روزګان ۲۰۰ تنه مجاهدین د نوزاد په تیزني سیمه کې د شپې په مهال راټول کړل او وینا یي ورته وکړه، په همدې غونډه کې هدایت ورکړ چې علني جهاد پیل

کړئ او وطنو ته کوز شئ دغه راز ٦٠٠ صندوقه د ثقيل مرمۍ او نور هم لوی مقدار مهمات او وسلې يې وربانـدې وويشلې او د جهادي عملياتو د پراختيا قومنده يې ورکړه.

## شهادت

د ۱۳۸۸ هـ ش کال د ثور د مياشتې په ۸ نيټه هغه مهال چې ملا عبدالسلام مجروح د نوزاد ولسوالۍ د تيزني علاقې د سرپلې په سيمه کې مخفي ژوند کاوو، ددښمن لخوا يي سټلائټ ټيلفون کشف شو او چاپه يي ورباندې ووهله، ملا عبدالسلام له امريکايانو سره چې د جټ طيارو او چورلکو ملاتړ هم ورسره و جنگ پيل کړ څو تنه امريکايان يي ووژل او وروسته ددښمن لخوا وويشتل شواو د شهادت لوړمقام ته ورسيد او په خپله پلرنۍ هديره کې خاورو ته وسپارل شو. اناالله و اناالیه راجعون

د شهيد ملاعبدالسلام مجروح ورور او ځايناستی مولوي محمود خان ثاقب د ملا عبدالسلام د شخصيت په اړه وايي، چې نوموړي په نظامي جهادي نبوغ سربيره د خيريه کارونو هم ښه ذوق درلود، په خپله سيمه کې يي يوه لويه مدرسه اباده کړه، دغه راز يي په مختلفو سيمو کې له ګڼ شمير مساجدو او مدارسو سره په ودانيزو چارو کې مرسته کړې، د نوزاد او غور ترمنځ د لارې په جوړولو کې يي هم ډيرې هڅې وکړې چې اوس د خلکو لپاره لويه هوسايي ده، نوموړی د منصب شوقي نه واو له انتقام څخه يي عفوې ته ترجيح ورکوله.

په خپله اصلي سيمه کې ځيني خلک چې دده په کور او قريبانو يي بيا بيا چاپې وهلې وې، ددوی کور يي د حکومتي عسکرو په توسط لوټ کړی و، او وروڼه او قريبان يي بنديان کړي و، کله چې په سيمه کې بيرته د طالبانو حاکميت راغی، هغو خلکو له خپلې سيمې کډې کولې ځکه ويريدل چې ملا عبدالسلام به انتقام ترې واخلي مگر ملا عبدالسلام ورته احوال وليږه چې د ده لخوا دې خاطرجمع اوسي، يوازې که اسلامي شريعت ورته کوم مجازات ورکول هغه به د محکمې کار وي مگر دی د شخصي انتقام نيت نلري.

ملا عبدالسلام شهيد شو مگر جبهه يي اوس هم فعاله ده او په زرگونو مجاهدين دده د ورور تر مشرۍ لاندې په مختلفو سيمو کې د امريکايي طاغوت په خلاف جهادي عمليات مخ ته وړي.

رحمه الله تعالى



# د شيخ الحديث مولوي عبد العلي ديوبندي ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: شاهد غزنيوال

## زوکړه يې:

شيخ الحديث والتفسير الحاج مولنا عبد العلي (ديوبندي) په کـال ۱۳۱۷ هجـري لمريزکال کې دکندهار ولايت د ژړۍ ولسوالۍ د سنګ حصار په لاکوخيلـوکلي کـې د دغې سيمې دمشهور عالم مولانا شيرمحمد مرحوم په علمـي کـورنۍ کـې زيږيـدلی.د نوموړي پلار مولوي شير محمد او نيکه يې مولوي محمد شريف د خپل وخـت د تکـړه عالمانو له جملې څخه وو.

## زده کړه او تحصيل يې:

اروابښاد مولنا عبدالعلي (ديوبندي) لومړنۍ ديني زده کړي له خپل والد صـاحب څخه ترلاسه کړي،کله يې چې والد صاحب وفات شو نو د ښـوونې او روزنـې مسـؤليت يې د مشر ورور مولوي عبد الله جان صـاحب پـه غـاړه شـوه او څـه مـوده يـې لـه هغـه درسونه ولوستل. نوموړي متوسطه زده کړې د کندهار ښار پـه محمديـه مدرسـه کـې ترسره کړې وروسته د علم په حصول پسې د پاکستان د بلوچستان ايالت مرکزې کـوټې ته لاړ او هلته يې د شالدرې په مدرسه مظهر العلوم کې څه موده ديني علوم ولوستل. شيخ صاحب خپلې لوړې شرعي زده کړې دخيبر پښتونخوا په مشهورې دينې مدرسـې جامعه اسلاميه اکوړه خټک کي په ۱۳۸۳ هق کې سرته رسولې او له همدې مدرسې يې د فراغت سند تر لاسه کړ.

شيخ صاحب ديني زده کړې د خپل وخت له تکړه علماء کرامو ترلاسه کـړې چـې له دې جملې شيخ الحديث مولانا عبدالرحمن ميـانوي،مولوي حمـدالله جـان داجـوي، مولوي عبدالله اجميري او د چارباغ مولوي صاحب د يـادولو وړ دي. څرنگـه چـې دده استادان اکثره له ديوبند څخه فارغ و او يا يې له دې مدرسې سره ژور علمـي تعلقـات درلودل د همدسې مناسبت له امله شيخ صاحب هم ځان ته ديوبندي تخلص غوره کړ.

نوموړي له ديني زدکړو ترفراغت وروسته په خپلې سيمې او دکنـدهارولايت پـه بيلا بيلو سيموکې دتدريس ،دعوت اوارشاد سلسله پيل کړه او ويې کړای شول له دغې لارې څخه يوزيـات شـمير داسـلامي علومـو طالبـان دټـولنې داسـلامي خـدمت لپـاره وړاندې کړي.

## جهاد اومبارزه يې :

کله چې پـه کـال ۱۳۵۷ کـې پـه افغانسـتان کـې کمونسـتانو واک ترلاسـه کـړ او افغانانو يې په خلاف جهاد پيل کړ اروابناد ديوبندي صاحب هم دکندهار ولايت دهغو علماوو په جمله کې چې مسلمانان يې دکمونستانو په خلاف جهاد ته رابلـل فعـال رول درلـود چـې وروسـته پاکسـتان تـه مهـاجر اوهالتـه يـې ددعـوت اوتـدريس ترڅنـگ دمجاهدينو په ديني اوفکري روزنه کې دپاموړ خدمتونه ترسره کړل .

## تدريس او اصلاحي فعاليتونه يې:

په افغانستان کې دکمونستي رژيـم لـه ړنگيـدو او دتنظيمـي وسـله والـو تـرمنځ دخپل منځي جگړو په پيليدو سره يې بيرته خپل تدريس ته مخه کړه او دخپلې سـيمې په کچه يې دمتحاربو (جگړه مارو) ډلو ترمنځ دسولې ډيرکوښښونه وکړل.

دخپل منځي جگړو دله منځه وړلو لپاره دطالبانو داسلامي تحريک پـه رامنځتـه کيدو سره ديوبندي صـاحب تـه پـه خپلـې سـيمې کـې لا د دعـوت او تـدريس زمينـه مساعده شوه، هماغه و چې خپل هيواد ته راستون اودکندهار په مرکـز ي مدرسـه کـې يې طالبانو ته دحديثو تدريس پيل کړل.

ارواښاد ديوبندي صاحب سره لـه دې چـې دطالبـانو دتحريـک اکـثره مسـؤلين اوچارواکي دده شاگردان او زيات عقيدت مندان ول او خپله هم د اسلامي امـارت لـه سترو حمايه کوونکو څخه و خو نوموړي د رسمي وظيفې سره علاقه نه درلوده نو ځکـه يې کوم رسمي مسؤليت نه درلود.

نوموړي د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د شريعت غږ راډيو له څپو څخـه د هيوادوالو فقهي پوښتنو ته ځوابونه ويل چې (د خلاصـون لاره)تـر عنـوان لانـدې ديـوې ځانگړې خپرونې له لارې به نشريدلې او په خپل وخت کې يې ډير زيات محبوبيـت او شهرت موندلی و.

دنوموړي دغه فتـواوې دژونـد پـه بيلابيلـو اړخونـو عبـاداتو ،عقائـدو ،معـاملاتو ،سياست ، اسلامي اقتصاد او احوال شخصيه باندې مشتملې دي .

دغه علمي ذخيره چې شمير يې (۷۰۰) فتواووته رسيږي پـه سـمعي اوبصرـي بڼـه دارواښـاد ديوبنـدي دزامنـو اودهغـه دعقيـدت منـدانو لـه لـوري راټـول شـوي او د هيوادوالو استفادې ته عرضه شوي دي .

ددغې علمي ټـولگې ځانگړتيـاداده چـې هغـه ډيرسـاده ،عـام فهمـه او دمرحـوم ديوبندي صاحب په ډيره خوږه دعوتي لهجه وړاندي کيږي له همدې امله هرڅوک کـه نارينه وي که ښځينه ،که عالم وي که بی علمه ،که لوستوال وي اوکه نالوستی کـولای شي له هغې څخه په اساني سره استفاده وکړي .

**شخصي ژوند يې :**

سره له دې چې شيخ صاحب زمونږ دهيواد په کچه يومشهور علمي شخصـيت وه خو ژوند يې ډير ساده اوله تکلفاتو ليري و، انتهايي ميلمه پـال او ډيـر سـخي سـړی و، اخلاص ، محبت ، تواضع او دمـريض عيـادت يـې ځـانگړي صـفتونه و، هرانسـان اوپـه مجموع کي انساني کرامت ته په ډير احـترام قايـل و، متواضـع پـه دې انـدازه و، چـې

هرعالم به د ده مجلس ته راغی هغه که به دده شاگرد هم وه خوده به درناوی په غرض هغه په خپل ځای کیناوه او خپل ځای به يې ور ته پريښود .

او چې كله به يوڅوک د ديني پوښتنې له پاره ورته راغی نو لومړی به يې دا ورته ویل چې په خپله علاقه او سيمه كي له علماء كرامو څخه په دې اړه پوښتنه كوه ، هغه تر ما ډير اوچت خلگ دي .

**تأليفونه يې :**

سره له دې چې شيخ صاحب خپل عمر ټول په تد ريس ، دعوت اوجهاد كې تيركړی خو دهغه ترڅنگ يې دديني علومو په برخه كې ليكل اوتاليفات هم له پامه نه دي غورځولي .

نوموړي په شرعي علوموكې په پښتو، فارسي او عربي ژبو ښې ليكنې كړې چې هغه په لاندې توگه تشريح كيږي .

١ـ نصرالاحباب على رغم المرتاب / فارسي

٢ـ نصب الخيام فی رد الاوهام /فارسي

٣ـ نصيرالاسلام فی اخبار سيدالانام / پښتو

٤ـ بلوغ المرام فی تعليم الاسلام/ پښتو

٥ـ نصرة الاسلام / پښتو

٦ـ ارشادالمسائل بين الحق والباطل / پښتو

٧ـ قرات خلف الامام /فارسي ناچاپ

٨ ـ دجلالين حاشية ناچاپ

٩ ـ دخيالي اوشرح العقائدحاشية ناچاپ

او الرعاية على الهداية /حاشية د صلوة هدايه او نكاح هدايه . چې دادوې برخې يې چاپ شوي خو بيع او شفع هداية د دې وروستنۍ ورپيښې ناروغۍ له امله نيمگړي ځيني پاته شوې.

**ټولنيز او علمي شخصيت يې :**

شيخ صاحب زمونږ دهيواد دعلميت اوفقاهت د صحنې هغه ځليدونکې ډيـوه وه چې علمي روڼايې دهيواد ګوټ ګـوټ روښـانه کـړی ،او دافغانسـتان دمعـاصروشرعی علماووپه منځ کې ديوه جامع اومنلي علمي شخصيت په توګه خپل ولس اوټولنې ته نـه هیریدونکي علمي خدمتونه ترسره کړي دي.

نوموړي د افغانستان دعلمي قشرپه منځ کې دشيخ التفسير والحديث غوره لقب په لامنازعه توګه دځان کړی او دعلم التفسير اوحـديث ترڅنـګ دفقـه، اصـول الفقـه، صرف، نحو، بديع اوبيان دعلومو هم ديوه ماهر استاذ په حيث پيژندل شوی عالم وه.

دافغانسـتان علـماوو اوددينـي علوموطالبانوهغـه تـه دعلمـي اسـلافو اوروحـاني اکابرينودوروستي يادګارپه سترګه کتل .مرحوم ديوبنـدي صـاحب دخپلـو دغـو ټولـو فضايلو تر څنګ دبي سارې تقوا اوفضيلت نمونه هم وه.له تکبر،تظاهر،حسـد،اوبدبيني څخه يې ډيربد راتلل؛له هيچا سره يـې دمقـابلې اوسـيالي خيـال پـه سرکـې نـه درلـود اوټولوته ديوه قدرمن اودرانه استاذ په توګه منل شوی محبوب شخصيت و.

ارواښاد ديوبندي صاحب د خو دخواهۍ ، خود پرستۍ اوځان ستايلو دبـدمرغې ناروغې له اغيزوڅخه په بشپړه توګه ځان روغ سـاتلی وه اوچـاهم د ده پـه ټـول علمـي ژوند کې د دغې اخلاقي ناروغۍ آثارنه وه ليدلي.

مرحوم ديوبندي صاحب د دومره زياتو فضايلوڅښتن و چې په دغې لنډې ليکنې کې دهغوئ راټولول له امکانه وتلې خبره ښکاري.

زه غواړم دمشت نمونه خروارپه توګـه دلتـه يـواځې دخـدای ښـلي دژونـد يـوې اهمې تاريخي کارنامې ته اشاره وکړم اوهغه داچې:

نوموړي په خپلو علمي فتواو کې چې دشريعت غږ راډيـو لـه لارې بـه دخلاصـون لارې ترعنوان لاندې دده په خواږه غږکـې خپريـدې دهـرې استفتا اوپوښـتنې ځـواب دکتاب الله ،نبوي احاديثواوفقهي علمـي دلايلوپـه رڼـاکې پـه ډيـر صراحـت ،فصـاحت

اوبلاغت سره ورکاوه چې دعلامه ديوبندي صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ له دغې علمي سلسلې څخه زمونږدېولنې ډيرنارينه اوښځينه اوريدونکي په کافي اندازه مستفيدشوي دي.

نومونړی ددين په چاروکې ډيرصريح ،جرئ اوپه دې هکله يې دهيچا دملامتي پروانلرله ، اودغه صفت دالله تعالی له لوري دهغه په مخلصو بندگانو يوه الهي پيرزوينه ده.

مرحوم ديوبندي صاحب دعلميت ،اوفقاهت ترڅنگ داسلامي دعوت اوبلنې دميدان يوحکيم اوماهر داعي هم و .هغه به د دعوت په ډيروحکيمانه اسلوبواو خوږې ژبې سره خلگ داسلام دسپڅلي دين داحکاموتبليغ ته رابلل . هيڅکله يې دهيچا په اړه له تلخ زباني اوتسرع څخه کارنه اخيست اودفقهي مسايلوپه استحضارکې الله تعالی ورته ځانگړې ملکه ورکړې وه.

په اسلامي شريعت کې ديوه عالم مفتي لپاره د مسألې دحقيقت اوځانته دهغې دټولو ابعاد معلومول داسلامي فتوی له اصولو او اساساتوڅخه بلل کيږي اومرحوم ديوبندي صاحب د دغه ضروري اصل په نظرکې نيولوسره دټولو استفتاأتو د حل په اړه فتوا ورکوله .

خلاصه خبره داده چې دعلامه ديوبندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د علمي، جهادي ،اخلاقي اواجتماعي شخصيت دټولوفضايلو اوځانگړيتوبونواحتوا اوپه هغوئ رڼا اچول ددې ليکنې ترحوصلې وتلې خبره ده .

**وفات يې :** بالاخره دلوي څښتن له قضا او تقدير سره سم دغه دعلم اوفضيلت لرونکی شخصيت د۱۴۳۰ هجري قمري کال د ذوالقعدې دمياشتې په ۱۴ ددوشنبې په ورځ له دغې فاني نړۍ څخه دتل لپاره سترگې پټې او خپله روح يې اصلي مالک ته وسپاره .

روح دي خوشاله ، اوعلمي لاره دې دده په روزل شويو علمي ځوانانو پاللې او سي.

# د شهید قاري ضیاء الدین فاروق ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

د ۲۰۱۰ میلادي کال لومړی میاشتې وې،هغه وخت چې په افغانستان کې د غربي یرغلگرو په خلاف جهاد د گرمښت او حماسه سازۍ وروستي ټاپي تـه پورتـه شـوی و. هغه کال چې د کفري یرغلگرو لپاره د اشغال په موده کې تـر ټولـو خـونړی کـال وبلـل شو.

د خپلې ژورنالیستیکي دندې په مهال مې اراده کړې وه چې د فاریـاب ولایـت د جهادي چارو له مسؤل سره مرکه ترسره کړم،د هجرت په دیار کې مې د یـوه سـپیره او غریبانه کور دروازه وټکوله،شیبه وروسته کوربه راووت او له روغبړ وروسته یې د یوې ختیځې او زړې کوټې پر خوا رهبري کړم.

په اطاق کې یو د منځني قد، خوشرویه ځوان ناست و، پـه ډیـره مینـه یـې راسره روغبړ وکړ، یو لاس یې تړلی او داسې معلومېده لکه زخم یي چې پانسمان کړی وي. له موجودو ملگرو مې د فاریاب ولایت د جهادي چارو د مسؤل قاري فاروق پوښتنه وکړه چې زه یي په لټه راغلی وم،هغوی راته همدا خوشرویه ځوان معرفي کړ چې همدا قاري صاحب دی.

له قاري صاحب ضیاءالدین فاروق سره مې اوږد مجلس او مطبوعاتي مرکه وکړه، نوموړی له هغو کسانو و چې په یوه مجلس یي د هر چا په زړه کـې ځـای پیـدا کـولای شوای، ډیر متواضع، خاضع ، مؤدب او ورسره یـو سـوچه او دسـنگر او د قربـانۍ ډگـر واقعي مجاهد و هغه چې سر، مال او ټوله هستي یي د الله تعالی د دین گټلـو او د کفـر د شکست ارمان ته وقف کړې وي.

قاري ضیاء الدین فاروق صاحب مې په همدې لیدو زړه ته ښکته شو خو وروسته مې چې وپیژاند رامعلومه شوه چې دغه دیرش کلن ځوان د خپل عمر په تناسب الله تعالی د لویو کارونو لپاره پیدا کړی. هوکې قاري ضیاء الدین د هیواد په شمال خصوصا فاریاب، سرپل او جوزجان کې د صلیب ضد جهاد له بنسټ ایښودنکو څخه بلل کیږي. هغه چې په خپل مخلصانه،جهاد، همت او قربانۍ یي هلته د جهاد ډیوه بله کړه، اولس ته یي جهادي فکر او روحیه ورکړه،ځوانان یي وروزل او وروسته په همدې لاره کې د شهادت په مرتبه فائز شو.

راځئ دلته ددې ګمنام اتل د ژوند او کارنامو له ځینو نمونو خبر شو تر څو مو یي په تذکر د یوه حقیقي مجاهد د یاد ژوندي کولو تنده ماته شوي وي.

## قاري ضیاء الدین فاروق

قاري ضیاء الدین فاروق د حاجي عبدالباقي زوی په قوم ازبک په ۱۳۵۸ هـ ش کال کې د فاریاب ولایت د دولت اباد ولسوالۍ د توپخانې په کلي کې د یوه سیمه ایز مشر / بای په کورنۍ کې دنیا ته راغی.

لومړنۍ زده کړې یي په همدې سیمه توپخانه کې د یوه سیمیز عالم مولوي شمس الدین په مدرسه ترسره کړې او بیا د قرآن کریم د حفظ لپاره شیرین تګاب ولسوالۍ کې مدرسې ته لاړ،د قرانکریم حفظ یي په ډیره کمه موده کې پای ته ورساوو.

وروسته د دیني زده کړو لپاره پاکستان ته لاړ، د پاکستان د پیښور د پبو کمپ په یوه مدرسه کې یي څه موده دیني تعلم وکړ. وروسته د پاکستان به پنجاب کې رحیم یار خان سیمې ته لاړ او هلته یي د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نوم مشهوره مدرسه کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ.

دغه مهال چې په افغانستان د اسلامي امارت د واکمنۍ کلونه وو او د کابل په شمال کې جګړه روانه وه،قاري ضیاء الدین که څه هم عمر یي کم و خو د جهاد شوق

دې ته اړ کړ چې کابل ته لاړ شي او جهاد ته په تلونکو طالبانو کې ځان داخل کړي، نوموړي ډېر کوښښ وکړ چې جهاد ته لاړ شي خو د عمر د کموالي له امله ورته جهاد ته د تلو اجازه ورنکړل شوه.

قاري ضیاء الدین وروسته هرات ته لاړ او هلته یې د فاریاب ولایت د مشهور جهادي مشر او د اسلامي امارت د رهبري شورى عضو مولوي عبدالرحمن صاحب په واسطه هڅه کوله چې جهادي صف ته داخل شي.

مولوي عبدالرحمن صاحب وايي: نوموړي د جهاد ډېر زیات شوق درلود،ما ورته وویل چې تاسو د امارت د اصولو له مخې تراوسه کشر یاست او انتظار وکړئ.

خو قاري صاحب به ویل چې د جهاد لپاره جرأت او د قربانۍ شوق ضرور دی چې زه دا دواړه لرم، خو بیا هم نوموړي تر هغه مهال په هرات ولایت کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ تر څو د امریکایي یرغل په نتیجه کې د افغانستان لوی ښارونه د اسلامي امارت له لاسه ووتل او امریکایي نظام د افغانستان په پاکه خاوره حاکم شو.

## دامریکا ضد جهاد کې تأسیسي رول

د امریکایانو له یرغل وروسته قاري صاحب فاروق تر یوه کال پورې په خپله سیمه کې واوسېد او بیا د جهاد او جهادي تربیې په نیت له څو تنو نورو ملګرو سره له کوره مسافر شو، نوموړی د افغانستان او پاکستان تر منځ قبایلي سیمو ته لاړاو هلته یي په غرنیو سیمو کې د مجاهدینو په تدریبي مراکزو کې جهادي اعداد پیل کړ.

نوموړي په دې سیمه کې له بیلابیلو مجاهدینو سره شناخته شو چې له دې جملې یي له شهید قاري محمد طاهر فاروق سره هم تعارف پیدا شو. قاري ضیاء الدین صاحب د جهاد له تربیت حاصلولو وروسته د لومړني اقدام په حیث د جهاد دعوت پیل کړ تر څو د مدرسو طالبان، د کلیو ځوانان اوعام اولس د جهاد په فرضیت او ضرورت خبر کړي.

د نوموړي يو ملګری وايي چې دغه مهال موږ پـه مدرسـه کې درس وایـه، قـاري صاحب به هلته راتلو او د خپلې سيمې طالبان يي جهاد ته دعوتول، نوموړي په له ځـان سره يو کوچني ډي وي ډي پلئير هم درلود. طالبانو او عامو خلکو ته به يي په خصوصي مجالسو کې جهادي ويډيوي اصدارات ښودل او په دې طريقه به يي جهاد ته دعوتول.

قاري صاحب وروسته په خپله ولسوالۍ دولت اباد کـې کليوالـو ځوانـانو تـه هـم دغه دعوت ورساوو او په دې ډول ګڼ شمير ځوان جهاد ته تيار کړل.

قاري صاحب په ۲۰۱۰ ميلادي کال کې د يوې مصاحبې په مهال راته په دې ولاياتو کې د جهادي کار د ابتداء په اړه داسې وويل: مونږ لومړی هلته جهادله همدي دعوتي کارونو څخه پيل کړمونږ جومات په جومات او کورپه کور وګرځيدو او هرسړی مولـه خپل هدف اوفرض شوي جهاد څخه خبرکړ حتی داسي شوي چي مجاهدين بـه دلاري په سرناست وو او هرپه لاره تيريدونکی به يي راګرځاوو او په دي اړه به يي خپل عرض ورته وړاندی کاوو. دي کار دخلکو اذهـان خـورا روښـانه کـړل مـونږ يـي وپيژنـدلو او اعتماد يي راباندی وکړ او په خپلو سترګو يي وليدلو چي ددشـمن دتبليغـاتو بـرخلاف ټول دهمدي کليو اوسيدونکي او دهمدي ولس بچيان يو او بيګانه نه يو.

## جهادي عمليات

قاري صاحب او نورو جهادي ملګـرو يـي پـه خپلـه سـيمه کـې لـومړني جهـادي عمليات په چريکي بڼه پيل کړل،د فارياب،جوزجان او سرپل ولايت مجاهدينو په پيـل کې په ګډه چريکي عمليات کول او هميشه بـه پـه سـيار حالـت کـې وو. څرنګـه چـې ددوی شمير کم او د وسلو او امکاناتو له نګاه لـه تنګلاسـۍ سره مخـامخ و نـو بـه يـي ددښمن په ضعيف مرکز حمله وکړه او بيا به له هغې سيمې ډير لري بل ولايت ته لاړل، په همدې ډول په يادو دری واړو ولاياتو کې په يوه وخت جهادي عمليات روان ول.

وروسته چې ددرست افغانسـتان غونـدې پـه فاريـاب ولايـت کـې هـم جهـادي عمليات علني او په لوړ کم او کيف سره پيل شول، قـاري ضـياء الـدين صـاحب د يـوه

وتلي مجاهد په حیث په کې د پـام وړ نقـش درلـود نومـوړی ډیـره مـوده د فاریـاب د دولت اباد ولسوالۍ نظامي مسؤل و او وروسته ۲۰۰۹ میلادي کال کې د فاریاب د والي یا عمومي جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو.

په دې مرحلو کې د فاریاب په بیلابیل سیمو کې پـه دښـمن گـڼ شـمیر مرگـوني بریدونه او لوی عملیات ترسره شول،چې په ترڅ کې یي د انـدخوی دولسـوال او امنیـه قومندان دغه راز د شیرین تګاب امنیه قومندان او ددښمن گڼ نور د سر چارواکي لـه منځه لاړل.

په ۲۰۱۰ میلادي کال کې جهادي ساحه دومره پراخه شوه چې مجاهدینو په دولت اباد، شرین تګاب، خواجه ناموسی، المار، قیصار، چلګزي ، ګورزوان ، بلچراغ او لـولاش ولسوالیو کې ډیرې سیمې تر خپل کنترول لاندې راوستلې. دغه راز د فاریاب په ډیری ولسوالیو کې د امـارت ملکـي تشـکیلات او محـاکم هـم فعـال شـول چـې پـه دې ډول فاریاب ولایت د جهاد په یوه ویاړمن او نه تسخیریدونکي سنګر واوښت .

## شهادت

قاري ضیاء الدین فاروق له اوږدې او مخلصانه جهادي مبـارزې وروسـته د ۲۰۱۰ میلادي کال د اکتوبر په اوومه هغه مهال ددښمن په برید کې په شهادت ورسید کلـه چې د نوموړي د ژوندي نیولو یا وژلو لپاره بهرنیو یرغلګرو او داخلي عسـکرو د دولـت اباد ولسوالي د قرغن قدق په سیمه لویه چاپه واچوله.

دغه کلی چـې د ولسـوالي مرکـز تـه څیرمـه پـروت دی،قـاري صـاحب لـه نـورو مجاهدینو سره یوځای په کې اوسیدو او له دې ځایه به یي په لویه لاره ددښـمن قـواوو ته کمین نیو. خو کله چې دښمن خبر شو په دې سیمه یي د هوا او ځمکې له لارې لوی چپاو راوړ، قاري صاحب د محلي خلکو د سلامتۍ په خاطر له کلي ووت او یوې دښتي سیمې ته لاړ، خو هلته ددښمن لخوا کشف شو، لومړی وربانـدې دښـمن هـوایي بریـد وکړ چې یو ملګری یي په کې شهید شو، اما وروسته نوموړی له دریـو نـورو مجاهـدینو

سره له دښمن سره په مخامخ جگړه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسيد. انا لله و انا اليـه راجعون

د نوموړي جسد له خپل پلرني کلـې لـرې د بلچـراغ ولسـوالۍ تـه نـږدې ميمنـه قشلاق په سيمه کې خاورو ته وسپارل شو.

## د شهيد قاري فاروق د شخصيت په اړه

لکه وړاندې چې وويل شول شهيد قاري ضياء الدين فاروق لـه يـوه ځمکـه وال او ماړه خاندان سره تړاو درلود. پلار يي دخپلـې سـيمې خـان يـا بـاى و. ځمکـې، باغونـه، پيسې اوډير امکانات يي درلودل، خو نوموړي کله هم ددې شيانو شوق ونکړ.

خپل دنيوي هوسونه اوعشرتونه يي هير کړل،د آرام او راحت ژوند ته يي شا کـړه او خپل ټول عمر يي د جهاد، هجرت او مبارزې ستومانيو ته وقف کړ.

د نوموړي نږدې ملگري وايي چې قاري صاحب يـو پـاک او تقـوه دار انسـان و. د بيت المال له پيسو سره يې خورا زيات احتياط کاوو، که څه هم مشر و مگر خپلـه يـي مالي چارې نه ترسره کولې، بلکې يو بل ملگرى به يي د مالي په حيـث مقـرر کـړى و او ټولې پيسې به له هغه سره وې.

د جهاد يي خورا زيات شوق درلود، له کشرتوبه يي د جهاد ارمان په زړه کې و، او د امريکايانو په راتگ سره يي تر هغو جهاد ته ادامـه ورکـړه ترڅـو پـه همـدې لاره کـې دشهادت لوړ مقام ته ورسيد.

رحمه الله تعالى



## د مرحوم مولوي محمدرستم حنفي صاحب ژوند اوکارنامو ته کتنه

لیکنه: مجاهد

شهید مولوي محمد رستم حنفي د ملک حبیب الله خان زوی د ملک عبـدالقادر خان لمسی پـه قـوم نورسـتانی او القریشيـ د افغانسـتان د نورسـتان ولایـت د دوآب ولسوالۍ د کلم د سیمې د شهیداء کلي اوسېدونکی په کال ۱۳۸۵ هـ ق کې يي په یـوه دینداره او علم دوسته کورنۍ کې دې فاني دنیا ته سترګې وغړولې .

تعلیم

شهید مولوی صاحب محمد رستم حنفي ابتدایي دیني تعلیم د خپـل کـلي د یـو سپیڅلي عالم عبدالقادر څخه پیل کړچې تر دیارلس کلنی پورې یـې دغـه د تعلـیم او تربیې سلسله جاري وه. وروسته دخپل مشفق او دین پرست والد صاحب په هدایت د نورو زدکړو لپاره مولوی صاحب عبدالرزاق تـه ولیـږل شـو چـې مولـوی عبـدالرزاق د ګزین په مولوی صاحب سره شهرت درلود.

د شهید مولوی صاحب محمد رستم حنفي والد محترم اګر که خپله عـالم نـه و خو د علم او د علماو سره يې زښته زیاته مینه درلوده له همدې کبله یـې غوښـتل او دا يې یو ارمان و چې خپل دغه لایق زوی په دیني علومو سمبال کړي او دجامعې لپاره يې مصدر د خدمت د وګرځوي.

شهید مولوی صاحب هم د خپل والد محترم په دغه ارمان پوه و او په ډېـر شـوق سره يې د مولوی عبدالرزاق سره دیني زدکړې ته دوام ورکړ.

پـه جهـادي بهـیر کـې ونـډه: کلـه چـې یرغلګـرو او وحشيـ روسـیانو د داخـلي ګوډاګیانو او لاس پوڅو خلقیانو او پرچمیـانو پـه مرسـته پـه ګـران هیـواد افغانسـتان

باندې کرغیړن تجاوز وکړ او د افغانستان جهاد پروره علماوو د دوی پر ضد د جهاد فتوای ورکړه او د جهادي مبارزې اعلان یې وکړ په دغه وخت کې شهید مولوی محمد رستم حنفی د اولسو (۱۷) کالو و. څرنګه چې د ګزین مولوي صاحب د خپلې سیمې یو مخور او مشر و نو د وخت د تقاضا مطابق د خلکو لخوا جهادي قیادت هم ده ته وسپارل شو. د ګزین مولوي صاحب عبدالرزاق خپله جهادي مبارزه پراخه کړه په همدغه اساس یې د مولوي رستم صاحب شهید والد محترم ملک حبیب الله خان یې د جهاد عمومي قومندان وټاکه . ملک حبیب الله خان د غربي نورستان په سیمه کې په جهادي مبارزه پیل وکړ نو له هم هغه وخت څخه شهید مولوي رستم حنفي د خپل پلار په قیادت کې په جهادي بهیر کې شامل شو او په ډیره زړورتیا او دیانت سره یې دغه سپیڅلې مبارزه پرمخ بوتله.

پاتې دې نه وي چې د نوموړي شهید والد محترم شخصیت او قامت ټول د جهادي مبارزې سره برابر و. قوي، زړور، او د جګ قامت انسان و له همدې کبله یې په خلکو کې د حبیب الله خان دراز په نوم سره شهرت درلود. د همدغه قوي جسامت او جهادي ذهنیت په اساس حبیب الله خان په ډیر کم وخت کې وکولی شول چې جهادي مبارزه ګړندی کړي چې له کبله یې په ډیر کم وخت کې د دوآب ولسوالی فتح او جهادي مبارزه یې د لغمان ولایت د علینګار ولسوالی ته وغځوله.

## هجرت

اګر چې د شهید مولوي رستم صاحب کورنۍ هجرت نه دی کړی وجه یې داد ه چې غربي نورستان یوه غرنۍ او لرې پرته سیمه ده چې هیڅ کله هم د غاصب رژیم د ځواکونو تسلطورباندې ندی راغلی حتی چې د لغمان بعضې مجاهدینو دغې سیمې ته هجرت کاوو.

اما خپله شهید مولوی صاحب ګاونډي هیواد پاکستان ته د نورو دیني زدکړو لپاره هجرت وکړ. دیني تعلم یې د پاکستان د چارسدې د مشهورې مدرسې دارالعلوم اسلامیه چارسده څخه پیل کړ. د یوه کال د تیریدو څخه وروسته یې د مردان د

سعادت دارالعلوم طورو کې داخله واخیسته. تر ځلورمې درجې پورې يې درسونه همدلته ووېل او بيا کوهستان ته ولاړ او هلته يې د داسو په سیمه کې په دارالعلوم اسلامي امينيه کې خپلو درسونو ته ادامه ورکړه. بيا د مانسهرې بټګرام تاکوټ ته ولاړ او د سيمې د مشهور عالم مولانا شهزاده سره شاګرد شو چې د يو څه درسونو د لوستلو څخه وروسته يې د مردان سعادت دارالعلوم ته راوګرځيدو او د مشهوره عالم مولانا غلام محبوب سره يې پاتې فنون ولوستل. بيا د صوابۍ دارالعلوم تعليم القران شاه منصور ته د چيکسرۍ مشهور عالم ماهرالمعقولات مولانا عنايت الله چيکسرې د معقولاتو د تدريس لپاره راوستلی شو نو مولوی صاحب محمد رستم حنفی هلته تکمله ولوستله. همدغه کال کې ورسره د امارت اسلامی ځنې مشران هم ورسره همدرسه و لکه شهيدملا اختر محمد عثماني وغيره. اومولوي رستم حنفي صاحب بيا ضلع سوات اجمير ته ولاړ او د مولانا محمد صديق سره يې وړه دوره وکړه. او د همدغه کال په رخصتيانو کې يې د افغانستان د علماو په قطار کې مشهوره څېره حضرت شيخ الحديث محمد نعيم (المعروف کوڼ اخندزاده صاحب) رَحِمَهُ اللَّهُ سره د پيښور د بوړۍ په سيمه کې د ضياء المدارس په مدرسه کې تکراراً وړه دوره وکړه.

شهيد مولوي رستم حنفي صاحب په کال ۱۹۹۵ ميلادي کې د سيمې د مشهورې ديني ادارې دارالعلوم حقانيه څخه د فراغت سند ترلاسه او د فضيلت دستار يې په سر کړ.

## د جهادي مبارزې دوهم پړاو

چې کله مولوی صاحب په دارالعلوم حقانيه کې دوره کوله نو په همدغه کال د مرحوم امير المومنين ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د افغانستان د طالبانو اسلامي تحريک ظهور وکړ. مولوی صاحب چونکه د تحريک د شروع څخه د مخه د ختيځو ولايتونو د طالبانو د اهل سنت والجماعت د تنظيم د موسسينو څخه و او د نورستان او لغمان ولايتونو د اهل سنت والجماعت صدر هم و. نو د تحريک د شروع کيدو سره د شورى مجلس يې وغوښت او د يوه هيئت په صورت کې يي کندهار ته سفر وکړ.

هلته يې د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره يي ملاقات وکړ او چې کله بيرته راغی نو شورى ته يې دقيق معلومات ورکړل نو شورى په متفقه توګه د اسلامي تحريک ملاتړ اعلان کړ.

د مدرسې د دستاربندی څخه سم دستي وروسته پر ځای د دې چې خپل کور ته ولاړ شي د کندهار په لور په تشکيل کې ولاړ. او په کندهار کې د ملا صاحب په هدايت په يوه تشکيل کې نيمروز ولايت ته ولاړ. هلته له څه وخت تېرېدو وروسته د دښمن له خوا تهاجمي عمليات وشول. چې د سحر د لمانځه په وخت جګړه پيل شوه چې له کبله يې د ننګرهار ولايت مشهور عالم مولوي عزت الله عارف او مولوي يحيی په شمول ډير ملګري شهيدان شول. او حنفي صاحب زخمي شو. چې د علاج لپاره د پاکستان د بلوچستان صوبې کوټې ښار ته منتقل کړی شواو د تداوی څخه وروسته تر دې وخته پورې جنوبي ولايتونه فتح شوي وو. نو له همدې کبله خوست ولايت ته راغی او بيا د هغه ځای څخه په بيلا بيلو وختونو کې د جګړې اول خط ته د ملګرو د تربيت او مورال لوړولو لپاره چهارآسياب او نورو خطوطو ته تلو. بيا له دې ځای څخه بيرته قندهار ته ولاړ. او هلته د کنړ او د لغمان او نورستان د نمايندګی مشري يې کوله. او کله نا کله به مرحوم ملا صاحب د مشورې لپاره هم غوښت .

چې کله د مشرقي ولايتونو او د کابل د فتح هڅه پيل شوه نو شهيد مولوي صاحب رستم حنفي د شهيد ملا بورجان په مشرۍ د مجاهدينو په کاروان کې شامل شو او د کابل تر فتحې پورې د مجاهدينو سره اوږه په اوږه په جهادي مبارزه کې بوخت و.

## دندې او وظايف

چې کله د افغانستان اسلامي امارت مجاهدينو کابل د الله تعالی په فضل او مرستې سره فتح کړ شهيد مولوي صاحب رستم حنفي د ښهر سازۍ او مسکن وزير وټاکل شو. او چې کله دغه وزارت د فوايد عامې په وزارت کې مدغم شو مولوي

صاحب رستم حنفي د فواید عامې د وزارت دوهم معین مقرر شو او د اسلامي امـارت د واکدارۍ تر اخره پورې په هم دغه دنده کې پاتې شو.

د وزارت د مهمې دندې د سرته رسـولو سره سره مولـوي صـاحب بـه کلـه کلـه د ملګرو د احوال پرسۍ او مرستې لپـاره د جګـړې اول خـط تـه هـم ورتلـو او ملګـرو او مجاهدینو ته به یې د جهادي امور په رابطه عالمانه ویناوې او توصیې کولې. او د جهاد په فضایلو به یې تاثیر لرونکې ویناوې ورته اورولې.

## د صلبیانو پر ضد جهادي مبارزه

د میـزان پـه ۱۵ مـه کـال ۱۳۸۰ لمریـز کـې کلـه چـې یرغلګـرو صـلیبیانو د وحشيـ امریکایانو په مشرۍ زموږ په ګران هیواد افغانستان باندې ناوړه تجاوز وکړ . شهید مولـوي صاحب رستم حنفي د یوه تکړه مجاهد په څیر د جهاد په ړومبۍ لیکه کې ودریـد او بیـا د جهادي مبارزې د دوام لپاره خپل پلرني ټاټوبي نورستان ته ولاړ او له سره یې خپله جهـادي مبارزه په ډېر شجاعت او زړورتیا سره پیل کړه. خپل ملګري یې د جهاد لپاره منظم کړل او وخت په وخت یې پر دښمن تعرضي عملیات وکړل.

د شهید مولوی صاحب او د هغه د ملګرو په شجاعت او د الله تعالی پـه مرسـتې په نورستان کې جهادي بهیر ژوندی او ګړندی شو چې وارخطاء دښمن د مجاهـدینو د ځپلو لپاره څو څو وارې پر مجاهدینو باندې وحشـیانه بمبـار وکـړ. چـې د نورسـتان د شوک کلي هغه بمبارچې په نتیجه کې یې د هغه سیمه ۳۰ تنه عـام وګـړي شـهیدان او ګڼ شمیر نور یې ټپیان کړل د یادولو وړ ده. خو الله تعـالی هـر ځـل مولـوی صـاحب د دښمن له آذیت روغ او رمټ وساته.

په کال ۲۰۱۱ میلادي کې مجاهـدینو د دو آب پـه ولسـولی کـې د شـهید مولـوی صاحب رستم حنفي په مشرۍ د یادې ولسوالی د نیولو لپاره قوي عملیـات پیـل کـړل چې په نتیجه کې د دوآب ولسوالی د مجاهدینو لخوا فتح شـوه وروسـته بیـا وارخطـاء دښمن بمباري وکړه چې له کبله یې لسګونه ملکیان شهیدان او ټپیان شول او نومـوړی

مولوي صاحب هم پکې پـه سر بانـدې زخمـي شـو. چـونکې پـه سـيمه کـې د عـلاج او معالجې لپاره خاص تدابير نشته نو د مولوی صاحب د سر زخم پـه سرطـان بـدل شـو. لکه څرنگه چې د نورستان د ولايت د جغرافيوي جوړښت له کبله د انتقال اسباب هـم د نيست سره برابر دي د مولوی صـاحب پـه ټپونـو بانـدې څـو مياشـتې تيـرې شـوې. بلاخره دهمدې مرض له امله د فبروری په ٦ مه کال ٢٠١٢ ميلادي کـې د دوشـنبې پـه ورځ د رب ذوالجلال سره د ملاقات په سفر روان شو او خپل روح يې خپل اصلي څښتن ته وسپاره. انا لله و انا اليه راجعون

د مولوي صاحب د جنازې لمـونځ د پاکسـتان پـه مـردان بخشـامي سـيمه کـې د نوموړي د ورور شيخ الحديث مولوي محمد خالد صاحب په امامـت اداء او همالتـه د هجرت په دار کې خاورو ته وسپارل شو.

د نوموړي اړوند يوه کرامتي خبره دا وه چې په ياد تـاريخ کلـه چـې پـه دوه بجـو مولوی محمد رستم حنفي له دې فاني دنيا څخه سترگې پټې کړې او په ۷ بجو ماښـام يې د جنازې د مانځه د آداء کولو نيته او وخت وټاکل شو نو په دومره کم وخت کې په دومره زياته اندازه علماو، طالبانو ، مجاهدينو او عامو خلکو گډون وکړ چـې تصـور يـې نه کېده.

## خصوصيات او خوږې خاطرې

الله تعالى مولوی صاحب ته ډير ښه صفات ورکړي وو چې يو څو يې په لاندې ټکو کې د يادولو وړ دي.

۱: صبر او استقامت

۲: تقوی او حلم

۳: سخاوت او ميلمه پالنه

۴: شجاعت او بهادري.

۵: د ملگرو سره په ورين تندي مخامخ کېدل.

**٦: هميشه د ملگرو د انسجام او اتحاد په فکر کې کېدل.**

**٧: د اختلافاتو څخه ډډه کول او ملگرو ته په دې رابطه توصيه کول.**

**٨: هميشه په حق باندې ودرېدل.**

**٩: عاجزي او انکساري.**

**١٠: په ملگرو کې محبوبيت او مقبوليت**

**د يادولو وړ ده چې شهيد مولوی صاحب محمد رستم حنفي درې ورونه، يوه کونډه ، دوه زامن او درې لوڼې شاته پرېښودې. خدای تعالی دې د شهيد جهادي او علمي خدمتونه په خپل دربار کې قبول کړي**

**روح دې ښاد او ياد يې تل پاتې اوسه**



# د مرحوم شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب ژوند ته لنډه کتنه

لیکنه: قاري سعید

اراده مې کړې وه چې د اسلامي امارت د یو لوړ رتبه چارواکي او مشر عالم شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب ژوندلیک مرتب او له کورنۍ څخه یې معلومات را غونډ کړم.د هجرت په مینه کې د نوموړي د کور په تلاش ووتم. ما فکر کاوو چې مولوي غلام حیدر صاحب لکه څنګه چې له سترو علماء کرامو او د اسلامي امارت له لوړ رتبه اراکینو څخه و او د خپل عمر په اوږدو کې یې ددین ستر خدمتونه سرته رسولي. نو دنیایي ژوند به یې هم همداسې د ترفه او تنعم له سهولتونو ډک تیر شوی وي.کور به یې د کلي او ګاونډ مشار الیه وي او د لږ تر لږه د خپلې علاقې او سیمې د معیار مناسب میشت ځای به ترې په میراث پاته وي.

خو زه خبر نه وم چې د الله تعالی ددین د خادمانو لکه څومره چې د آخرت برخه درنه او ودانه وي د دنیا برخه یې همدومره له التفاته غورځولې او بې اهمیته بللې وي.د مرحوم مولوي غلام حیدر صاحب میشت ځای مې له ډیرو پوښتنو وروسته وموند. دا هغه کور و چې نوموړي په کې د عمر وروستي ډیر کلونه تیر کړي و. د یوه جامع مسجد تر څنګ یوه د خټو کوډله چې د فقر او مسکنت علائم ورباندې نمایان ول.د شیخ صاحب مرحوم زوی مې په ډیره مینه استقبال وکړ او بیا یې د شیخ صاحب مرحوم د غریبانه مهمانخانې په خوا رهبري کړم.د شیخ صاحب مرحوم له میشت ځای څخه د معنویت یو عجیب اغیز محسوسیده. د شیخ صاحب له زوی سره مې د نوموړي په ژوند اوږدې خبرې وکړې. هغه د شیخ صاحب مرحوم د علمي،جهادي او

تدريسي ژوند په باره کې مفصل معلومات راکړل. په پای کې يې وويل شيخ صاحب يو پرهيزگار او زهد پروره عالم و. له دنيا سره يې نه لگيده له نوموړي څخه يوازې دغه يوه الماری کتابونه په ميراث پاته دي چې مخامخ يې وينې.

ما چې د اسلامي امارت د نظامي محاکمو د عمومي رئيس شيخ الحديث مولوي غلام حيدر صاحب هغه ستر خدمات او او اخلاص او دا غريبانه ژوند سره پرتله کړل نو ذهن ته مې اوس هماغه د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تاريخي وصيتونه راځي چې خپلو ملگرو ته به يې ويل: كونوا ينابيع العلم مصابيح الهدى أحلاس البيوت سرج الليل جدد القلوب خلقان الثياب . تعرفون في أهل السماء، وتخفون في أهل الأرض". ژباړه : شئ او له ځانه جوړ کړئ د علم چينې، د هدايت څراغونه ، د خپل کورسره ملازمين(لکه هغه فرش چې هميشه په کورکې غوړيدلی وي) او شئ لکه د شپې مشالونه چې زړونه مو نوي( ژوندي وي ) او جامې مو زړې وي د اسمان د اهل تر منځ پيژندل شوي او د ځمکې د خلکو تر منځ پټ او ناپيژونديه ياست.)

واقعا چې شيخ صاحب مرحوم هم همداسې ژوند تير کړ. هغه د علم چينه وه او هدايت څراغ و، نه خو يې له دنيا سره زړه وتاړه او نه يې هم د ځمکې په مخ د شهرت او عشرت تمنا وکړه. هغه د هغو کسانو له جملې وه چې يوازې د الله تعالی په نزد متعارف کيدل او مقبوليت د ځان لپاره کافي گڼي.

## مرحوم شيخ الحديث مولوي غلام حيدر صاحب

شيخ مولوي غلام حيدر صاحب په ۱۹۴۵ ميلادي مطابق ۱۳٦۴ هجري قمري کال کې دکندهار ولايت دښوراوک ولسوالۍ د برېڅو د عليزو په کلي کې دسيمې دمشهور عالم ملافقيرمحمد اخند په کور کې دنيا ته سترگې وغړولې. د نوموړي پلار يو عالم او ديندار شخص و چې د خپل زوی تربيې او تعليم ته يې ډيره توجه درلوده.

په هماغو کلونو کې چې په افغانستان تاريخي وچکالي راغلې او د ښوراواک په شمول د اکثره سيمو مالداران او نور اوسيدونکي د اوبو د نه شتون له امله کډوالۍ ته

مجبور شول. د مولوي غلام حيدر صاحب کورنۍ هم لـه ښـوراوک څخـه د کنـدهار د پنجوايي ولسوالۍ زنګاوات سيمې ته وکوچېده او دلته د شيخ صاحب پلار مولوي فقير محمد صاحب د ګريندي په علاقه کې امامت ونيو. همدغه مهال مولـوي غـلام حيـدر صاحب هم له خپل پلار څخه سبقونه ويل او هم يې د کندهار ولايت په بيلابيلو سـيمو کې له نورو علماء کرامو او مدرسينو څخه د ديني زدکړو حصول ته ادامه ورکوله.

کله چې د مولوي غلام حيدر صاحب پلار وفات شو. نومـوړي د علـم پـه حصـول پسې سفر پيل کړ او بيا يې د پاکستان د بلوچستان ايالت پـه مختلفـو مدارسـو کـې د وخت له تکړه علماء کرامو څخه ديني علوم ولوستل. تردې چې په ۱۳۹۵ هجري قمـري کال کې يې د شوال په ۲۵ مه د کوټې ښار د چمن پاټک پـه سـيمه کـې پـه دارالارشـاد مدرسه کې له ديني علومو د فراغت سند ترلاسه او د فضيلت مبارک دستار يې پر سر کړ.

## تدريسي ژوند

له فراغت وروسته شيخ غلام حيدر صاحب لومړنۍ تدريس د بلوچستان د کـوټې د شابو کلي په قاسم العلوم مدرسه کې پيـل کـړ. وروسـته يـې د شـالدرې پـه مظهـر العلوم مدرسه او د جهاد په کلونو کې يې پ کوټه کـې د حرکـت انقـلابي اسـلامي پـه مشهوره مدرسه کې د تدريس دنده تـرسره کـړه. نومـوړي د جهـاد پـه کلونـو کـې پـه کويټه، پښين،ګلستان او نورو سيمو کې د تدريس او امامـت سـپيڅلې وظيفـه تـرسره کړه تر دې چې وروسته د بلوچستان په مشهوره مدرسه دار العلوم هاشميه کې د شيخ الحديث په توګه وټاکل شو.

مرحوم شيخ صاحب د خپل ژوند تر پايه له تدريس او تعليم سره نږدې پاته شـو. حتی تردې چې د طالبانو په اسلامي تحريک کې د وظيفې په مهال به يې هم د رسـمي وخت نه مخکې او يا وروسته خصوصي شاګردانو تـه ځينـي کتابونـه ويـل او کلـه چـې امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ نوموړي د هجرت د ژوند په مهال يو ځل بيا دديني علومو تدريس پيل کړ او د وفات تر وخته په دې مهمه او مقدسه ديني وظيفـه بانـدې

مشغول پاته شو. مرحوم شیخ صاحب چې د خپل وخت یو ستر عالم او تجربه کار مدرس و د اسلامي امارت ډېر مشران یې شاګردان پاته شوي وي نو ځکه یې د اسلامي امارت په نظامي او ملکي مسؤلینو کې ځانګړی محبوبیت او اعتبار درلود.

## جهاد او په اسلامي امارت کې خدمت

شیخ غلام حیدر صاحب د روس ضد جهاد په وخت کې د جهاد له مهموداعیانو او حتی بالفعله مجاهدینو څخه وه چې د مولوي محمد نبي محمدي صاحب د حرکت تنظیم په تشکیلاتوکې یې د کندهار په ښوراوک ولسوالۍ کې خپل مجاهدین درلودل او خپله یې له تدریس وروسته په مسلح جهاد کې برخه اخیستله.

د جهاد له بریا وروسته چې په افغانستان کې د ټوپکیانو لخوا د هرج و مرج دوره پیل شوه او بیا یې په مقابل کې د طالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ.دغه وخت شیخ صاحب د بلوچستان کوټې ښار په موسی کالوني کې د وړې دورې په تدریس بوخت و چې یوه ورځ ورته د تحریک څو نفره پیژندل شوي کسان لکه شهید ملا بورجان اخند،شهید مولوي احسان الله احسان او مولوي وکیل احمد متوکل راغلل او له نوموړي یې غوښتنه وکړه چې د طالبانو په اسلامي تحریک کې شمولیت وکړي او خدمت ترسره کړي.

شیخ صاحب له همدې ځایه خپل د تدریس له مسند ولاړ شو او د طالبانو د اسلامي تحریک چې دغه وخت یې میوند،ډنډ او بولدک ولسوالۍ نیولې وې خو لا یې کندهار ښار نه و نیولی شیخ صاحب ورسره ملګری شو. شیخ صاحب په پیل کې د اسلامي تحریک د لومړني نظامي مشر شهید ملا محمد اخند په قیادت کې نظامي کاروانه کول او له خپلو ملګرو سره به جهادي کمربندونو ته تلو. مګر وروسته چې د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په امر نظامي محاکم تأسیس شول شیخ مولوي غلام حیدر صاحب د نظامي محاکمو عمومي رئیس وټاکل شو.

د اسلامي امارت نظامي محاکم ددې لپاره جوړ شوي ول چې نظامي خلک له خودسريو او تجاوزونو را وګرځوي. که په کومه دعوه کې به نظامي شخص مدعي عليه و هغه به نظامي محکمې ته راجع کيدله. دنظامي محاکمو مرکز په کندهار کې و او په کابل،هرات، مزار شريف، کندز، ننګرهار او ګڼو نورو ولاياتو کې يې محلي محاکمو او څانګې درلودې.

شيخ صاحب چې په جديت او قاطعيت مشهور و د نظامي محاکمو د رئيس په حيث يې په خپل وخت لوی او دروند خدمت درسره کړ.نوموړي ډير نظامي خلک له تجاوزاتو منع کړل او له اولس سره ښې ګوزارې ته يې واداره کړل.نظامي محکمې ته داسلامي امارت مؤسس مرحوم اميرالمؤمنين صاحب هم ډير متوجه و او ترددې چې شيخ صاحب به کله ناکله دا د اميرالمؤمنين محکمه بلله ځکه ملا صاحب يې کارونه ډير تعقيبول تر څو خدای مکړه دنظامي مجاهدينو لخوا د خلکو حقوق تلف نه شي او يا د وسلې او قدرت په توسط خلک تهديد نه کړي.

نظامي محاکم که څه هم اوس د د اسلامي امارت د محاکمو د عمومي رياست تر امر لاندې فعاليت کوي مګر د امارت دواکمنۍ په وخت په بشپړه توګه مستقلې او دومره واک او ځواک يې درلود چې د قول اردو د قومندانانو، واليانو، امنيه قومندانان او د جهادي لومړۍ کرښې د مسؤلينو تر حده پورې نظامي مسؤلين يې د محاکمې ميز ته را احضارول او د اړونده موضوعاتو په رابطه يې ترې پوښتنې کولې.

هغه وخت چې امريکايانو په افغانستان يرغل پيل کړ چې شيخ صاحب د هيواد په شمال کې و او هلته يې د نظامي محاکمو د اړوندو کارونو نګراني کوله. نوموړی وروسته کندهار ته راغی او کله چې اسلامي امارت د هيواد له ښارونو شاتګ وکړ شيخ صاحب هم د هجرت لاره ونيوه او د تدريس او امامت وظيفې ته ستون شو.

خو په دې مرحله کې نوموړی له تدريس او امامت سره سره د امريکا پر ضد جهاد يو ټينګ داعي او د اسلامي امارت يو مهم مسؤل و چې په هره برخه کې يې خدمت ترسره کاوو.

د امریکا ضد جهاد په لومړیو کلونو کې د اسلامي امارت مشرانو لکه شهید ملا عبید الله اخند، ملا برادر اخند، شهید ملا داد الله اخند، شهید ملا اختر محمد عثماني او نورو همیشه له شیخ صاحب سره ملاقاتونه او مشورې کولې او له ده به یې په ډیرو مسائلو کې هدایات اخیستل.وروسته شیخ صاحب د اسلامي امارت د عمومي محاکمو په عالي اداره کې کار پیل کړ او د څو نورو شیوخو سره په ګډه یې د محاکمو او تمیز عالي اداره فعاله کړه چې تراوسه پورې په جهادي دوره کې د اسلامي امارت د قضایه قوې اساس بلل کیږي.

## وفات او یادونه

شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب د هجرت په ژوند کې هغه مهال چې په تدریس بوخت و ناڅاپه مریض شو او له څو ورځې مرض بعد یې د ٦٧ کلنۍ په عمر د ۱۴۳۳ هجري قمري کال د ربیع الاول د میاشتې په ۲٦ مه نیټه د دوشنبې په شپه خپل روح حقیقي بادار ته وسپاره او له فاني دنیا یې رحلت وکړ. انا لله و انا الیه راجعون.

د جنازې د لمانځه له اداء کیدو وروسته د نوموړي جسد د کوټې ښار شیخ مانده ته نږدې د سیدانو په هدیره کې خاورو ته وسپارل شوه.

د شیخ صاحب د شخصیت په باره کې د نوموړي یوه د ډیر وخت شاګرد ملا برات شاه اغا وویل: شیخ صاحب یو ډیر متدین عالم او مهربان شخصیت و. په هر چا خصوصا طالبانو یې ډیره صله رحمي او مهرباني درلوده.له دنیا سره یې هیڅ تعلق او رغبت نه درلود. په داسې حال کې وفات شو چې کومه دنیا تړې په میراث پاته نه شوه.عبادت به یې په داسې عاجزي کاوو چې سړی به ورته حیرانیدو.د جهاد په لاره کې د خدمت ډیر شوقي و او مسؤلیت او څوکۍ یې نه خوښوله او همیشه به ورباندې په ډیر تاکید منل کیدله.مسؤلینو ته به یې همیشه سپینې خبرې کولې او خپلو وظائفو ته یې متوجه کول. الله تعالې دې په نوموړي رحم وکړي او برکت دې یې په اولادونو باندې کیږدي.

# د شهيد حافظ بدرالدين حقاني ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

زموږ وياړلي تاريخ له پيړيو راهيسې په هرپړاو کې هميشه خورا وياړلي شخصيتونه درلودلي. ددغو شخصيتونو او دتاريخ دتلپاتې ځيرو له جملې که ځينو په علم، تصوف، تصنيف، فرهنګ، اجتماعي خدمت يا نورو برخو کې ستر کردارونه ترشاه پرې ايښي، مګر ډير بيا داسې دي چې دجهاد دلارې سرسپارلي اتلان او دهمدې برحقې لارې ګلګون کفن شهيدان دي، چې تراوسه يې وروستي نسلونه په نوم او کردار افتخار کوي .

موږ لکه څرنګه چې په تير تاريخ کې د وياړلو شخصياتو غوندې وياړلې کورنۍ هم درلودې، اوسنۍ جهادي دوران مو هم له دې افتخاره بې برخې نه دی . زموږ دهيواد په لراوبر کې ډيرې داسې جهادي کورنۍ شته، چې ټول ځوانان يې دجهاد، دين ساتنې او شهادت پالنې په روحيه روزل شوي او خپل ټول ژوند يې دالهي دين خدمت ته وقف کړی وي .

دداسې سترو وياړمنو متدينو او جهادپالو کورنيو له جملې يوه هم دافغانستان د جنوب ختيځ زون په پکتيا ولايت کې دستر مجاهد او دوو امپراطوريو دماتوونکي مولوي جلال الدين حقاني کورنۍ ده .

موږ که ددې مجاهدې او شهادت پالې کورنۍ پرونۍ او نننۍ تاريخ راوسپړو، نو ددوی جهادي کارنامو او شهادتونو ته په پام سره دلوی شاعر خوشحال خټک ددې بيت نغد مصداق به راته ښکاره شي چې وايي :

لوی واړه مې شهـــيدان وګـــور ته تللي
پُشت په پُشت مې دا هنر دی آل په آل

هوکې، حقاني کورنۍ دافغان ملت يوه له هغو کورنيو څخه ده، چې دشهادتونو او رشادتونو مينار يې خورا دنگ او اسمانڅک دی، ددې کورنۍ په اعضاء وو لکه څرنگه چې دشرقي زبرځواک وسلو ججوري تش کړل، همداسې يې دغربي زبرځواک يرغل تـه هم سينه سپروگرځوله او گڼ شمير شهيدان يې ورکړل . راځئ دلته دهمـدې غـازي او شهيدې کورنې ديو رژيدلي گل ( حافظ بدرالـدين حقـاني ) دژونـد او کارنـامو ننـداره وکړو، ترڅو مو يې دشهادت په روح پالو خاطرو خپل خواطر سيراب کړي وي .

## شهيدبدرالدين حقاني

هغه مهال چې افغانستان دروسي ښکيلاک تريرغل لانـدې و او پـه وړانـدې يـې دافغان اولس وياړمنه مبارزه روانـه وه. هغـه مهـال چـې دافغانسـتان دجنـوب ختـيځ غرونه او ځنگلونه دشوروي عسکرو په هديرو بدليدونکي وو. هغه مهـال چـې دپکتيـا، پکتيکا او خوست په غرونو او درو کې دجلال الدين حقاني پـه نـوم يـوه غـرني افغـان دشوروي امپراطورۍ ځلويښتم لښکر په لومړي ځل د شکست له گواښ سره مخ کـړی و او داسلامي نړۍ په سطحه يې د ( جلال الدين حقاني ، قائد الميـداني ، امـام شـامل ثاني ) لقبونه گټلي وو. دجهـاد پـه همـدې تـوده مرحلـه کـې د ۱۴۰٦ هــ ق درمضـان ا لمبارک دمياشتې په لومړنۍ ورځ دجهاد دهمدې ستر قائد په کور کې چې دغه وخت يې دشمالي وزيرستان په ميرانشاه کې دهجرت ژوند تيراوو يو هلک وزېږيد، چې نـوم يې ورباندې ( بدرالدين ) کيښود .

بدرالدين دخپل مجاهد او مبارز پلار جلال الدين حقاني په غيږ کې رالـوی شـو، دژوند کولو لومړني اداب ، اخلاق او عقائد ورته خپل پلار وښودل. ډير کوچنی و، چـې په ميرانشاه کې دحقاني صاحب دسترې مدرسې منبع العلوم دانجمن القرآن په څانگه کې داخل شو او ورسره يې د عصري علومو ښوونځی لوسـتل هـم پيـل کـړل. نومـوړي ښـوونځی تـر شـپږم ټـولگي ولوسـت ، چـې ورسره يـې دقرانکـريم حفـظ هـم کـاوو. دبدرالدين عمر يوازې لس کاله و، چې دقرانکريم حفظ يې سرته ورساوو او دکـلام الله المجيد ديادولو په وياړ يې دفضيلت پگړۍ تر سر کړه .

**ديني زده کړې**

بدرالدين حقاني دقرانکريم دحفظ له سرته رسولو وروسته ددينـي علومو په حصول پيل وکړ ، چې په دې لړ کې يې دميرانشا په جامعه منبع العلوم ، دپښتونخوا دصوابۍ په مدرسه تعليم القرآن ، دچارسدې مدرسه تعليم الاسلام او نورو مختلفو مدارسو کې ددينـي علومو زده کړې تـه دوام ورکړ . دغه راز يې داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال په کابل کې په خصوصي ډول له خپـل والـد صاحب څخـه ځينـي کتابونـه ولوسـتل تـردې چـې دعلـم سـفر يـې د وړې دورې ( موقـوف عليـه ) درجـې تربشپړلو ورساوو .

دبدرالدين حقاني په اړه ويل کيږي چې نوموړی دحقاني صاحب په کـورنۍ کـې دځانگړي علمي استعداد او قوي خاوند و، له همدې امله و، چې مشر حقاني صاحب هميشه کوښښ کاوو چې نوموړی ترپايه ديني علوم ولولي او ديوه ديني عالم په صفت د ټولنې خدمت وکړي .

حقاني صاحب لکه څنگه چې په حضر کې نوموړی علـم تـه تشـويقاوو دسـفر پـه مهال به يې هم په نوموړي تاکيد کاوو چې په پوره مواظبت سره درسونه ووايي .

حقاني صاحب به ده ته هميشه ويل چې ( زما په کورنۍ کې به له ماڅخه وروسته ددينـي علم ډيوه ته بله ساتې ، زما ستره کتابخانه به تاته پاته کيږي او ته بـه يـې پالنـه کوې ، زما مدرسه به ته فعاله ساتې او ته به يې خدمت کوې)

خو دا زموږ په اسلامي هيواد افغانستان دامريکايي ښکيلاک يرغل و، چې د ډيرو نورو غوندې يې دبدرالدين حقاني علمي سفر هم ټکنی کړ ، جهادي ضرورت نومـوړی له ديني زده کړو راوگرځاوو ، او دجهاد دعاجل ضرورت لـه املـه يـې دينـې زده کـړې نيمگړې پاته شوې .

**دامريکا په خلاف جهاد:** هغه مهال چې امريکايي زبرځواک زموږ په گران هيـواد افغانستان باندې يرغل وکړ، حافظ بدرالدين حقاني نوی دځوانۍ مرحلې تـه رسـيدلی

و. څرنګه چې نوموړي له یوه جهادي خاندان سره تړاو درلـود او دخپـل پـلار لخـوا پـه جهادي روحیه روزل شوی و، نوځکه یې دژوند نور مصروفیتونه پریښودل او د جهاد په سرشاره مینه یې دحق او حقانیت سنګر ته ودانګل .

حافظ بدرالدین په لومړیو کې دیوه عادي مجاهـد پـه صـفت دپکتیـا، پکتیکـا او خوست په جنګي محاذونو کې ددښمن په خلاف جهادي فعالیت تـه دوام ورکـړ. لکـه څرنګه چې ستر مجاهد مولوي جلال الـدین حقـاني دتیـر جهـاد دهغـو قومنـدانانو او مشرانو له جملې ګڼل کیږي چې خپله یې دجګړې په ډګر کې ونډه درلوده، دبدرالدین په شمول دنوموړي زامن هم په خپله دنورو مجاهدینو سره یوځای دامریکایي یرغلګرو مقابلې ته وړاندې شول او په دښمن یې بریدونه پیل کړل .

د چریکي جګړې په لیکو کې له څه مهال خدمت وروسـته بدرالـدین حقـاني تـه داستشهادي عملیاتو دیوه کنـډک مشرـي وسـپارل شـوه، چـې د شـهادت ترنیتـې یـې همدغه وظیفـه پـه پـوره امانـت داری، بریـالیتوب او اسـتقامت سره سرتـه ورسـوله. دځانګړو فدایي بریدونو په انسجام سربیره نومـوړي د دجنـوب ختـیځ زون دتنظیمـه ریاست دمرستیال او دخوست ولایت دنظامي مرستیال په حیث هم دندې اجراء کړي دي دغه راز یې ګڼ نور جهادي خدمات او مسؤلیتونه هم سرته رسولي دي .

## کفر لړزوونکي فدایي بریدونه

بدرالدین حقاني داسلامي امارت په لیکو کې یو له هغو مبتکرو، مدبرو او فعـالو نظامي څیرو څخه ګڼل کیږي ، چې په تیر دوولس کلن جهاد کې یې دخپلـو دقیقـو او رسا بریدونو په توسط دښمن ته بیا بیا درانه تلفات اړولي او دښمن یې مکررا پـه ځـان پورې حیران کړی دی .

دبدرالدین حقاني په ابتکار په کابل ، بګرام ، پکتیـا ، خوسـت ، پکتیکـا ، میـدان وردګ او دهیواد په نورو مختلفو سیمو کې په امریکایي حساسـو اهـدافو تـرسره شـوي

بريدونه او په وړاندې يې ددښمن اعترافات او دشكست شواهد هغه څه دي چې زموږ لوړه ادعاء تائيدوي .

دشهيد بدرالدين لخوا طرح شوي او دسرسپارلو فدايانو په توسط ترسره شوي همدا هدفمند بريدونه وو، چې دښمن يې څو ځله له سختو تلفاتو سره مخامخ كړ او سخته رسوايي يې ورواړوله. له همدې امله دښمن دحقاني صاحب دملگرو په خلاف ځانگړي تبليغات پيل كړل ،او هڅه يې وكړه چې دحقاني صاحب مجاهدين د (حقاني شبكې) په نوم له اسلامي امارت څخه يوه جلا ډله وښيي ، خو ددښمن دغه تبليغات هم داسلامي امارت لخوا په مستنده توگه رد كړای شول.

حافظ بدرالدين حقاني دخپل مسؤليت په مهال په دښمن ۷۵ مختلف النوع استشهادي بريدونه ترسره كړل، چې دبگرام ، كابل او خوست دعملياتو غوندې ځينې عمليات يې خورا ستر او خبر جوړوونكي وو .

په دې عملياتو كې په خوست كې دصحراباغ په امريكايي مركز لوی عمليات ، دخوست ولايت په مقام عمليات ، ددومندو په ولسوالۍ بريد، د صبريو په امريكايي اډه بريد، دبگرام په هوايي ډگر لوی بريد ، په انتركانتيننتل هوټل بريد او په پلازمينې كابل كې په ځينو نورو اهدافو لوی عمليات هغه څه وو، چې دښمن ته په كې ملاماتوونكي ځاني او مالي زيانونه واوښتل .

**شهادت يې**

بدرالدين حقاني چې يرغلگرو امريكايانو دخپل خطرناک دښمن په نامه پيژانده له ډيره وخته دامريكايي غاصبانو تر هدف لاندې او له همدې امله يې نوم ددوی په تورلست كې شامل كړای شواى و، ترڅو بالاخره ددښمن له مكررو هڅو وروسته د ۱۳۹۱ هجري شمسي كال د سنبلې مياشتې په اوائلو كې دبې پيلوټه طيارې په يوه بريد كې له څو تنو فدايي مجاهدينو سره يوځای دشهادت لوړ مقام ته ورسيد .

انا لله وانا اليه راجعون

داسلامي امـارت رهـبري شـورا د بدرالـدين حقـاني دشـهادت پـه مناسـبت پـه نشركړي اعلاميه كې وويل (دافغانستان اسلامي امارت دحافظ القران بدرالدين حقاني دشهادت مباركي دنوموړي محترم والـد(نوميالي جهـادي اوعلمـي شخصـيت مولـوي جلال الدين حقاني صاحب حفظه الله ) ددوى كورنۍ ،ملگرواودوستانوته وړاندي كوي.

شهيدبدرالدين رَحِمَهُ ٱللَّهُ دصليبي يرغلگروپرضدروان جهـادكي يونـه هيريـدونكى مبارز او اتل مجاهد و چې دحق ددفاع په سنگر كې يې تاريخي خدمتونه تـرسره كـړي الله رب العزت دي دنوموړي جهادي خدمتونه قبول كړي او الله تعالى دي ورتـه لـوړي درجې اوپه جنت الفردوس كي عالي مقامات ورپه برخه كړي .

اسلامي امارت دشهيد بدرالـدين غونـدي ځوانانوپـه خـدمت او ايثـار ويـاړي چـي ځوانۍ يې دالله عزوجـل ددين خـدمت تـه وقـف كـړې اوداسـلام اوهيـواد دغليمانوپـه وړاندي يې دجهاد ډگرغوره كړى وي. الله تعالى دي ددوى دخـدمتونو او پـاكو وينـو پـه بركت مسلمانانو ته برى او كفارو ته ذلـت او شكسـت ور پـه برخـه كـړي .امـين يـا رب العالمين)

## دبدرالدين حقاني دشخصيت ځانگړني

په ډاډ سره ويلى شو چې حافظ بدرالدين حقاني د امريكا ضد جهاد يوه كمساري هستي وه، چې په شهادت سره يې دوستان غمجن او دښمنان د څو شيبو لپـاره خـوښ شول، دنوموړي دشهادت په اړه بيلابيل غبرگونونه او نظرونه څرگند شـول ، پـه لانـدې څو كرښو كې دنوموړي دشخصيت په اړه د څو تنو نظريات ولولو .

خليفه صاحب سراج الدين حقاني وايي : دشهادت پـه مهـال دحـافظ بدرالـدين وجوددامريكايي توغندي دلگيدو له امله ذره ذره شوى و، خو يوازې سـينه يـې سـالمه پاته وه ، چې مجاهدينو له سينې څخه وپيژاند ، چې دا دده دكرامـت او دقـران كـريم داعجاز نښه وه ، ځكه دده په سينه كې قرانكريم محفوظ و چې الله تعـالى يـې لـه ټـول وجود څخه له امله سينه سالمه پاته كړې وه .

دخوست ولايت نظامي مسؤل مولوي محمدجان دنوموړي په اړه وايي : حافظ بدرالدين په خبرو او تعبير باندې حاکم سړی و، چې هميشه يې په مجالسو کې دګډونوالو توجه جلبوله، نوموړي صبر او حوصله درلوده او په سړه سينه يې دخلکو مشورې او وړانديزونه اوريدل ، حافظ صاحب ته الله تعالی ډير څه ورکړي و. ښه اخلاق ، خاکساري ، تواضع ، تقوا ، ايثار ، دملګرو سره ښه تعامل او خوشطبعي دحافظ صاحب امتيازي صفات وو .

نوموړي ددښمن په ليکو کې دنفوذ لوړ استعداد درلود او ددښمن په ليکو کې دننه يې خلکو ته جهادي روحيه ورکړه ، هغوی يې استخدام کړل او په دښمن يې له دننه څخه کاري بريدونه وکړل ، دحافظ بدرالدين په استعداد او جهادي فعاليت باندې حتی دښمن اعتراف لري او انکار ترې نه شي کولای .

په حافظ صاحب کې داطاعت ماده هم خورا قوي وه او په ډير دقت يې داسلامي امارت درهبرۍ اوامر منل او تطبيقول . نوموړي خپل ملګري هم په داسې روحيه روزلي وو چې اسلامي امارت ته يې پوره وفاداري درلوده .

دپکتيکا ولايت پخوانی نظامي مسؤل مولوي محمدسنګين فاتح وايي : حافظ بدرالدين يوه تکړه جنګي ستراتيژيست و، ځکه په تير څو کلن جهاد کې موږ وليد چې دټولې نړۍ پرمختللي پوځونه له باتجربه جنرالانو سره زموږ هيواد ته راغلل، دخپلې دفاع لپاره يې مصئون مراکز جوړ کړل، مګر حافظ بدرالدين په خپلو برياليو تاکتيکونو سره وتوانيد چې ددښمن دفاعي کمربندونه مات کړی او ددښمن په زړه باندې بريدونه ترسره کړي، نوموړي په داسې ځايونو بريدونه ترسره کړل چې تصور يې نه کيده .

داسلامي امارت درسمي ويب سايټ الاماره ويب پاڼې خبريال قاري حبيب دحافظ بدرالدين په اړه وايي : حافظ بدرالدين يوه ويښ، بادرکه او دجهادي برياوو په مطبوعاتي اهميت پوه شخصيت و. نوموړي لکه څومره چې نظامي عمليات په دقت تطبيقول همدومره له عملياتو وروسته دهغه مطبوعاتي انعکاس ته هم متوجه و. نوموړي به دپيل شويو عملياتو په اړه په ډير دقت او سرعت سره داسلامي امارت ويندويانو او نشراتي

اداري ته معلومات وركول او ددقيقو معلوماتو دراټولولو كار يې په ډېر دقت ترسره كاوو. نوموړي دجهادي عملياتو ژوندۍ صحنې عكاسي كولې ترڅو په مستنده توګه ليدونكو ته وړاندې شي، دنوموړي همدا ځانګړنه وه چې په ترسره شويو جهادي عملياتو يې دنظامي ډګر غوندې په مطبوعاتي ډګر كې هم نتيجه ترلاسه كيدله .

دبدرالدين حقاني له شهادت وروسته امريكايي مطبوعاتو نوموړی دامريكا ديوه خطرناک دښمن په توګه ياد كړ په دې لړ كې د THE LONG WAR ژورنال په نامه يوې امريكايي نشريې وليكل (امريكايي څارګرو طيارو دبدرالدين حقاني په نامه دطالبانو يو مهم قومندان وواژه. بدرالدين حقاني په افغانستان كې په امريكايانو ترټولو ستر او خونړي بريدونه ترسره كړی وو. دامريكا مهمې ورځپاڼې واشنګټن پوسټ دشهيدبدرالدين حقاني په شهادت دتبصرې په لړ كې وليكل چې نوموړی په افغانستان كې دامريكا دبرياليتوب په وړاندې يو لوی خنډ و ، چې په تيرو څو كلونو كې يې په امريكايانو پرلپسې خونړي بريدونه ترسره كړی وو)

عرب وايي (والفضل ما شهدت به الاعداء) داچې امريكايي فرعوني چارواكي دخپل كبر او غرور په اوج كې اعتراف كوي چې بدرالدين حقاني ددوی په وړاندې يو لوی ګواښ او خطرناک دښمن و، لدې څخه دنوموړي جهادي حيثيت ښه معلوميدلای شي.

بدرالدين حقاني يو له هغه مجاهدينو څخه وو چې له شهادت وروسته يې له امريكايي كفارو څخه خپل انتقام واخيست، ځكه نوموړي تر شهادت وړاندې دكابل په اريانا هوټل كې د CIA په مركزي دفتر دبريد لپاره تياري بشپړه كړې وه، چې دنوموړي له شهادت وروسته په ډيره كاميابي دغه د حمله ترسره شوه او ددښمن استخباراتي چارواكو ته په كې دروند زيان واوښت .

الله تعالی دې دحافظ بدرالدين حقاني شهادت قبول كړي او الله تعالی دې يې لاره ښيرازه ولري . آمين يارب العلمين

## دشهید شیخ دوست محمدصاحب ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

که دشوروي یرغل په وړاندې دافغانانو کفر ماتوونکی جهاد دشلمې پیړۍ انساني حماسه وبلل شوه، نو دامریکایي طاغوت په وړاندې زموږ دمسلمان ملت جهاد چې په ډیرو کمو وسائلو خو لوړه اراده پیل شواو په درنو قربانیو دفتحې ترمنزله نږدې شو په ډاډه سره یې دیوویشتمې پیړۍ اعجوبه او حماسه بللی شو .

امریکایي یرغلگر چې ددرستي کفري نړۍ جابر ځواکونه ورسره اشربانې وو په ډیر کبر او غرور یي زموږ په پاکه خاوره یرغل وکړ. زموږ مجاهد ولس ورسره په داسې حال کې مقابله شروع کړه ، چې ظاهرا یې هیڅ په واک کې نلرل او ټولو دوستانو او دښمنانو ترې مخ اړولی وو ، مگر داچې داولس نیت صفا ، ایمان محکم او عزم پوخ و له ټولو ظاهري ناشونتیاوو سره سره وتوانید چې امریکایي کفر په گونډو کړي .

د یوویشتمې میلادي پیړۍ په پیلیزو کلونو کې چې دافغان وطن په غرونو او هوارو کې دکفر او اسلام کومه معرکه تېره شوه، شاید د تاریخ یوه بې جوړې حماسه وي. دلته دقربانیو ، شهادتونو ، فداکاریو او حماسو خورا نادرې بیلگې ننداري ته وړاندې شوې، ترڅو داسلام دتاریخ دا ویاړلې معرکه وگټل شوه. ددې معرکې گټل کوم ساده کار نه و، بلکې داسلامي امت بې شمیر غیرتي زامنو په دې معرکه کې خپل ځانونه قربان کړل او په دې توگه یې خپل مسؤلیت سرته ورساوو ددې معرکې غازیان که څه هم په پنځلسم قرن کې اوسیدل خو ددوی توکل ، عزم او ایماني قوت نړۍ ته دصدراسلام حالات وریاد کړل. راځئ دلته دهمدې تاریخي معرکې دیوه وتلي او نومیالي غازي او شهید په ژوند او کارنامو سره وغږیږو. دا غازي شهید شیخ دوست محمد دی ، نوموړی دامریکا په وړاندې دجهاد دپیل له نیټې بیا په ۲۰۱۳ م کال کې

دشهادت ترنیتي پورې د نورستان ولایت عمومي جهادي مسؤل و او په دې جهادپال ولایت کې یې د ټولو مجاهدینو مشري په غاړه درلوده .

## شهید شیخ دوست محمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ

شیخ دوست محمد دحاجي سفر محمد زوی د لعل محمد لمسی په ۱۳۷۷ هـ ق کال کې دافغانستان په ختیځ کې دنورستان ولایت دکانتوا په سیمه کې دنیا ته راغی .

شیخ دوست محمد چې په یوه دینداره کورنۍ کې زیږیدلی و د ۷ کلونو په عمر و، چې له خپل پلار څخه یې دیني زده کړې پیل کړې. څرنگه چې شهیدشیخ صاحب له کوچنیوالي ډېر ذکي او ذهین و، پلار یې غوښتل چې په خپل زوی باندې دیني علوم ووایي، نو ځکه یې د ( کانتوا ) سیمې له یوه عالم مولانا اختر محمد سره پاکستان ته واستاوو. شیخ صاحب له نوموړي عالم سره کابو څلور کاله په قبایلي سیمه باجوړ کې تېر کړل، هلته یې ورڅخه د فقهې ابتدایي کتابونه او عصري علوم ولوستل، او پاتې لومړنۍ، منځنۍ، او لوړې زده کړې یې په نورو مختلفو مدرسو کې له جیدو دیني عالمانو څخه تر لاسه کړې، د احادیثو کتابونه( صحاح سته ) یې د ( ۱۴۰۱ هجري قمري) کال کې د پاکستان دخیبر پښتونخوا ایالت په مشهوره دیني اداره ( دار العلوم نعمانیه) چارسده کې د وخت د لوی محدث مولانا (سمیع الحق ) رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه ولوستل، په نهایي ازموینه کې یې بریالی او ممتاز سندتر لاسه کړ او د فضیلت دستار یې په نوموړې مدرسه کې ترسر کړ .

څرنگه چې شهید شیخ صاحب دنبوي احادیثو سره بې کچه مینه درلوده، نوځکه یې د احادیثو کتابونه یو ځل بیا په ( دار القرآن صوابي ) کې د وخت له لوی عالم شیخ القرآن مولانا محمد طاهر رَحِمَهُ ٱللَّهُ او شیخ الحدیث مولانا محمد یار بادشاه رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه ولوستل.

د احادیثو تر څنګه یې د قرآن کریم تفسیر هم په صوابۍسیمه کې د یادو شیخینو څخه اخذ کړ، دغه راز یې یوځل دقرانکریم تفسیر له مولانا عبدالسلام صاحب څخه هم ولوست .

## علمي مقام او تدریسي ژوند

شهید شیخ صاحب ته الله تعالی ستر علمي شان اومقام په برخه کړی و، چې د شاګردانو څخه پرته د هغه د سبق ملګري او د سیمې نور معاصر عالمان هم دهغوی په علمي نبوغ او تفوق باندې معترف وو.

شیخ صاحب د ټولو مروجه علومو څخه د اوو کالو په موده کې فراغت حاصل کړی و، د فراغت په کال شیخ صاحب د عمر له لحاظه ډېر خام او کم سنه و، چې پر مخ یې ږیره نه وه خو دښه لوړ استعداد له امله ورته دخپلو همدرسو ملګرو په منځ کې د بخاري شریف د قراءت ویاړ حاصل و.

شیخ رَحِمَهُ ٱللَّهُ خورا ذکي او سریع الذهن و، کومه مسئله به یې چې یو ځل په کتاب کې مطالعه کړه، هغه به یې بیا تر کلونو کلونو د حافظې په ارشیف کې پرته وه، د شیخ صاحب مرحوم علمي قوت او متانت له دې څخه هم څرګندېږي، چې هغوی په خپل اوږد تدریسي ژوند کې کله هم په درس کې پر پوښتنه نه دي غوسه شوي، او نه یې له کومې پوښتنې ځان تېراوو له هغوی نه خصوصا دتفسیرشریف په درس کې مختلفې پوښتنې کیدلې او ده ورته ځواب وایه.

شیخ صاحب د کتابونو مطالعې سره بې حده شوق درلود. ناشنا کتابونه به یې په بیه اخستل او مطالعه کول یې همدغه وجه وه، چې شیخ صاحب ته د کتابونو ګن عبارتونه او مشکل لغتونه زده و. په مطالعه کې د شیخ رَحِمَهُ ٱللَّهُ ړومبی انتخاب د احادیثو کتابونه وو او په دوهمه درجه کې ورته د ( تفسیرونو ) مطالعه په زړه پورې وه، په مطالعه کې به یې عجائب او غرائب هم زیات خوښېدل، اوږدې نادرې کیسې به

ورته یادې وې، کله به چې کومه تعجبي پېښه ولیده، نو ملګرو او شاګردانو ته به یې هغه په ډېره مینه اوروله.

له فراغت وروسته نوموړي ددیني علومو په تدریس پیل وکړ چې دقبایلي سیمې باجوړ ایجنسي په ( ترخو ) سیمه کې د مولانا عبدالجبار صاحب په مدرسه ( تعلیم القرآن ) کې یې کابو دوویشت (۲۲) کاله د نبوي احادیثواو نورو دیني علومو په خدمت کې بوخت و، دغه راز کله چې نوموړی له دې سیمې څخه دیر ته لاړ او هلته دشیرینګل سیمې په ګوریال کلي کې دیره شوه هلته یې هم علم او مطالعه مشغولا وه .

په دې موده کې نوموړي طالبانو ته د لوی دورې تر څنګ د فنونو هر ډول واړه او لوی کتابونه هم تدریسول او په رخصتیو کې به یې د موطأ امام مالک، موطأ امام محمد، معاني الاثار للطحاوي، سنن ابن ماجه، سنن نسائي رحمهم الله او داسې نور کتابونه چې عموما پوره نه لوستل کیږي بالاستیعاب یې تدریسول .

نوموړي یو شمیر کتابونه هم تصنیف کړي چې نومونه یې په لاندې ډول دي

۱ ـ العقد الفرید في اثبات الفرد الشرعي من التقلید

۲ ـ الدرر السنیة

۳ ـ الترجمان لعقائد الشبان

۴ ـ البرهان الساطع علی عدم اعتبار اختلاف المطالع

۵ ـ تنبیه الانام عن حقیقة الدین والاسلام

٦ ـ هدیة الکتوري في مقدمة الترمذي

۷ ـ نداء البراءة والجهاد

۸ ـ المسدسات في مباحث الجهاد

۹ ـ خطبات مجاهد

۱۰ ـ نداء الفرسان لاهل البصیرة والایمان

۱۱ ـ دروس الجهاد

۱۲ ـ تحفة الاحرار

## ديني دعوت او دشريعت دنفاذ لپاره هڅې

شهيد شيخ دوست محمد صاحب کـه څـه هـم دافغانسـتان دنورسـتان ولايـت اوسيدونکی و، مگر د ډيورنډ کرښې دواړو خواووته يې په خلکو کې پراخ نفوذ ، اعتبار او شهرت درلود ، نومـوړی پـه بـاجوړ ايجنسـۍ او شـاوخوا سـيمو کـې ديـوه پيـاوړي اومخکښ ديني مشر په حيث پيژندل کيدو .

جناب شيخ صاحب چې اصلي مشغولا يې ديني تـدريس او امامـت و، ورسره يـې هميشه دټولنې اصلاح او شريعت دنفاذ لپاره هم هلې ځلې کولې .

نوموړي به هميشه ويل چې دمسلمانانو داوسنۍ بد وضـعيت عامـل پـه اسـلامي نړۍ حاکم غيرشرعي مستبد او غرب ډول نظامونه دي، دمسلمانانو عـزت او سرلـوړي يوازې هغه وخت اعاده کيدلای شي چې په اسلامي هيوادونـو کـې اسـلامي واکمنـي د صدراسلام په ډول راژوندۍ شي، په مسلمانانو باندې بايد يوازې اسلامي قانون واکمني وکړي او شريعت چې ددنيوي ژوند هراړخيز او بشپړ نظام دی بايد په عمل کې پيـاده شي .

جناب شيخ صاحب له ډير پخوا څخه داسلامي امارت يـا خلافـت ارمـان درلـود، کله چې په افغانستان کې دطالبانو اسلامي تحريک راپورته شو او دخلافـت راشـده پـه نهج برابر ديوه اسلامي نظام دجوړولو لپـاره يـې کـار پيـل کـړ، شـيخ دوسـت محمـد صاحب ورسره هر اړخيزه همکاري پيل کړه، نوموړی له خپلو ټولو ملگرو سره داسـلامي امارت په تشکيلاتو کې داخل شو له اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد سره يې بيعـت وکړ او دشهادت ترنيټې پورې په هماغه بيعـت وفـادار پاتـه شـو. کلـه چـې دطالبـانو تحريک دافغانستان ختيځ ته ورسيد شهيد شيخ صاحب چې دا مهال يـې دينـي علـوم تدريسول له خپل نفوذ نه په استفاده يې خورا سـترجهادي او دعـوتي خدمتونـه سرتـه

ورسول په پیل کې دکونړ او نورستان په ځینو سیمو کې داسلامي امارت په اړه غلط تبلیغات کیدل او ځینو خلکو غوښتل چې داسلامي امارت په خلاف خلک وپاروي ، مګر جناب شیخ صاحب ددې مناطقو خلکو ته د دعوت د لارې رهنمایي وکړه، داسلامي نظام ګټې او ضرورت یې ورته تشریح کړ، ترڅو عام اولس په پوره اخلاص داسلامي امارت سره ودرید. په دې لړ کې نوموړي دکونړ او نورستان ولایت بیلابیلو سیمو ته سفرونه وکړل او ډیر مخالف مشران یې دخبرو دلارې داسلامي امارت منلو ته تیار کړل د نورستان ولایت کامدیش ولسوالي دجناب شیخ صاحب دهڅوپه نتیجه کې داسلامي امارت ترولکه لاندې راغله او بشپړه اسلامي واکمني په کې ټینګه شوه .

## دامریکایرغل او په وړاندې یې جهاد

کله چې امریکایي اشغالګرو په افغانستان برید وکړ اوپه وړاندې مسلح جهاد پیل شو، شیخ دوست محمد صاحب یو له هغو کسانو څخه و چې په ډیر جرأت او متانت سره یې په ژبه ، لاس او مال سره جهاد پیل کړ. نوموړي دامریکایي یرغل په مهال په باجوړ ایجنسۍ او دافغانستان په نورو سرحدي سیمو کې په سلهاوو ولسي خلک جهاد ته تیار کړل ، دغه راز یې خورا زیاتې مالې مرستې هم د مجاهدینو دکومک لپاره راټولې کړې .

دامریکایي یرغل دپیل په مهال دباجوړ ، ملاکنډ او دکونړ او نورستان په ګاونډ کې له نورو سیمو څخه زرګونو ولسي مجاهدین دنفیرعام په شکل ددښمن مقابلې ته وړاندې شول او داسلام لپاره دهره نوع قربانۍ وعده یې ورکړه ، چې ځینې یې دجهاد ډګر ته هم لاړل ، په دې تاریخي ولسي جهادي پاڅون او نفیرعام کې دشیخ دوست محمد صاحب ستر رول و، وروسته چې کابل دامریکایانو ترتسلط لاندې راغی ، شیخ صاحب بیا هم کرار کېنناست ، بلکې هره شیبه په جهادي هلوځلوبوخت و .

دیرغل په ابتدایي کلونو کې شیخ صاحب همیشه په دې هڅه کې و چې په اولس کې جهادي روحیه راژوندۍ کړي، دهمدې لپاره یې غږیز تقریرونه ثبتول، لیکلي

پيغامونه او رسالې يې تيارولې او بيا به يې په اولس كې توزيع كـولې ترڅـو دجهـاد لـه فرضيت څخه خلک خبر شي او دامريكايانو په خلاف قيام وكړي .

نوموړي دخپلو ملګرو يوه جهادي جبهه جوړه كړه او د نورستان په ولايت كې يې په جهادي عملياتو پيل وكړ .

نورستان ولايت چې دافغانستان په سطحه دامريكايانوپه خلاف يو قوي او تـاريخ ساز مورچل بلل كيږي، دجهادي خوځښت مشري او ابتكار يې دشيخ دوست صـاحب په واک كې و، شيخ دوسـت محمـد صـاحب چـې داسـلامي امـارت پـه تشـكيلاتو كـې دنورستان ولايت د والي يا جهادي مسؤل په حيث يې دنده تـرسره كولـه دنورسـتان د ټولومجاهدينو د استاد او رهـنما حيثيـت هـم درلـود، ځكـه ددې ولايـت تقريبـا ټـول جهادي سرګروپان او ډلګۍ مشران دنوموړي شاګردان پاته شوي دي، چې جهاد يې هم دنوموړي په هدايت او ترمشرۍ لاندې پيل كړی و نوځكه دنورستان جهادي برياوې د شهيد شيخ صاحب كارنامې بللی شو. داچې دشيخ صاحب په ابتكار په نورستان ولايت كې داسلامي امارت مجاهدينو كوم فتوحات ترلاسه كړل دلته ورته په لنډو اشاره كوو.

## د شهيد شيخ صاحب دمشرۍ په مهال په نورستان كې مهم فتوحات

ـــ په ۲۴/ ۷ / ۲۰۰۲ م نيټه كله چې امريكايان نورستان ته راغلـل نـو د كامـديش دكوټيا دسيمې مجاهدينو په ماركونډه كې په يوامريكائي مركـز حملـه ور وړه چـې پـه نتيجه كې ۱۴ خارجيان ختم او ګڼ نور ټپيان شول او په پای كې له سيمې وتښتيدل .

ــــ په ۲/ ٦/ ۲۰۰۴ م نيټه دكامديش ولسوالۍ دكوټيا په سيمه كې مجاهدينو پـر دښمن بريالي عمليات ترسره كړل چې دغه جګړه په نورستان كې دمجاهـدينو لـومړي تر ټولو مهم عمليات بلل كيږي ددې جګړې په ترڅ كې مجاهدينو د براون په نامـه يـو لوړ پوړی امريكائي پوځي منصبدار وواژه چې جسد او وسله يې هم دمجاهدينو لاس ته ورغلل.

ـــ دوانت وایگل ولسوالي یوه تکړه جهادي مشر مولوی حضرت عمر فاروقي د ۲۰۰۷م کال داگست په میاشت کې دنیږدې ۱۵۰ تکړه ملگرو په ملتیا دارنس نومې کلي دامریکایانو په ستر بیز دخاردارو ټولو کمربندونو څخه په تېریدلو او بیز ته په ورننوتلو وتوانید دامریکایانو او داخلي عسکرو په ضد بریالی برید وکړي ددوی جگړې ۲ ساعته دوام وکړ چې په نتیجه کې بیز دطالبانو په لاس فتح شو او دکلي دهغه کسانو په وینا چې په اردو کې یې کار کاوه په دې برید کې ۱٦ امریکایي او ۱۴ داردو عسکر ووژل شول. مولوی فاروقي اود هغه پنځه ۵ نور ملگري په همدې جنگ کې شهیدان شول خو په پایله کې یې امریکایان له سیمې وتښتیدل.

ـــ په ۵ رجب ۱۴۲۹ هـ ق کال دوانت وایگل ولسوالي دجمچگل په سیمه کې داشغالگرو عسکرو خورا ستر بیس چې دوی ته یې خورا ستراتیژیك اهمیت درلود دمجاهدینو دمسلسلو بریدونو له امله تخلیه کړ او گڼ شمیر غنیمتونه دمجاهدینو لاس ته ورغلل .

ـــ د۲۰۰۸ م کال دجولائي په ۱۳ مه نیټه مجاهدینو دوانت په مرکزي بیز خورا بریالي عملیات ترسره کړل چې ترڅ کې یې لسگونه امریکایي عسکر له منځه لاړل .

ـــ په ۲۰۰۸ م کال دکامدیش ولسوالۍ دگوهردیش په ډبه بیس باندې مجاهدینو خورا بریالي عملیات ترسره کړل چې په نتیجه کې ۱٦ خارجي او داخلي عسکر له منځه لاړل او په پایله کې یرغلگرو دغه بیس تخلیه کړ.

ـــ د۱۴۳۰ هـ ق په ذوالقعدة میاشت کې ۵۰۰ تنه مجاهدینو دکامدیش پر دریو سترو بیسونو اورمړو،کمو ، اوشرپیټ باندې تهاجمي عملیات ترسره کړل چې په ترڅ کې ٦۷ خارجیان او ۹ تنه داخلي اجیران له منځه ولاړل او ۴۳ پولیس او اردو اسیران شول. په اخر کې ولسوالي ، قوماندانی ، مرکزي بیز او نورې ټولې دفاعي پوستې په بشپړه توگه د مجاهدینو لاس ته ورغلل. دغو بریالیو عملیاتو دافغانستان په عمومي وضعیت خورا ژور اغیز وکړ او دغربي رسنیو هغه دروغجن تبلیغات په اوبو لاهو شول کوم چې دامریکایانو دکامیابۍ او پر مختگ په اړه یې کول. ان تر دې چې په هغه

وخت کې دامريکايانو مشر جنرال مك کرسټل وويل چې کـه ۴۰ زره اضـافي عسـکر زر تـرزره افغانسـتان تـه ونـه ليـږل شي زرده چـې دافغانسـتان پـه نـورو سـيمو کـې هـم دنورستان تجربه تکرار شي.

ــ په ۱۳/ ۱۱/ ۲۰۰۹ م نيټه دبرگمټال ولسوالۍ د بدين شاه په سيمه کـې بهرنيـو او کورنيـو ځواکونـو دشـپې پرمهـال يرغـل وکـړ چـې ديرغـل نـه څـه شـيبې وروسـته دمجاهدينو لخوا له کلك مقاومت سره مخ شول دغه مقاومت کابو ٦ سـاعته دوام وکـړ چې په ترڅ ې تر ۸۰ تنوپـورې خـارجي او دهغـوئ داخـلي گوډاگيـانو تـه مـرگ ژوبلـه واوښته.

ــ په ۲۹/ ۵/ ۲۰۱۰ م نيټه مجاهـدينو دبرگمتـال پـه ولسـوالۍ بريـالي عمليـات ترسره کړل او په نتيجه کې يې ولسوالي فتحه کړه

ــ په ۲۰۰۸ م کال داپريل په شپږمه نيټه ددوآب ولسوالي دشوك په کلي بانـدې خارجيانو يرغل وکړ چې دسيمې مجاهدينو لخـوا کلـك مقامـت سره مخـامخ شـول پـه نتيجـه کـې ددښـمن دوه څرخـي الـوتکې وغورځيـدلې او بـالاخره يرغلگـر پـر شـاتگ مجبورشول پدغه جگړه کې ددښمن خورازيات جنگي تجهيزات دمجاهدينو لاسونو تـه ورغلل .

ــ د ۲۰۱۱ م کـال مجاهـدينو تـه د دوآب پـر ولسـوالي تهـاجمي بريـد وکـړ چـې وروسته له ډير ساعت جگړې نه ياده ولسوالي په بشپړ توگه فتحه شـوه او ډيـر زيـات غنيمت مجاهدينو تر لاسه کړل.

ــ په ۷/ ۱۱ / ۲۰۱۲ م نيټه د نورگرام ولسوالي دکله گوش په سيمه کې اشغالگرو عسکرو خپله غټه پی آر ټي چې دوی ته يې خورا ستراتيژيك اهميت درلود دمجاهدينو دمسلسلو بريدونو له امله تخليه کړه.

په د ۱۸/ ۷ / ۲۰۰۸ م نيټه دغازي اباد مجاهدينو د ډب بروړه پـه سـيمه کـې پـر خارجي ځواکونو عمليات ترسره کړ چـې پـه نتيجـه کـې لـه ۱۵ عـدد ټـانگونو څخـه ۸

ټانګونه په بشپړه توګه له منځه یووړل چې پکې سپاره ټول سرتیري داور خوراک شول، په دغه کامیاب برید کې دوه لوړ پوړي امریکایان هم تلف شول.

ـــ په ۲۱ / مئ / ۲۰۰۹ م نیټه مجاهدینو دغازي اباد موجوده ولسوالي دنیشګام کلي سره جوړشوي دداخلي او خارجي ځواکونو په یو مهم مرکز او یو بله دپوسته باندې تهاجمي برید وکړ او ۱۲ تنه خارجیان او ۷ داخلي دملّي اردو عسکر ووژل شول او دیو ترجمان په ګډون ۱۲ تنه دملّي اردو سرتیري ژوندي ونیول شول، او یاد مرکز او پوسته په کامل ډول لمنځه یوړل شول.

دغه راز په ۲۰۱۱ م کال کې دکامدیش ولسوالي دګوهردیش دسیمې پر پنځو پوستو مجاهدینو تهاجمي برید وکړچې د ګهیځ نه تر ۱۱ یوولس بجو پورې یې دوام درلود په نتیجه کې یې ۳۷ سرحدي عسکر ختم او یو تعداد ژوندي دمجاهدینو لاسونو ته ورغلل، همداراز پنځه واړه پوستې فتحه شوې .

په لوړو یادو شویو عملیاتو کې چې دافغانستان په معاصرو جهادي عملیاتو کې مهم او ټاکونکي عملیات بلل کیږي ، شهید شیخ صاحب یا په کې مستقیم شرکت درلودلی او یا هم دنوموړي په ابتکار ، مشوره او قومنده ترسره شوي دي، چې دهمدې یادو شویو او ګڼو نورو تاریخ سازو عملیاتو په برکت په نورستان ولایت کې دیرغلګرو پوځي زور مات شو او نورستان هغه لومړنی ولایت وو چې یرغلګرو ترې تیښته او شاتګ پیل کړ .

### د شیخ دوست محمد صاحب شهادت

دشیخ دوست محمد صاحب دجهادي ژوند معمول دا و، چې زیاتره وخت به دخپل مسؤلیت په ساحه کې په جهادي سیمو ګرځیده. کلي په کلي او جبهه په جبهه به یې دمجاهدینو او عام اولس حال اخیست، هغوی ته یې دیني موعظې او هدایات اورول او کله ناکله خو به یې دقرانکریم ترجمه او تفسیرهم ورته کاوو، دغه راز به یې دخلکو دیني پوښتنې او استفتاء وې ځوابولې .

شيخ صاحب له شهادت څخه وړانـدې يـو داسـې خـوب ليـدلی و چـې نومـوړي دشهادت بشارت باله، چې بالاخره همداسې وشول او نوموړی په څو ورځو کې ددښمن په بريد کې شهيد شو، دنوموړي يو ملګری وايي چې شيخ صاحب له شهادت څو ورځې وړاندې راته وويل چې يو شهيد ملګری او دده شـاګرد مولـوي سـليمان د وامـا د کـلي اوسيدونکی کوم چې د شيخ رَحِمَهُ ٱللَّهُ د شهادت څخه يو کـال وړانـدې شـهيد شـوی و، هغه په آس باندې سپور دی او يو اس يې زما لپاره زين کړی له ځـان سره راروان کـړی دی او ماته وايي چې شيخ صيب، راځه چې ځو دا آس مې ستالپاره راوستلی دی، شـيخ صاحب وويل، چې زه ورسره په آس باندې سپور شوم او ورسره روان شوم .

سره له دې چې شيخ صاحب په پرلپسې توګه ددښمن تـر تعقيـب لانـدې و، څـو ځلې يې چاپې وربانديې واچولې او د ۲۰۱۱ م کال پـه وروسـتيو کـې يـې دوه ځلـه د بـې پيلوټه طيارې حملې ورباندې وکړې او څو ځله يې دنوموړي دشهادت دروغجنه ادعـاء هم وکړه خو دې ټولو خطراتو نوموړی له جهادي فعاليت څخه منع نـه کـړ او پـه پـوره زړورتوب يې دپخوا غوندې په نورستان کې خپل جهادي فعاليت ژوندی ساته .

تردې چې په ۲/۸/۱۴۳۴ هـ ق نيټه باندې دنورستان ولايت په شـملي ګـل سـيمه کې په داسې حال کې چې ديوه کور ترمخ ترڅپره لاندې له خپلو ملګرو سره ناست و او ديوې شرعي مسئلې دحل لپاره يې په خپل ليپ ټاپ کمپيوټر کې کتاب مطالعه کـاوو ددښمن د بې پيلوټه طيارې دبريد هدف وګرځيده او ددوو تنو نورو مجاهدينو مولـوي محمد طاهر او يوه بل زلمي مجاهد سره په شهادت ورسيد .

انا لله وانا اليه راجعون



# د شهيد مولوي سنگين فاتح ژوندليک

ليکنه: نصيب ځدراڼ

پکتيکا ولايت د افغانستان په جنوب ختيځ کې واقع ده،دا ولايت چې زياتره سيمې يې غرنۍ دي د افغانستان د نورو سيمو په څير د يرغلگرو په خلاف د جهاد يو مهم سنگر بلل کيږي.

پکتيکا د کمونيزم ضد جهاد په مهال دا امتياز درلود چې د ثور د کمونيستي کودتا نه وروسته د عملي جهاد لومړی څپه په همدې ولايت کې راپورته شوه. د ثور د ۷ مې له انقلاب نه څو ورځې بعد د ثور د مياشتې په ۱۳ مه نيټه د پکتيکا به زيړوک ولسوالۍ کې اولسي مجاهدينو د کمونيستانو په مراکزو بريدونو پيل کړل چې ورسره د کمونيستي کفرپه وړاندې عملي جهاد شروع شوه.

د امريکايي يرغل په مهال هم د پکتيکا ولايت خصوصا جنوبي سيمې يې د جهاد له لومړنيو او کارنامه سازو مورچلونو څخه شميرل کيږي.د يرغل په لومړيو کلونو کې چې د يرغلگرو فشار زيات و زياتره مجاهدين د پکتيکا په گاونډ کې د وزيرستان قبايلي سيمو ته لاړل خو ډير زر يې د يرغلگرو په خلاف ځوابي بريدونه پيل کړل. مجاهدينو د وزيرستان سره په پرتو سرحدي سيمو، لکه برمل، لواړه ، منې کنډو ، منگړيتې او نورو ساحاتوکې له امريکايي عسکرو سره سختې جگړې وکړې ، چې هرځل يې ورته خورا درانه تلفات اړول. دبرمل دمربوطاتو په شمول په دې سرحدي سيمو کې دحقاني صاحب دجبهاتو مختلفو مجاهدينو برخه درلوده، لکه شهيد مولوي کلام نافذ،شهيد مولوي سنگين، مولوي عبدالله حسيني، شهيد مولوي احمدجان ، شهيد عبدالمنان احمد اونور ډيرمجاهدين. په دې سيمو کې دامريکايانو په گزمو او بيسونو بريدونه که له يوې خوا يې امريکايانو ته تلفات اړول له بلې خو اېي په سخته مرحله کې

دجهاد دتړيو تنده خړوبوله او روحيه يي ورکوله. هغه مجاهد چې وروسته يې په دې سيمه کې ډېره موده جهادي خدمت وکړ او د شهادت تر وخته د پکتيکا ولايت د جهادي مسؤل په حيث يې دنده اجراء کوله مولوي سنگين فاتح و چې غواړو په مختصره توگه يې درته سوانح تقديم کړو.

## پيژندنه

شهيد مولوي سنگين فاتح د حاجي مرسلين زوی په قوم ځدران، د پکتيکا ولايت زيړوک ولسوالۍ د تنگي د کلي اوسيدونکی و چې په ۱۹۷۴ کال کې ی دې فاني دنيا ته سترگې وغړولې نوموړی په خپلو پنځو ورونو کې تر ټولو مشر و .

## لومړنی ژوند او تعليم

ملا سنگين لومړنۍ زدکړې د شمالي وزيرستان همزونې کلي کې د مولوي حبيب الرحمن صاحب نه پيل کړې، د لوړو ديني زدکړو لپاره په شمالي وزيرستان کې د ستر مجاهد مولوی جلال الدين حقاني صاحب مدرسې منبع العلوم ته لاړ. نوموړی په دې وخت کې زلمی و، د جهاد او وطن سره يې ډېره مينه درلودله، د طالبانو د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال به يې د درسونو د رخصتيو نه په استفاده د شراو فساد د عناصرو په ضد جهاد کې برخه اخيستله.

وړه او لويه دوره يې په مدرسه (جامعة العلوم السلاميه زرگرۍ) کې له شيخ الحديث مولوي عبدالستار جان رَحِمَهُ ٱللَّهُ او شيخ مولوي سيف الله صاحب څخه ولوستله او په ۲۰۰۵ کې يې د فراغت پگړۍ وتړله.

## د صليبيانو په ضد جهاد

کله چې صليبي وحشي ځواکونو په گران وطن افغانستان يرغل وکړ، د خلکو په ذهنونو کې د دوی د ټيکنالوژي، قوت او زندان رعب و؛ په هغه وخت کې شهيد مولوي سنگين فاتح د اسلامي امارت له طرفه د مولوي جلال الدين حقاني صاحب په جبهاتو کې په پکتيکا کې د يوه نظامي مسؤل په حيث وټاکل شو.

مولوي صيب د لومړنيو مجاهدينو څخه و چا چې په كمزورو وسايلو پـه خوسـت او پكتيكا ولايتونو كې د يرغلگرو پـه اكـمالاتي كـاروانونو او د دوی پـه پـوځي مراكـزو ځپونكي بريدونه پيل كړل .

## د دښمن په ضد كامياب عمليات

شهيد مولوي سنگين چې اوږده موده د پكتيكا ولايت جهادي مسؤل يا والي پاتـه شو په دې موده كې يي په دښمن بيا بيا كاري گوزارونه ترسره كړل. د مولـوی سـنگين صاحب تر قوماندې لاندې په ۲۰۰٦ كـال كـې مجاهـدينو د پكتيكـا نكـې پـه ولسـوالۍ تعرض وكړ او په مكمله توگه يې فتحه كړه .

امريكايانو او اجيرانو يې څو وار كوشش وكـړ چـې پـه ولسـوالۍ بريـد وكـړي او بيرته يې ونيسې خو د مولوي صاحب د ملگرو له طرفه د سـخت غبرگـون سره مخـامخ شول او ماتـه بـه يـې وخوړلـه، د نكـې ولسـوالۍ تـر اوسـه پـورې د اسـلامي امـارت د مجاهدينو تر ولكې لاندې ده .

د مولوي سنگين تر قوماندې لاندې مجاهدينو د پكتيكا ولايت د گيان ولسوالۍ ودانۍ او ورسره نږدې د امريكايانو او ځانگړو ځواكونو په گډ كمپاين بانـدې تعـرض وكړ او د سخت جنگ نه وروسته يې دواړه مركزونه فتحه كړل چې د گيان ولسوالۍ تر اوسه د مجاهدينو په لاس كې ده .

د گيان ولسوالۍ پورې مربوط د لواړه په سيمه كې د امريكايانو پـه كمپـاين يـې مسلسل بريدونه وكړل په اكمالاتی كاروانونو يې دوامداره كمينونه ووهل چـې بـالاخره امريكايان مجبور شول د لواړه كمپاين پريږدي .

د پكتيكا ولايت د چارباران په ولسوالۍ د مولـوي سـنگين تـر قومانـدې لانـدې مجاهدينو تعرض وكړ او ولسوالۍ يې مكمله فتحه كـړه چـې الله الحمـد تـر نـن ورځـې پورې د اسلامي امارت سپين بيرغ ورباندې رپاند دی .

د منظم پلان له مخې د پکتیکا زیړوک ولسوالۍ په ودانۍ باندې اول د موټړ بـم برید او وروسته پراخ تعرض هم د مولوي صـاحب لـه طرفـه ترتیـب شـوی وو چـې پـه نتیجه کې یې بې شمېره امریکایانو ژوند د لاسه ورکړ .

د شهید مولوي سنګین تر مشرۍ لاندې مجاهـدینو نـور بـې شـمېره ځـپونکي او بریالي عملیات د دښمن په وړاندې ترسره کړي دي چې په دې لنډه لیکنه کـې د ټولـو تفصیل راوړل شاید ځای نه شي.

## په جهادي مزل کې زخمي کیدل

مولوی صیب په جهادي مزل کې دوه واره ټپي هم شـو ،یـو وار د پکتیکـا ولایـت اورګون ولسوالۍ مربوط ګربګي کنډو سیمه(اوس د شهیدانو پـه کنـډو یـادیږي) کـې امریکایانو بمبار ورباندي وکړ د مولوی صیب څلویښت ملګری شهیدان شول او مولوی صیب سخت زخمی شو،سانحه لویه وه خو دومره نه چې د مولـوی صـیب حوصـله یـې ماته کړي وی،مولوی صیب بیا روغ شو او د یرغلګرو انګریزانـو پـه ضـد جهـاد تـه یـې دوام ورکړ،کله یې چې په قبایلي سیمه میرانشاه بازار کې پـه شرخوښـو او غلـو بانـدي عملیات پیل کړل نو مولوی صـیب د هـر وار غونـدي تـر ټولـو مخکـي جنګیـدو او پـه همدغو عملیاتو کې په مرمۍ ولګیدو خو الله تعالی د خپل دین د خدمت لپاره ژونـدی وساته

## په لومړي ځل د امریکایي عسکر بندي کیدل

شهید مولوي سـنګین (فـاتح) هغـه بریـالی قومنـدان و چـې د پکتیکـا ولایـت د مسؤلیت په مهال دده تر امر لاندې د قاري اسمعیل صـاحب د ډلګـۍ مجاهـدینو پـه ۲۰۰۹ میلادي کال کې د پکتیکا په ولایت کې امریکایي افسر بوبرګډال له وسلې سره د امریکایي اډې له څو مترۍ څخه ژوندی اسیر کړ . د بوبرګـډال نیـول کیـدل او بیـا د هغه په محفوظ شکل ساتل چې په پای کې ورباندې د اسلامي امارت او امریکا تر مـنځ تاریخي تبادله وشوه په پکتیکا کې د شـهید مولـوي سـنګین د مسؤلیت د مهـال یـوه

تاريخي پيښه وه .مشهور ليکوال او د سياسي چارو شنونکی وحيد مژده په خپلې يـوې مقالې کې د مجاهدينو په لاس د دغه امريکايي افسر د اسارت قصه داسې ليکي:

کله چې برگډال د ۲۰۰۹ ميلادي کال د جون په دېرشمه د پکتيکا د يوسـف خېلـو په ولسوالۍ کې له خپل مرکز نه وتلی و طالبانو ونيو. د نيول کېدو پر مهـال ورسره يـو ۱٦M ټوپک و ( خو که يې له دغه ټوپک څخه کار اخيستی وای، حتماً به وژل شوی و )

د بريگډال د نيولو او موندلو لپاره، امريکايـانو پـه پکتيـا، پکتيکـا او د غـزني پـه اندړو او نورو ډېرو ولسواليو کې پراخ عمليات ترسره کړل، همدا رنگه د ده د سـاتنې د ځای په اړه يې د معلوماتو پيدا کولو له پاره د جائزې وعده هم وکړه، خو طالبانو دی د امريکايانو له لاس رسي څخه لرې ځای کې ساتلی و.

د طالبانو په روايت مولوي سنگين ځدران چې هغه وخت د پکتيکا نظامي مسؤل و- برگډال يې د يوه بوډا کور ته بوته او هغه ته يې وويل :"کاکا ! پـام پـرې لـره چـې دا سړی درنه ونه تښتي. زه ډېری وخت بوخت يم نو تا ته يې درسپارم"

بوډا له ځان سره فکر وکړ چې دا سړی خـو د تېښـتې لار نـه لـري. کـه لـه کـوره ووځي، نو چېرته به لاړ شي؟ نو نه يې لاس ته زولنې ور اچولې او نـه يـې پښـې ورتړلـې، خو برگډال وېرېده. هغه په دې انديښنه کې و چې طالبان به يې ژر تعذيب کړي، يا به يې سر پرې کړي او ويډيو به يې خپره کړي، په داسې حال کې چې طالبان د دغه اسير په ارزښت پوه ول او هېڅکله يې داسې اراده نـه لرلـه. برگـډال د تېښـتې لار لټولـه، د همدې لپاره به چې کله بوډا ورته ډوډۍ راوړه، ده به لږه لږه پټه ساتله. تر دې چې يوه ورځ بوډا اودس ته د باندې ووت، برگډال هم له کوره نـه راووت او ورک شـو. برگـډال چې خپل نظامي کالي بدل کړي و او ځايي کالي يې په تن و، پرته له دې چې څوک پرې پوه شي يا ورته ځير شي، ډېر ژر د کلي له بازاره ووت او د کلي نه لرې ځنگل او غره ته يې ځان ورساوه. بوډا چې کله د اسير له تېښتې خبر شو، طالبان يې خبر کړل. طالبـان درې ورځې ورپسې گرځېدل، بالآخره کلي ته څېرمه سيمه کې يې يو وار بيا ونيو .

اوس بریګډال پوی شوی و چې د تېښتې لار نه شته، نو باید نوی حالت رامنځ تـه کړي. همدغه امریکایي عسکر برګډال و چې وروسته یې په بدل کې د اسلامي امـارت پنځه تنه مشران ملا خیرالله خیرخوا، ملا نور الله نوري، ملا عبدالحق، ملا محمد فاضل او مولوي محمد نبي عمري امریکایـانو د ګوانتـامو نـه راخـلاص کـړل چـې د اسـلامي امارت لپاره یوه ستره بریا وه.

## د مولوي سنګین د شخصیت په اړه

تقوی، دیانت او په نبوي سنتو تمسک د مولوي سنګین فاتح طبیعي خاصه او لـه تظاهر او ریاکاري څخه یې کرکه کېدله، د خپلو ملګرو تر څنګ د دښمن عسـکرو هـم مولوي صاحب ته لوړ احترام درلود. نوموړي د نظامي پوهې او مسلکي توب تر څنګ د ولسي قضایاوو او د هغوی د منازعاتو په حل او فصل کې خاص مهارت درلود .

مولوي سنګین (فاتح) سره له دې چې د جګړې په مورچل کې یو باتور قوماندان و خو له ولسي خلکو او خپلو ملګرو سره یې د یوه صمیمي دوست او خواخـوږي ورور پـه حیث چلند درلود.

شهید مولوي سنګین د مجاهدینو په پوځي او اخلاقي تربیه کې ډېر کوښښ کاوه او د نظامي عملیاتو د تر سره کولو په مهال به یـې د ولسيـ خلکـو د سر او مـال خاصـه پاملرنه کوله .

## شهادت:

امریکایان د مولوي سنګین فاتح د کامیابو عملیاتو نه ډېـر تنـګ شـوي وو همـدا علت وو چې په ۲۰۱۱ میلادیکال کې یې مولوي صاحب په تور لیست کې شامل کړ، دغه د خدای د لارې سرښندونکی مجاهد د ۲۰۱۳مـیلادي کـال د سـیپتمبر د میاشـتې پـه شپږمه نېټه د جمعې د مبارکې ورځې په سهار په شمالي وزیرستان کې امریکـایي بـې پیلوټه الوتکې د یوه ملګري په حجره کې په نښه کړ او په دې توګه د صلیبیانو قاتـل، د

مجاهدينو او عوامو محبوب مشر،مولوي سنگين فاتح په شهادت ورسيد او د تل لپـاره د ابدي ژوند په لور رخصت شو.

انالله وانا اليه راجعون

مولوي صيب د خپل پلار اولنی او آخرنی شهيد زوی نه و بلکې د مولوی صـاحب نه مخکې د مولوي صـاحب ورور عبـدالوارث 'حيـدري' د پکتيکـا ولايـت پـه زيـړوک ولسوالۍ کې د امريکايانو سره په مخامخ جنگ کې شهيد شوی و او د مولوي صـيب د شهادت نه وروسته يې بل ورور محمد فاروق پـه جنـوبي وزيرسـتان کـې د پاکسـتاني پوځيانو په لاس په شهادت ورسيد. تقبلهم الله

روح دې ښاد او ياد دې يې تل ژوندی وي

❊ ❊ ❊

# د شهيد ډاکتر نصيرالدين حقاني ژوند ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

## شهادت

ژوند يو الهي امانت دی. دانسان خلقت هسې بې هوده او بې هدفه نـه دی او نـه ورته دژوند نعمت، عقل، حواس او دبدن اعضاء هسې بې هدفه عطاء شـوي دي. بلکـې دا ټول څه دالله تعالی له لوري امانات دي، ترڅو يې مکلف بنده يوازې په هغه څه کـې مصرف کړي، چې الله تعالی يې ورته لارښوونه کړې ده .

انساني نفس ډيرلوړ قدر او منزلت لري ، چې بايد هسې مفـت اود ټيټـو اهـدافو لپاره ضايع نه شي. دانسان ژوند له الهي رضاء پرته لـه بـل هرڅـه باارزښـته ده، همـدا وجه ده چې له الهي رضا پرته دبل هدف لپاره عمر تيـرول يـا ژونـد لـه لاسـه ورکـول ، دالهي نعمت ناشکري بلل کيږي .

څرنگه چې دامانت رعايت او دنعمت شکرگذاري له لوړوحسنه صفاتو څخه گڼل کيږي، همدا وجه ده چې دالله تعالی په لاره کې عمر تيرول او په پوره امانتـدارۍ سره همدا لوی الهي نعمت ( ژوند) خپل انعام کـوونکي ( الله تعـالی ) تـه سـپارل پـه دينـي لحاظ له خورا محبوبو اعمالو څخه گڼل کيږي .

دالله تعالی په لاره کې ژوند قربانولو ته شهادت وايي، هغه څه چې الله تعالی يـې مرگ نه بولي، بلکې يوداسې عاليشانه ژوند يې بولي چې دانسانانو کمزوري عقـول يـې نه شي درک کولای .دا هماغه ژوند دی ، چې خيرولدآدم محمد مصطفی صلی الله عليه وآله وسلم يې بيا بيا تمنا کړې ده ( لوددت أن أغزو في سبيل الله ثم أقتل ثـم أغـزو ثـم أقتل . . . الی اخره ) دا هماغه ژوند دی چې دالله تعالی ترټولـو محبـوب بنـدگان لکـه

پیغمبران علیهم السلام، صحابه کرام، تابعین، صدیقین، اولیاء، مجتهـدین، مجاهـدین او علماء یې د برخمن کیدو ویاړ لري .

که دشهادت په فلسـفه یـا اخـروي او دنیـوي حیثیـت بانـدې خـبره کـوو شـاید دامبحث مو ډېر اوږ د شي . راځـئ دهمـدې سـتر ویـاړ دیـوه ویـاړمن، دهمـدې سـتر نعمت دیوه برخمن او دهمدې سعادتمند سفر دیـوه مسـافر پـه ژونـد او کارنـامو سره وغږیږو .

دلته به هغه شهید سره وپیژنو چې نه یوازې خپله دشهادت په لـوړه درجـه فـائز شوی بلکې دکورنۍ لسگونه غړي یې په تیرو څو کلونو کې دشهادت له سعادته برخمن شوي دي. دشرقي او غربي فرعونیت دځغلوونکي مولوي جلال الدین حقـاني دسـترگو تور ډاکټر نصیر الدین حقاني دریادوو چې څه موده وړاندې یې دشـهادت جـام غـړپ کړ .

## شهید ډاکټر نصیرالدین حقاني

ډاکټر نصیرالدین حقاني دستر مجاهد مولوي جلال الـدین حقـاني مشرـ زوی و چې په ۱۳۵٦ هـ ش کال کې دپکتیا ولایت د وزي ځدراڼ ولسوالۍ دکنډو په کلي کـې دنیا ته راغی. نوموړي دپښتنو دځدراڼ قوم دمیزایي قبیلې له سـلطان خیلـو قـوم سره تعلق درلود. نصیر الدین حقاني دخپل پلار مشر زوی و، چـې پـه یـوه دینـداره او علـم دوسته کورنۍ کې یې نړۍ ته سترگې غړولې وې .

نصیرالدین حقاني دیوه کال په عمر و چې په افغانستان کـې کمونیسـتانو کودتـا وکړه او د قدرت په واگو یې قبضه ټینگه کړه. په دې مهال دنوموړي پلار مولوي جـلال الدین حقاني چې له وړاندې یې دکمونیستي افکارو په خلاف مبارزه پیل کړې وه خپـل جهـادي خوځښـت یـې علنـي کـړ او دپکتیـا او پکتیکـا پـه لـرې پرتـو سـیمو کـې یـې دکمونیستي رژیم په خلاف نظامي عملیات پیل کړل .

دکمونيستي ستم او شوروي يرغل څخه دنجات په خاطر دافغان اولس د سرتاسري هجرت په مهال دحقاني صاحب کورنۍ هم له ډيورنډ پولې دپاکستان خواته واوښته او د شمالي وزيرستان په ميرانشا کې يې هستوګنه پيل کړه. نصيرالدين حقاني خپلې ديني لومړنۍ او ثانوي زده کړې په جامعه دارالعلوم منبع الجهاد کې ترسره کړي او دحديثو دوره يې هم همدلته ولوستله. عصري زده کړې يې تر دولسم ټولګي پورې په انجمن القرآن عالي ليسه کې ترسره کړې او بيا دکانکور له ازمويني وروسته په بريمنه توګه طب پوهنځۍ ته لاړ، خو دامريکايي يرغل له امله دطب په برخه کې زده کړې ترې نيمګړې پاته شوې .

نصيرالدين حقاني د ډير کم عمر و چې له خپل مجاهد پلار سره دکمونيستانو په خلاف دجهاد سنګرونوته تلو. نوموړی په جهادي چاپيريال کې رالوی شو، دخپل مجاهد پلار دلارښوونو او تربيې په سيوري کې يې وده وکړه . او همدا لامل و چې دڅوند ترپايه دنه ماتيدونکي او سرلوړي مجاهد په موقف کې پاته شو.

ډاکټر نصيرالدين حقاني چې ديني او عصري علوم يې په موازي توګه تعقيب کړي او ترلاسه کړي وو، الله تعالی ورته ستر علمي استعداد ورکړی و، نوموړی له مورنۍ ژبې پښتو پرته په څلورو نورو ژبو (عربي ، فارسي ، اردو او انګليسي ) باندې روان غږېده .

دامريکا په خلاف دافغان اولس دجهاد له پيل سره ډاکټر نصيرالدين حقاني ديوه فعال ، اغيزمن او متحرک جهادي مشر په صفت دامريکايي يرغلګرو په خلاف جهاد ته ادامه ورکړه. نوموړی چې په دې ټوله موده کې يې داسلامي امارت په رهبري شوراکې دمشرحقاني صاحب په نيابت غړيتوب درلود، دجهادي تشکيلاتو په بيلابيلو نظامي او ملکي برخو کې يې خپل خدمت ته ادامه ورکوله ، ترڅو په ۱۱/۱۱/۲۰۱۳ ميلادي نيټه د پاکستان په پلازمينه اسلام اباد کې د ډارن دښمن په يوه تروريستي بريد کې دشهادت لوړ مقام ته ورسيد .

انا لله وانا اليه راجعون

## د ډاکټر نصیر الدین په شهادت غبرګونونه

د ډاکټر نصیرالدین حقاني له شهادت وروسته دنوموړي دشهادت په اړه بیلابیل غبرګونونه څرګند شول. کـه لـه یـوې خـوا د خواخـوږۍ پیغـامونو دنومـوړي سره د مسلمانانو دمینې څرګندونه کوله، له بلې خوا ددښمن لخوا شـویو اظهـاراتو او تبصرـو څرګنده کړه، چې نوموړی ترکومه ددښمن دسترګو اغزی او دنړیوال کفـر پـه وړانـدې اغیزمن مجاهد و .

د ډاکټر نصیر الدین حقاني دشهادت په اړه لـومړنی پیغـام داسلامي امـارت د رهبري شورا و، درهبري شـورا پـه تسـلیتي پیغـام کـې لولـو (پـه ډېـره خواشـینۍ سره خبرشولوچې داسلامي امارت درهبري شـورى غـړي وتـلي جهـادي اوعلمـي شخصـیت محترم مولوي جلال الدین حقاني صاحب حفظه الله مشرزوی )ډاکټرنصیرالدین حقاني تقبله الله)د دښمن په یوناځوانمردانه تروریسـتي بریـدکې پـه شـهادت ورسـید. انـالله واناالیه راجعون

اسلامي امارت د ډاکټرنصیرالدین حقـاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ دشـهادت لـه املـه د نومـوړي والد(داسلامي امارت درهبري شورى غړي جهادي او علمي شخصـیت محـترم مولـوي جلال الدین حقاني حفظه الله ) ، وروڼو، د نوموړي درنـې کـورنۍ او د اسـلامي امـارت ټولو مجاهدینوته د تعزیت او تسـلیت مراتـب وړانـدې کـوي. څرنګـه چـې نومـوړي د جهاد په لاره کې خپل روح خپل خـالق او مالـک جَلَّجَلَالُهُ تـه سـپارلی ، د الله تعـالی لـه دربار څخه ور ته د فردوس جنت غوښتنه کوي، دغه راز یـې قریبانوتـه هـم لـه الهـي دربار څخه جمیل صبر او عظیم اجر غواړي.

د جهـاد پـه لاره کـې د نومـوړي هلـې ځلـې دزیـات قـدر وړ وې، شـهید ډاکټـر نصیرالدین حقاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ دخپل ژوند ترپایه د اشغال په وړاندې د مبارزې پـه میـدان کې پاتي شو، چې دښمن د ده میړانه او د جهاد په لاره کـې فعالیـت نشـوای برداشـت کولای ، واقعا د نوموړي شهادت د اسلامي امارت او ټول افغانستان لپاره لویـه ضـایعه ده)

د ډاکټر نصير الدين حقاني له شهادت وروسته دښمن هم دې مسئلې ته پراخ مطبوعاتي انعکاس ورکړ او دايي ستره بريا وبلله. دازادې اروپا په نوم دامريکا ځانګړې يرغلګرې راډيو چې په پښتو ژبه دازادۍ راډيو په نامه فعاليت کوي او دامريکا دحکومت رسمي نظر خپروي، وويل چې نصيرالدين حقاني دحقاني صاحب دجهادي تشکيلاتو ستون فقرات (دملاتير) او مبتکر مغز و، چې بيلابيلې نظامي او مالي چارې يې سمبالولې . دښمن دنوموړي شهادت لويه لاسته راوړنه وبلله ، خو مجاهدينو په غبرګون کې وويل چې دنوموړي ځای تش نه دی بلکې لاره به يې وپالل شي.

په دې اړوند دشهيد ډاکټر صاحب پلار نوميالي مجاهد مولوي جلال الدين حقاني دمطبوعاتو له لارې يو داسې پيغام نشر کړ، چې ټول دردمن زړونه يې ټکور کړل، دا اعلاميه چې له جملو او کلماتو يې دايمان او توکل على الله بخري اوري په لاندې توګه ده .

## دمشر زوی په شهادت دمولوي جلال الدين حقاني ځانګړی پيغام

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلاً – الاحزاب ٢٣-

د افغانستان مؤمن او مجاهد ولسه او له صليبي يرغلګروسره جنګيدونکو مجاهدينو!

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته!

تر هرڅه له مخه عاليقدر امير المؤمنين حفظه الله ، سرښندونکو مجاهدينو او خپل ځان ته د جهاد او سرښندنې دلارې ديوه سرښندونکي مجاهد ، شهيد نصيرالدين (حقاني) د شهادت تبريکي وايم ، الله تعالى دې نوموړی په خپل دربارکې د شهيدانو، صديقينو او صالحينو په جمله کې قبول کړي.

ورونو !د الله تعالی په لارکې شهادت هغه لوړ افتخار دی چې رسول اکرم صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ له خپل ټول افضلیت او لوړمقام سره سره د هغه غوښتنه کړې او په مبارکو احادیثوکې دشهید ستر مقام ستایلی.

شهادت یو ځانګړی ویاړ او سعادت دی چې یواځې د الله تعالی مخلص بنده ګان وربانديې ویاړل کیږي ، شهادت فضیلت دی چې د جهاد د لارې د غوره مجاهدینوپه نصیب کیږي او بالاخره شهادت په معنوي لحاظ د مجاهد موفقیت دی چې د هغه په وسیله د څښتن تعالی د رضا مورد ګرځي او په بدل کې یې د جنت الفردوس په تلپاتي نعمتونو نازول کیږي.

مسلمان مجاهد ولسه ! نن چې زمونږ غیرتي مجاهدین له خپل هیواد څخه د دفاع په سنګروکې له یرغلګرو سره په مقابله لګیادي الله تعالی د هغوئ د شهادتونو او قربانیو له وجې په دغې تاریخې مقابلې کې ډیر ستر فتوحات ورپه برخه کړي، داسې فتوحات چې مغرور دښمن یې له خپل ټول پوځي او تخنیکي ځواک سره سره سخت وارخطاکړی ، د تیښتې لاره یې ترې ورکه کړې او نړیوال وجاهت یې تر پښو ورلاندې کړی.

ورونو! دجهاد لاره د قربانیو او سرښندنو لاره ده ، د جهادي قربانیو دغه لړۍ د احد په تاریخې غزاکې د حضرت حمزه رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ له شهادته پیل او د څوارلسوسووکلونو په تیریدو سره لا همداسې جاري ده ، شهید ډاکټر نصیر هم داسلامي نظام دحاکمیت اودخپل ګران هیواد دازادۍ په مبارزه کې د دغې ویاړمنې لارې یو لاروی و چې بالآخره خپل آرمان ته پکې ورسید، الله تعالی دي یې شهادت قبول کړي . شهید ډاکټر نصیر زمونږ د کورنۍ نه لومړنی شهید اونه به اخرنی شهید وي. بلکې د حقاني ټوله کورنۍ د جهاد او شهادت کورنۍ ده، د الله تعالی د نظام د تحکیم او د هیواد له حریم نه د دفاع په لاره کې یې شهادت ترټولو ستر آرمان دی، ماته خپله د هیواد د هرشهید په شهادت کیدو دا غبطه راځې چې کاشکي دغه د شهادت تاریخي ویاړ زما په برخه شوی وای ، ما د خپل فاني عمر ډیره برخه په دې آرمان کې تیره کړې

چې كله به مي دشهادت افتخار په برخه كيږي ، الحمد لله مونږ اوتاسو مسـلمانان يـو ، او مسلمانان د خداى په لاركې شهادت دومره خوښوي لكه كافران چې د دنيايي ژونـد خوندونه او نعمتونه خوښوي.

مسلمانو افغانانو او ګرانو مجاهـدينو ! زمـونږ غيـرتي ولـس لـه تيـرو درى نيمـو لسيزو راهيسي په خپل هيواد كې د اسلامي نظام دتحكيم په غرض قربـاني وركـوي، د هغوئ سرښندنې او د جهاد په لاره كې تويې شـوې مبـاركې وينـې ډيـرې قيمتـي دي ، مونږ تاسو ټول بايـد د هغـوئ د وينـو درنـاوى وكـړو او د هغـوئ د وينـو او شـهادتونو درناوى په دې سره كيږي چې مونږ د الله تعالى د نظـام د تنفيـذ او اسـلامي سـپيڅليو احكامو پيروي وكړو ، جهادي صف مو متحد وساتو ، دخپلو مشرانو اطاعـت وكـړو او دخپل ځوريدلي ولس د آرامۍ او سوكالۍ لپاره كار وكړو.

وروڼو !له كافرانو سره دمقابلې په صف كې زمونږ د مجاهـدينو شـهادت زمـونږ دكاميابي لامل دى نه زمونږ دناكامي لامل. زمونږ د ناكامي لامل به زمونږ انحراف او د شهيدانو له مباركو وينو سره خيانت او تفرق وي چې الله تعالى دى مونږ او په مجموع كې ټول اسلامي امت له دغه مهلک خطر څخه وژغوري.

والسلام

مولوي جلال الدين حقاني

۱۰/۱/۱۴۳۵هـ ق

۲۲/۸/۱۳۹۲هـ ش ــ ۱۳/۱۱/۲۰۱۳م

## د شهيد ډاكټر نصير الدين دشخصيت په اړه

لكه عرب چې وايي (الولد سر أبيه ) نصيرالدين حقاني هـم دظـاهري جوړښـت ، شخصيت ، فكر او كردار له اړخه دخپل مجاهد پلارمولوي جلال الدين حقاني صـاحب ژوندى مثال وو، نوموړي ته الله تعالى خورا ښايسته ، جذابه او لـه شـوكته ډكـه قيافـه

ورکړې وه ، د سيرت له اړخه خورا متواضع او خاکسار سړی و، چې هر چا يې په لومړني مجلس کې د تواضع صفت درک کولای شوای .

داسلامي امارت درهبري شورا يو تن غړي چې له شهيد ډاکټر صاحب سره نږدې وسيدلی دی ، دنوموړي دشخصيت په اړه راته وويل ( ډاکټر صاحب په مجالسو کې هميشه په ډيره حوصله او پاخه استدلال سره خپله خبره وړاندې کوله ، چې څوک به دعمر له لحاظه پرې مشر- و ډير ادب يې ورسره کاوو ، ډير مؤدب او محترم و ، دسيرت په ښکلاوو سربيره الله تعالی ښايسته صورت او ځواني هم وربښلې وه ، ژبه به يې هميشه دالله تعالی په ذکر لمده وه. له بې وزلو سره مرسته او سخاوت يې هميشنی عادت و له فرضي عباداتو نه علاوه يې هميشه نفلي عبادات هم کول، سره له دې چې خوشطبعي يې عادت وه، خو په مهمو مسئلو کې يې ښه جديت درلود او له مسائلو سره يې سطحي چلند نه کاوو .

## حقاني کورنۍ يوه دغبطې وړ مجاهده او شهادت پاله کورنۍ

ډاکټر نصير الدين حقاني دحقاني کورنۍ لومړی شخص نه دی، چې دنړيوال کفر دبريد هدف ګرځي او دشهادت لوړ مقام ته رسيږي. که څه هم دنوموړي شهادت دجهادي صف لپاره لويه ضايعه ده، خو ددوی دکورنۍ لپاره شايد دشهادت داپيښه کومه فوق العاده او غيرمترقبه پيښه ونه اوسي. ځکه دحقاني صاحب کورنۍ چې تراوسه کوم کردار ثابت کړی دی، نو دافغانستان او اسلامي نړۍ په سطحه د غازيانو او شهيدانو يو منحصر به فرد خاندان ورته ويلی شو، چې يوازې يې دامريکايي اشغال په تيرو ۱۲ کلونو کې دنارينه ، ښځينه ، ماشومو او مشرانو شهيدانو تعداد ۵۸ تنو ته رسيږي .

دشاعر خبره:

چې په برج يې بلـه خښته نه ځاييږي<br>
شهادت مو تر اسمانه پورې دنګ دی

دا يوازې امريکايي طاغوت نه دی چې مقابلې ته يې دې کورنۍ دشهيدانو لښکر وړاندې کړی، بلکې ترد ې پخوا د شوروي فرعونيت په وړاندې هم دجهاد په مهال دې کورنۍ ګڼ شمير شهيدان ورکړي دي .

دا کورنۍ له دې اړخه هم فوق العاده او دغبطې وړ مجاهده کورنۍ بلل کيـدای شي، چې يوازې له يوه کوره دپنځو تنو نومونه يې د کفري ښکيلاک په تور ليسـت کـې شتون لري .

مولوي جلال الدين حقاني چې د۲۰۰۱ لومړي کال د جنورۍ په ۳۱ مه يې اسـلامي نظام ته دوفادارۍ او کفر ته دسر نه ټيټولو په جرم يې نوم دکفارو په تور ليسـت کـې وليکل شو. سراج الدين حقاني چې د ۲۰۰۷ م کال دسبتمبر په ۱۳ يې نـوم تـور ليسـت ته داخل شو. ډاکټر نصير الدين حقاني چې د ۲۰۱۰ م کال د جـون پـه ۲۰ يـې نـوم تـور ليست ته داخل شو. دحقاني صاحب ورور حاجي خليل حقاني چې د ۲۰۱۱ م دفبرورۍ په ۹ مه يې نوم تورليست ته داخل شو. شهيد بدرالدين حقاني چې د ۲۰۱۱ م کال دمی په ۱۱ مه يې نوم په تور ليست کې وليکل شو.

امريکايي زبرځواک نن سـبا دبشـري نـړی يـوازينی زبرځـواک بلـل کيـږي، چـې دخپلې يکه تازۍ په اوج کې هيڅوک ددښمن په صفت نه شي زغملی او پرلپسې هڅـه کوي چې دنړۍ په وچو او بحرونو باندې خپله ولکه ټينګه کـړي. امريکـايي زبرځـواک دخپلې استدراجي ټيکنالوجۍ، نړيوال ملاتړ، تاثيرګـذاري او اقتصـادي قـوت پـه مـټ داسې مرحلې ته رسيدلی چې حتی پخواني نړيوال سيالان او اتومي ابرقدرتونه هم ورته دتسليم سرونه ټيټوي او برلاسي يې په رسميت پيژني، مګر داچې دهمـدې زبرځـواک په مقابل کې دافغان اولس دنورو مجاهدينو او پرګنو غوندې حقـاني کـورنۍ پرلپسـې مقاومت ته دوام ورکوي ، ددښمن هيڅ پوځی فشار، تبليغات، رواني جنګ او بريدونـه يې عزم نه شي متزلزل کولای، له دې څخه ښکاري چې دمشر ـ حقـاني صـاحب دپـاک جهاد او مخلصانه موقف له برکته الله تعالی دوی ته خورا ستر استعداد، قوي ايـمان او عزم ورنصيب کړی دی. ځکه تردې حده قربـاني ورکـول او اسـتقامت دانسـاني قـاصر

طاقت دتوان خبره نه شي بلل كيداى، ترڅوچې فوق العاده الهي نصرت او انعام ورسره مل نه وي .

## وروستۍ خبره

په پاى كې ديادونې وړ بولو چې د ډاكټر نصير الدين په شهادت سره دښمن بايد دافكر ونه كړي، چې كومه لويه بريا يې ترلاسه كړې ده او جهادي صف يې له تلپاتې زيان سره مخامخ كړ، دښمن بايد په ياد ولري، چې شهادت زموږ دلارې هغه منزل دى چې هر مجاهد يې تمنا لري. دشهيد وينه داسلام ډيوې ته د تيلو حيثيت لري. د شهيد زخم دمبارزې په تورو تروږميو كې درڼا او ځليدونكي مشال رول لوبوي . په شهادت سره مجاهدين كميږي نه بلكې نور هم زياتيږي ځكه دالله تعالى په لاره كې دسر يا مال انفاق څو برابره زياته نتيجه لري .

نو انساني نفس او ځان خو تر مال ډير ارزښتمن دى، كه څوك دالله تعالى په لاره كې نفس صدقه كړي موږ په دې ايمان لرو چې دده دوينو په بركت به دجهاد ميدان ته په سلګونو ځوانان حاضريږي او دده لاره به تعقيبوي. ځكه دالله تعالى عادت په همدې جاري دى، چې په انفاق في سبيل الله باندې څو چنده زياته نتيجه مرتبوي او كه څوك په دې لاره كې يوه دانه ترخاوره لاندې كړي هغه به اوه سوه دانې رازرغونوي.

نو بناء موږ ايمان لرو چې د ډاكټر نصير الدين حقاني په شهادت سره به دجهاد صف كمزورى نه شي او نه به حقاني كورنۍ بې څوكه شي، بلكې الله تعالى به د نوموړي نعم البدل پيدا كوي، ترڅوپه ښه شان دنوموړي جهادي لاره وپالي .

(رحمه الله تعالى)



# د شهید مولوي محمد جان صاحب ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه : قاري سعید

## پیدایښت او د ژوند ابتدائي حالات

مولوي محمد جان ( مخلص ) چې په مولوي احمدجان يې هم شهرت درلود د حاجي عبدالرؤف زوی په ۱۳۹۲ هـ ق کال چې ۱۳۴۹ هجري شمسي سره سمون خوري ، په خپل اصلي ټاټوبي د غزني ولايت دقره باغ ولسوالۍ دبرلې په کلي کې په يوه ديندراه او جهادپاله کورنۍ کې دنيا ته سترګې وغړولې.

نوموړی چې په یوه دین پالونکي خاندان کې زیږیدلی و، له ډیر کوچنیوالي دخپلې کورنۍ له خوا ديني زده کړو ته سوق کړای شو او دخپل کلي دمسجد له ملاامام څخه يې ابتدائي ديني تعليمات پيل کړل .

نوموړي چې په خپله سیمه کې یې ابتدايي زده کړې له خپل استاذ مولوي عبدالحی یزداني صاحب څخه ترسره کړې د پنځلس کلنۍ عمر ته په رسیدو دعلم دترلاسه کولو په تکل دپاکستان قبایلي سیمې ته په سفر لاړ او دجنوبي وزیرستان د وانه د کړیکوټ په سیمه کې په تعلیم القرآن مدرسه کې يې ديني زده کړې پيل کړې . په دې مدرسه کې له څه مهال درس ويلو وروسته دجنوبي وزيرستان په اعظم ورسک سيمه کې د شهيد قاري آقا محمد غزنوي مدرسې دارالعلوم المجاهد ته لاړ . په ۱۳٦٦ هـ ش کال کې د ډيره اسماعيل خان مظهرالعلوم مدرسې ته لاړ چې له هغه وروسته يې دهنګو ضلعې په توره وړۍ سيمه کې تعليم القران مدرسه کي څه مهال درس ووايه، په همدې مدرسه کې له څه مهال درس ويلو وروسته په ۱۳٦٧ هـ ش کال کې په شمالي وزيرستان ميرانشا کې دستر جهادي قائد مولوی جلال الدين حقاني صاحب

مدرسې جامعه منبع العلوم ته داخل شو او له همدې ځایه یې جهادي ژوند هم پیل شو.

## د کمونیزم په خلاف جهاد

د کمونیزم په خلاف دجهاد په مهال مولوي محمدجان چې دغه وخت نوی ځوان و، په لومړي ځل دخوست په ولایت کې په جهادي تعرضونو کې برخه واخیسته. نومړی به دحقاني صاحب له مدرسې څخه له نورو مجاهدو طالبانو سره یوځای دخوست ولایت مختلفو جبهاتو ته تلو او په جهادي عملیاتو کې یې برخه اخیسته، چې له عملیاتو وروسته به د خوست ولایت مربوط د بړي په سیمه کې دحقاني صاحب په مشهور جهادي غونډ کې میشت و .

دحقاني صاحب په مشرۍ دخوست ولایت د فتحې ۱۷ ورځنۍ معرکه چې دکمونیزم ضد جهاد دمهال مهمه کارنامه بلل کیږي، مولوي محمدجان صاحب په دې معرکه کې ګډون درلود او کله چې خوست ښار فتحه شو او حقاني صاحب د پکتیا په مرکز ګردیز باندې تعرضونه پیل کړل، مولوي محمدجان صاحب د ګردیز ښار ته څېرمه دمیلن په سیمه کې دحقاني صاحب په جهادي قرارګاه کې میشت شو. نومړي دحقاني صاحب په جهادي تشکیلاتو کې ترهغه مهاله جهاد ته ادامه ورکړه ، ترڅو په بشپړه توګه دکمونیزم کمپله ټوله شوه اوکمونیستي رژیم وپرځېد.

## تنظیمي دوره او له بیت المال څخه دفاع

د مولوي محمدجان صاحب یو نږدې ملګری قاري ضعیف وایي چې دګردیز له نیولو وروسته مولوي محمدجان صاحب سره له خپلو ملګرو دګردیز ښار دبریښنا په ریاست کې میشت شو دا مهال دخپلسرو وسله والو او تنظیمي تالانګرو لخوا په عامه تاسیساتو چور ګډ و چې ټول دولتي تاسیسات او امکانات یې له مخې چور کول او ولجه کول. په دې مهال دبې جلبه ټوپکوالو او مسلحو غلو وضعیت داسې و چې په اسانۍ یې هیچا مخ نه شوای نیولی، خو مولوي محمدجان صاحب دخپل جرأت او

ميړانې په برکت وتوانيد چې دخپلې ورسپارل شوې او شاوخوا ودانيو امنيت وساتي او له چورچپاول څخه يې بچ کړي .

قاري ضعيف وايي: د پکتيا ولايت په مرکز گرديز ښار کې زموږ درياست له څنگ سره د گرديز دفوائد عامې رياست و چې ګڼ شمير حکومتي موټر او وسايط په کې ولاړ وو، چې تردې مهاله دچپاولگرو لاس نه و ورته رسيدلی. يوه ورځ څه گورو چې د بې جلبه وسلوالو له ډلې څخه يو تن دې ودانۍ ته راغلی دی او غوښتل يې چې دغه ودانۍ قبضه او وسايط يې لوټ کړي ، کله چې مولوي محمدجان صاحب دغه ټوپکمار ليدلی، نو ورغلی دی او له ترټلو وروسته يې له دې ځايه پسې اخيستی دی .

لږ شيبه وروسته په ګڼ شمير کې ټوپکماران چې په غلا او لوټ کې يې شهرت درلود زموږ درياست مخې ته راغلل او غوښتل يې چې له موږ سره خبره سپينه کړي .

قاري ضعيف وايي زه داسې مهال له بريښنا رياست نه ورووتلم ، چې مولوي محمد جان په داسې حال کې چې راکټ ته يې مرمۍ ورتېره کړې ده، له يوه ډله ټوپکمارو سره په جنجال اخته دی او ورته وايي چې که بيرته لاړ نه شي نو له خطر سره به مخامخ شي، ددغو کسان مشر ويل چې موږ ته نورو خلکو وويل چې په دې رياست کې طالبان اوسي طالبان ډير ښه خلک دي او ورشئ په نرمه خبره ورسره خلاصه کړئ، خو مولوي محمدجان خبره ورغبرگه کړه او ورته ويي ويل چې هرچا درته ويلي چې طالبان ښه خلک دي بد يې کړي دي، موږ دبيت المال دساتنې په مسئله کې ډير بې لحاظه خلک يو او هيچا ته اجازه نه شو ورکولای چې عامه شتمنۍ لوټ کړي.

دغه کسان چې له شکل او کردار څخه غله او لوټماران ښکاريدل ويل يې چې دملي محاذ له تنظيم سره تعلق لرو او غواړو د فوايد عامې په رياست کې پوسته جوړه کړو، مولوي محمدجان ورته وويل چې په کومه لار راغلي يئ بيرته په هماغه لار لاړ شئ او اجازه نشته چې د نورو سيمو غوندې دغه محفوظ پاته ځای هم لوټ کړئ. کله چې دې شوکمارانو دمولوي محمدجان صاحب جديت وليد، نو بيرته لاړل او په دې توگه مولوي صاحب په خپل جرأت سره دبيت المال له سرمايي څخه دفاع وکړه .

له خپل جهادي مقتدا او مشر حقاني صاحب حفظه الله سره يې دائمي مصاحبت

شهيد مولوي صاحب محمد جان ته الله تعالی په نورو سعادتونو سر بيره د ډيروخت لپاره د خپل جهادي مشر مولوي جلال الدين حقاني حفظه الله د مصاحبت او ملگر تيا وياړ هم ورپه برخه کړی و.

نوموړی د خوست او گر ديز له فتحو وروسته له حقاني صاحب سره يو ځای او د هغه په ټولو مجالسوکې يې د امين السر په حيث گډون درلود.

په کابل کې د تنظيمي جگړو په مهال نوموړی له حقاني صاحب سره په ټولو هغو هلو ځلو کې مل پاتې شوی کومې چې جناب حقاني صاحب د تنظيمي جگړه مارانو(رباني، سياف، حکمتيار او مزاري ) تر منځ دسولې او يووالې په خاطر کولې.

همدا راز په هغو مجالسوکې هم له حقاني صاحب سره يوځای پاتې شوی چې حقاني صاحب د ځينو بهرنيو (عربي) هيوادونو له مشرانوسره تر سره کړي .

دا چې مولويصاحب محمد جان، جناب حقاني صاحب ته د ډير با اعتماده شخص حيث درلود، نو حقاني صاحب هم غوښتل چې په تربيوي شکل مولويصاحب په خپلو ټولو مجالسو کې له ځانه سره ملگري کړي، تر څو هغه هم په راتلونکي کې د هيواد د قضاياوو په اړه د حقاني صاحب له مصاحبت او ملتيا څخه په تأثر سره د يوه تجربه لرونکي، معلوماتي او مجرب شخصيت په توگه وروزل شي.

هماغه وه چې الله تعالی مولوي صاحب محمد جان ته د حقاني صاحب د همدې نيکې او صالحې تر بيې له برکته دمسلمانانو په خپل منځي اصلاح او جهادي ليکوته دهغوی په رابللوکې کې داسې استعداد ورپه برخه کړی و چې دهيواد دجنوبي زون د قومونو اکثره لاينحله شخړې به د ده د مصلحانه هلو ځلو په برکت حل کيدې او هغوی متنازعو خلگوبه د وروڼو په څير يو له بل سره د اخوت ژوند غوره کاوه

مولويصاحب محمد جان له حقاني صاحب سره د خپل مصاحبت او له يوه عربي هيأت سره دحقاني صاحب د ځانگړي ملاقات يوه واقعه دا سې بيان کړې :

د ۲۰۰۱ کال په لومړيوکې د متحده عرب امارتو يو لوړ پوړی هيأت له حقاني صاحب سره د ملاقات لپاره راغلی و .

د دغه وفد مشري هم د متحده عرب اماراتو دحاکمې کورنۍ يوه لوړ رتبه چارواکې کوله .

ياد وفد ته د امريکايانو لخوا دستور ورکړل شوی و چې د هغوی په غير مستقيم استازيتوب دي د امريکايانو ځينې مطالبې له حقانې صاحب سره شريکې کړي او له نوموړي څخه يي هيله لرله چې دغه مطالبې يې د امارت مشرتابه ته ورسوي .

د وفد غوښتنه دا وه چې د ځينو پخوانيو عرب مجاهدينو په اړه دې امارت په خپل موقف تجديد نظر وکړي .

حقاني صاحب د عربي وفد د خبرو په اوريدو نهايت متأثره او هغوی ته يې په ځواب کې وويل:

د د غې موضوع په اړه د اسلامي امارت موقف په يوه شرعي اصل بناء دی او هغه د پيغمبر ﷺ هغه مبارک حديث دی چې جليل القدر صحابي حضرت ابن عمر رضي الله عنه داسې روايت کړی:

عن ابن عمر – رضي الله عنهما- أن رسول الله ﷺ قال: " المسلم أخو المسلم، لا يظلمه ولا يسلمه من كان في حاجة أخيه: كان الله في حاجته، ومن فرج عن مسلم كربة فرج الله عنه بها كربة من كرب يوم القيامة، ومن ستر مسلماً ستره الله يوم القيامة" متفق عليه [۳۷۹].

نو د دغه مبارک حديث د مفهوم په مقابل کې د يوه مسلمان هيواد د غړيو په توګه تاسو څه نظر لرئ چې مونږ د هغه په وړاندې څه ډول موقف غوره کړو؟

هماغه وه چې راغلی وفد د حقاني صاحب د ځواب په مقابل کې لا ځوابه او نوريې خپل مجلس ته خاتمه ورکړه .

شهید مولوي محمد جان صاحب نورهم د حقاني صاحب په نورو ګڼو مجالسو او هغو غونډو کې ګډون درلود چې نوموړي به دهیواد داړونده قضایاوو په اړه له سیاسي او جهادي شخصیتونو او چارواکوسره لرل ، نوموړی به په ډیر غور او دقت د هرمجلس پایلې څارلې او له هغو څخه به یې نوي معلومات او نویې تجربې حاصلولې.

## د طالبانوپه تحریک کې شمولیت او خدمت

د کمونیزم په خلاف دجهاد له انتهاء وروسته مولوي صاحب یوځل بیا خپلو دیني زده کړو ته اوږه ورکړه او هغه مهال چې دطالبانو اسلامي تحریک دکابل څنډو ته رسیده نوموړی دخیبر پښتونخوا دهنګو ضلعې د زرګري په مدرسه جامعه اسلامیه کې دنبوي احادیثو په دوره بوخت و. نوموړي په همدې کال دهمدې مدرسې له شیخ الحدیث د حسین احمدمدني صاحب شاګرد ( مرحوم شیخ بهره مند صاحب ) څخه داحادیثو اجازه ترلاسه کړه او هیواد ته په ستنیدو یې داسلامي تحریک په صفوفو کې خدمت پیل کړ .

مولوي محمدجان له فراغت وروسته څه موده دخوست ولایت په متاچینه سیمه کې دمشهورې دیني مدرسې دنظامت دنده ترسر کړه او بیا دطالبانو داسلامي تحریک جهادي صفوفو ته لاړ چې په دې جهادي ژوند کې دکابل او دشمال دفتوحاتو غونډې په سترو فتحو کې یې شرکت وکړ. دبلخ ولایت له فتحې وروسته یې څه موده دبلخ ولسوالۍ د ولسوال په حیث دنده اجراء کړه او وروسته یې دلغمان ولایت دکفیل په حیث دندې ته ادامه ورکړه ، چې په لغمان کې د وظیفې په مهال به ډیره موده د دولت شاه په ولسوالۍ کې په جهادي دنده بوخت و ، چې په دې سیمه کې یې خورا تاریخي استقامت وکړ او ددښمن ګڼې حملې یې په شا وتمبولې .

دکابل دشمال په جنګي خطوطو کې مولوي محمدجان صاحب ډیره موده دحقاني صاحب دملګرو مجاهدینو سرپرستې هم کوله او ترهغه مهاله یې په جهادي عملیاتو کې برخه واخیسته ترڅو دامریکا په مشرۍ غربي کفارو دافغانستان په پاکه خاوره یرغل وکړ .

**دا مریکا په خلاف جهاد**

دامریکایانو له یرغل وروسته کله چې په پلازمینه کابل دطالبانو واکمني پـای تـه ورسید مولوي محمدجان صاحب هم دنورو طالبانو غوندې خپلې اصلي سیمې د غزني قره باغ ته لاړ. هغه مهال چې امریکایي یرغل تازه دمی وو ، نوموړي څـو ځلـه پکتیـا او کندهار ته سفرونه وکړل ، دغه مهال په مسلسله توگـه لـه سـتر جهـادي قائـد حقـاني صاحب سره په رابطه کې و او هدایات یې ترې اخیستل دغه راز یې دحقاني صاحب یو مهم پیغام هم په کندهار کې دامارت نورو مشرانو ته ورساوو .

دیرغل په لومړي کال له سقوط نه څـه مـوده وروسـته چـې د افغانسـتان دنـورو سیمو غوندې دغزني قره باغ ولسوالي هم د ټوپکیانو تر واک لانـدې راغلـې وه، مولـوي صاحب په لومړي ځل خپل نږدې ملگري راټـول کـړل او دجهـادي عملیـاتو دپروگـرام جوړولو په اړه یې ورسره مشورې پیل کړې. ددې غونډې پـه سـبا دمولـوي صـاحب یـو نږدې ملگری معاون حقمل صاحب دمحـلي حکـومتي ټوپکیـانو لخـوا ونیـول شـو، خـو مولوي صاحب په ډیر جرأت سره د ټوپکیانو قرارگاه ته ورغی او خپل ملگری یـې تـرې راخلاص کړ .

له دې وروسته مولوي صاحب له خپلې سیمې لاړ او دحقاني صاحب پـه جهـادي تشکیلاتو کې یې خـدمت پیـل کـړ ، نومـوړي دامهـال دپکتیـا، پکتیکـا او خوسـت پـه سرحدي سیمو کې په ډیرو هغو جهادي عملیاتو کې برخه واخیسته ، چې دروان جهـاد له لومړنیو تعـرضي عملیـاتو نـه شـمیرل کیـږي، ددې عملیـاتو پـه مهـال دامریکایـانو سرحدي قرارگاوې بیا بیا دمجاهدینو تر درنو بریـدونو لانـدې راغـلي او همیشـه ورتـه درانه تلفات اوښتل .

مولوي طلحه او مولوي نوید چې له مولوی صاحب سره یې په همدې مرحلـه کـې جهادي ملگرتیا کړې ده وایي ( دامریکایي یرغل په لومړیو کلونو کې موږ چـې ۲۵ تنـه ملگري وو دمولوي صاحب محمدجان په مشری مو دخوست په سرحدي سیمه پین او بیا په ببره خوله سیمه کې خفیه مرکزونه درلودل او له همدې ځایـه مـو دخوسـت پـه

ولايت کې په مختلفو سيمو کې په امريکايي قرارګاوو باندې عمليات ترسره کول. له دې جملې هغه دسکربيست عمليات ديادولو وړ دي چې وخت په وخت دخوست دصحراباغ په هوايي مرکز ترسره کيدل، دغه راز دمولوي صاحب محمدجان په مشرۍ ملګرو له نورو مجاهدينو سره يوځاى د ترخوبي، ژوره، کاريزګي، لواړه او په ځينو نورو امريکايي قرارګاوو هم بريدونه ترسره کول .

مولوي صاحب محمدجان له هغه مهاله بيا دشهادت ترنيټې پورې ديوه وفادار او نه ستړي کيدونکي مجاهد په حيث دجناب حقاني صاحب سره دهيواد په جنوب ختيځ زون کې جهادي خدمت ته ادامه ورکړه . نوموړى دحقاني صاحب له لوړرتبه او اعتمادى مشرانو ملګرو څخه و، چې نه يوازې يې نظامي کاروونه سمبالول، بلکې ملکي، اداري، دعوت او ارشاد د اولسي مشکلاتو دحل او فصل په چارو کې يې هم فعاله ونډه اخيستله او حتى ډير ځله يې په غونډو او ليدنو کتنو کې دحقاني صاحب په نمايندګۍ برخه اخيسته ، په ۲۰۱۱ م کال کې نوموړي دحج مبارکه فريضه هم ترسره کړه .

شهيد مولوي صاحب محمدجان که له يوې خوا دحقاني صاحب په جهادي جبهاتو کې دنده ترسره کوله، بله خوا يې په خپله سيمه دغزني په قره باغ کې هم يوه فعاله جهادي دلګۍ درلوده ، چې اوس هم په پوره متانت خپل جهادي خدمت ته ادامه ورکوي .

مولوي محمدجان صاحب دخپل دې جهادي ژوندپه مهال درى ځله ددښمن لخوا ونيول شو، چې په لومړي ځل يې شپږ مياشتې، په دوهم ځل دوه مياشتې او په دريم ځل يې اتلس مياشتې بنديخانه تيره کړه .

مولوي محمد جان په دې وروستيو کې دخوست ولايت دجهادي مسؤل په حيث ټاکل شوى و، نوموړى د ۲۰۱۳ م کال د نومبر په شلمه چې د ۱۴۳۵ هـ ق کال د محرم له ۱۷ مې سره سمون خوري ، هغه مهال په شهادت ورسيده ، کله چې قبايلي سيمې ته

ځیرمه د کورمې دسیند په غاړه د ټنډورو په نامه کلي کې په یوه مدرسه کې په ارام خوب ویده و ، او ددښمن دبې پیلوټه الوتکې دبرید ښکار شو .

د نوموړي جسد دشمالي وزیرستان په میرانشاه دفدایي مجاهدینو په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .

انا لله وانا الیه راجعون

څرنګه چې مولوي صاحب دخپلې سیمې په عامو خلکو کې ژور محبوبیت درلود دغزني په قره باغ کې ولسي خلکو دنوموړي روح ته د دعاء په مناسبت ستر مراسم جوړ کړل او دنوموړي یاد یې ولمانځه .

له شهید مولوي محمدجان څخه د کشرورور اوخوږې مور په شمول یوه میرمن او شپږ اولادونه پاته دي ، چې دزامنو نومونه یې محمد رفیق ، محمد ، احمد او محمد عمر دي.

## د مولوي محمدجان صاحب دشخصیت په اړه

مخکې له دې چې د شهید مولوي محمدجان صاحب دشخصیت په اړه دنوموړي دنږدې ملګرو تأثرات درسره شریک کړم ددې ژوندلیک مرتب غواړم دمولوي صاحب سره دخپلې لومړنۍ او وروستنۍ لیدنې خاطره درسره شریکه کړم .

څلور پنځه کاله وړاندې هغه مهال چې دامریکایانو په یوه ظالمانه بمبار کې د مولوي جلال الدین حقاني صاحب دکورنۍ ځیني کسان شهیدان شوي وو ، له څو تنو مجاهدینو سره قبایلي سیمې میرانشا ته چې هغه وخت د مجاهدینو مرکز و دهمدې شهیدانو دفاتحه خوانۍ لپاره لاړم ، کله چې دحقاني صاحب د ملګرو ځای ته ورسیدم ، نو دفاتحې په مجلس کې خپله دحقاني صاحب دکورنۍ څوک نه وو، خو په مجلس کې یو دقوي متې خاوند ځوان ناست وو ، چې دمیلمنو میزباني یې کوله .

ملګرو رامعرفي کړ، چې همدا مولوي محمدجان صاحب دی، چې دحقاني صاحب له نږدې او مشرانو ملګرو څخه دی، دهمدې مجلس ملګري چې دحقاني

صاحب دکورنۍ په شهيدانو يې ډير زړونه غمجن وو، لر شيبه وروسته دمولوي صاحب محمدجان په احساس پاروونکو خبرو او وعظ باندې داسې مطمئن شول ، چې د ټولو له زړونو څخه غمونه وځنډل شول .

مولوي صاحب په خپلو لنډو خبرو کې چې دټول مجلس توجه يې جلب کړه، د شهادت فلسفه بيان کړه او ويې ويل بايدپه دې شهادتونو سره دالله تعالی شکر اداء کړو چې دالله ددين دساتنې لپاره دومره قربانۍ ته اماده مجاهدين لرو. ده وويل دامريکاخلاف دجهاد په لومړيو شپو کې موږ دومره مجاهدين نلرل لکه اوس چې شهيدان لرو، معلومه خبره ده چې الله تعالی دشهيدانو وينه نه ده ضايعه کړې بلکې هميشه يې دهمدې وينو په برکت دجهاد صف قوي کړی او د مجاهدينو شمير زيات شوی دی، په هماغه مجلس کې ما وليدل چې مولوي صاحب يو له ايمانه ډک ، باعزمه او متوکل علی الله مجاهد دی، چې الله تعالی له امتحاني حالاتو سره دمقابلې لوی استعداد ورکړی وو .

هغه مجاهدين چې له مولوي صاحب سره يې نږدې وخت تير کړی وايي ، چې مولوي صاحب ته الله تعالی په ښه علم سربيره تقوی، ديانت، زړه ورتيا او جرأت هم ورکړی و او په هيڅ حالاتو کې يې عزم نه ماتيده .

داسلامي امارت دفرهنګي چارو دکميسيون مرستيال مولوي سيد محمد حقاني صاحب وايي ( ما يوازې څو ځله مولوي صاحب محمدجان په ځينو غونډو او مجالسو کې ليدلی و، خو په نوموړي کې مې دهوښيارۍ، تدبر، پاخه عزم او اخلاص خورا ډير اثار ليدلي وو ، نوموړي په جهادي صف کې خورا ستر کردار اداء کاوو الله تعالی دې دده شهادت قبول کړي .

داسلامي امارت وتلی ترانه خوان او مجاهد شخصيت ملافقيرمحمد درويش دمولوي صاحب محمدجان په اړه وايي: مولوي صاحب چې ما ورسره نږدې تعارف درلود خورا مخلص او مشفق جهادي مشر و، دخوشطبعۍ خورا ښه مزاج يي درلود، او که به يې نصيحت يا غوسه کوله هم دخوشطبعۍ رنګ به په کې ظاهر و، نوموړي له

حقاني صاحب سره اوږده جهادي ملګرتيا درلـود او د هغـه دخـورا نـږدې او اعـتمادي ملګرو څخه وو.

نوموړي دژوند ترپایه دجهاد لاره په خورا لوړه حوصله وپاللــه، دده ملګري وایـي چې مولوي صاحب دشهادت خورا ارمانجن و او تل يې دشهادت دعاګـانې کـولې، څـه موده وړاندې چې دنوموړي یو مشرـ جهـادي ملګـری مولـوي محمدسـنګين فـاتح پـه امریکایي برید کې په شهادت ورسید، مولوي صاحب محمد جان به ویل چې دشهادت وار زما وو ، خو مولوي سنګين راڅخه وار مخکې کـړ ، چـې لـه دې څخـه شـهادت تـه دنوموړي تلوسه معلومیدله .

مولوي صاحب دمجاهدینو په منځ کې په خيرخواهۍ مشهور و او لـه اخـتلاف او نزاع نه يـې خـورا کرکـه کيدلـه، نومـوړي لکـه څرنګـه چـې داولسيـ شـخړو او قـومي جنجالونو په حل او فصل کې رول درلود دمجاهدینو نيکه تربیـه او توجیـه تـه يـې هـم همیشه توجه کوله .

دشهید مولوي صاحب ورور حاجي محمد رحیم وايي : مولوي صاحب محمدجان په جهادي شوق سربيره له ديني علومو سره هم ژوره علاقه درلوده، نومـوړي پـه خپلـه سيمه دقره باغ په برله کې د نصرت العلوم په نامه دديني علومو یوه مدرسه جوړه کړه چې همدا اوس په کې ۵۵ تنه ليليه او سلګونه تنه نهاري طالب العلمان زده کړې کوي.

سره له دې چې مولوي صاحب په شهادت سره جسما زموږ له منځه تللی دی، خو دنوموړي خوږې خاطرې، کارنامې او یادونه به ترډيره دمجاهدینو په زړونـو او دتـاريخ په پاڼو کې خوندی وي، نوموړي دصدقه جاریه په توګه دطالبانو او مجاهدينو يو داسې صف ترشا پرې ایښی چې دنوموړي لاره تعقيبوي او په دې توګه دنوموړي په شـهادت سره په جهادی صف کې خلا نه محسوسيږي .

رحمه الله تعالى

## د شهید شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب ژوند ته کتنه

**لیکنه: قاري سعید**

**د عالِم مرگ د عالـَم مرگ دی**

**علم الهي صفت دی، او نبي کريم ﷺ علماء کرام خپل وارثان بللي دي. له همدې ځایه دیوه عالم وفات دامت لپـاره سـتر مصـیبت بلـل شـوی دی، دلتـه کـه ددیني علم او علماء کرامو په ټولنیز او شرعي منزلت باندې تم کیږو شاید اصلي موخه رانه پاته شي، خو دومره ویلی شو چې دیوه دیني مقتدا او عالم وفات په دنیایي ممکنو تحولاتو او حوادثو کې لکه څنگه چې عادي شمیرل کیږي په حقیقت کې کوم عادي یا معمول رویداد نه دی .**

**الله تعالی فرمایي (﴿أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا أَفَهُمُ الْغَـالِبُونَ ﴾الأنبیاء۴۴ ترجمه : آیا دوی نه ویني چې موږ له هرې خوا ځمکه راکمـوو؟ نـو آیـا دوی غالب کیدونکي دي ؟ . قال ابن عباس رضي الله عنـه: خرابهـا بمـوت فقهـاء وعلمائهـا وأهل الخیر منها، وکذا قال مجاهد أیضاً: هو مـوت العلماء)رئـیس المفسـرین حضرـت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه او لوی مفسر حضرت مجاهد رحمه الله وايي چې دلته چې الله تعالی وايي ځمکه راکموو مراد يي د ځمکې خرابیدل دي پـه وفـات د فقهـاء او علـماء سره، څکه چې علماء له ځمکې وکوچیږي نو جهل او فساد خپریږي.**

**دغه راز نبي کريم ﷺ په یوه متفق علیـه حـدیث کـې د دینـي علـماء کرامو درحلت په اړه داسې فرمایي (إن الله لا یقبض العلم انتزاعـاً ینتزعـه مـن صـدور الناس، ولکن یقبض العلم بقبض العلماء، حتی إذا لم یترك عالماً اتخـذ النـاس رؤوسـاً جُهّالاً. فسئلوا فأفتوا بغیر علم ؛ فضلوا وأضلوا." (متفـق علیـه) رسـول الله ﷺ فرمایي چې بې له شکه الله تعالی علم په داسې ډول نه قبض کوي چې دخلکو له سـینو**

يي وباسي، بلکې علم قبض کوي پـه وفـات او اخيسـتلو د علـماء سره، تـر دې چې الله تعالی يو عالم هم په ځمکه پرينږدي،نو خلک به جاهلان خپـل مشرـان مقـرر کړي،نـو دوی به له هغو پوښتنې کوي او هغه به پرته له علم څخه فتواوې ورکوي نو هغه به هـم په خپله گمراه شي او هم به نور خلک گمراه کړي.

په لوړ آيت کريمه کې ثابته شوه ، چې دعلماء کرامو او فقهاء و وفات په حقيقت کې دځمکې او نړۍ لپاره نقصان او نړېدل دي. دغه راز په نبوي حديث کې هم دامت دعلماء رحلت دعمومي گمراهۍ او ضلالت مقدمه بلل شوې ده ، دامت دعلماء کرامـو په رحلت چې وخت په وخت دامت لويانو کوم تأثرات څرگند کړي ، له هغه څخه هـم په څرگنده فهمولی شو ، چې ديوه ديني مقتدا وفات په حقيقت کې څـومره سـتر ويـر دی ، چې زياتره انسانان ترې ناخبره دي .

حضرت امام حسن رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمايي ( دعالم وفات په اسلام کې ديوه لوی شـگاف ( چاود) مثال لري ، چې ترڅو ورځ او شپه راځي هيڅ شی به يې هـم جبيـره نـه کـړای شي) حضرت امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ بيـا دعلـم دمنزلـت پـه اړه فرمـايي (النـاس أحوج إلى العلم منهم إلى الطعام والشراب،لأن الطعام والشراب يحتاج إليـه في اليـوم مرتين أو ثلاثاً، والعلم يحتاج إليه في كل وقت ) خلک له ډوډۍ او څښاک څخه علم ته ډير محتاج دي ، ځکه ډوډۍ ته خوبه په ورځ کې دوه يا دری ځله ضرورت احساسـوي خو علم ته دژوند په هره شيبه کې محتاج دي .

له لوړ وضاحت څخه څرگنده شوه ، چې ديوه رښتيني ديني عالم او فقهي رهـنما رحلت داولس لپاره خورا دروند غـم بلـل کيـږي ، خـو دتأسـف وړ داده چـې نـن سـبا داخرالزمان په فتنو کې راگيـر مسـلمانان ددا ډول درنـو غمونـو او ويرونـو لـه درک او احساس څخه په بشپړ ډول عاجزه شوي دي .

په دې وروستيو کې د سترو مصـائبو لـه جملـې يـو هـم د مخـورو علـماء کرامـو پرلپسې شهادتونه وو، د شيخ الحديث مولانا عبدالغني صاحب ، شيخ الحديث مولـوي عبدالغني مهاجر صاحب ، شيخ الحديث مفتي رحمت الله صاحب او نورو زبده علـماء

کرامو له شهادتونو وروسته په وروستیوکي تازه پیښ شوي د شهادت وقائع د شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب او شیخ الحدیث مولوي عبدالله ذاکري صاحب شهادتونه وو، چې د ایمان او علم د خاوندانو زړونه یي سخت وردردول، په دې لیکنه کې د علم او شهادت دهمدې منورې قافلې د یوې لاروی شیخ الحدیث شهید مولوي عبدالسلام صاحب د ژوند او کارنامو په اړه درسره لنډ معلومات شریکوو، هیله ده چې راسره ویي لولئ .

## شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب

شیخ عبدالسلام صاحب د حاجي خانګل زوی په قوم خروټی بانزی چې اصلي وطن یي د پکتیکا ولایت د ګومل سیمه وه،په ۱۹۴۷ میلادي کال کې په یوه دینداره کورنۍ کې دنیا ته راغی،نوموړی د خپل ۴ وروڼو له جملې دریم و، چې پلار یي په ۴ کلنۍ کې د دیني علومو زدکړې ته رهنمایي کړ.

هغه مهال چې شیخ صاحب ماشوم و ددوی کورنۍ به په اوړي دافغانستان دزابل ولایت د دایچوپان سیمې ته تلله او د ګرمۍ موسم به یي د بلوچستان په سیوی/سبي او شاوخوا سیمو کې تیراوو، د شیخ صاحب ورور وایي چې نوموړی څلورکلن ماشوم و چې د خپل پلار لخوا دیني علم ته وقف شو، د دایچوپان په خاکران سیمه کې یو مشهور دیني عالم او مدرس و، شیخ صاحب په څلورکلنۍ کې د هغه په درس کې شامل شو او چې کله به ددوی کډې د یخ په موسم کې سیوی ته تلې هم نوموړی به همالته په خاکران کې په کلیواله مدرسه کې پاته و او دیني زده کړو ته به یي دوام ورکاوو.

د شیخ صاحب د قریبانو په وینا دده یو خصوصیت داو چې له دیني تعلم او تعلیم پرته یي بل هیڅ دنیوي مصروفیت نه دی درلودلی.ځکه نوموړی په څلور کلنۍ دیني زدکړو ته شامل شو، تر ۱۳ کلنۍ پورې یې په خاکران کې دیني زده کړې کولې،په همدې عمر له دې سیمې لاړ او د زابل په نورو سیمو کې یي په مشهورو علماء کرامو لکه د زابل د شاجوی ولسوالۍ مشهور عالم مولوي سردار صاحب چې د پاسنو په

اخندزاده صاحب مشهور و، د قلات ستر عالم مولوي عنايت الله اخندزاده صاحب چې د غبرګي په اخندزاده صاحب يي شهرت درلود.په دې سربيره يې په کندهار،ميدان وردګو،غزني او دهيواد په نورو مختلفو سيمو کې يي له مشهورو علماء کرامو څخه ديني کتابونه ولوستل ، تردې چې ديني فنون يې په مکمل ډول پای ته ورسول .

شيخ صاحب د طالب العلمۍ په دوران کې دکابل د قلعه جواد له حضرت ضياء المشائخ محمدابراهيم مجددي صاحب سره د تصوف بيعت وکړ او تر پايه يې د نقشبنديه مجدديه طريقې د يو سالک په حيث د تصوف او تزکيې لاره پالله.دا چې شيخ عبدالسلام صاحب په ډير کشرتوب کې ديني زده کړه پيل کړې وه نو په ځوانۍ کې يي ټول ديني کتابونه پای ته ورسول او د احاديثو د لويې دورې لپاره د پاکستان او سيمې مشهورې مدرسې درالعلوم حقانيه اکوړه خټک ته لاړ .

شيخ عبدالسلام صاحب په درالعلوم حقانيه مدرسه کې د ستر ديني عالم او شيخ الحديث مولانا عبدالحق صاحب سره د احاديثو دوره ترسره او د عمر په ۲۵ کلنۍ کې يي دديني علومو د فراغت سند ترلاسه کړ.

## تدريسي ژوند

شيخ الحديث مولوي عبدالسلام صاحب له فراغت وروسته دديني علومو په تدريس پيل وکړ، نوموړي دتدريسي ژوند په لومړيو دريو کلونو کې عام ديني کتابونه تدريس کړل او له هغه وروسته يي داحاديثو د کتابونو تدريس پيل کړ چې د وفات تر نيټې پورې يي د يوه پيژندل شوي شيخ الحديث په حيث د صحاح سته تدريس ته دوام ورکړ .

شيخ صاحب لومړی تدريس د پاکستان دبلوچستان د سيوۍ/سبي په سيمه کې په مفتاح العلوم مدرسه کې پيل کړ. له هغه وروسته د کوټې په بروري روډ باندې په بحرالعلوم مدرسه کې مدرس شو، دلته له څه وخت تيرولو وروسته د کوټې په شابوکلي کې دارالعلوم قاسميه ته لاړ او له هغه وروسته يي د کويټې په حاجي

محمدایوب کلي کې واقع په خیرالمدارس مدرسه کې تر ۱۹۹۴ میلادي کال پورې تدریس ته ادامه ورکړه .

په ۱۹۹۴م کال کې د پاکستان د پښتونخوا ایالت ډیره اسمعیل خان ته لاړ او هلته یي په پهاړپور سیمه کې دمولوي عبدالجبار صاحب په مدرسه کې د احادیثو تدریس پیل کړ. په همدې مدرسه کې یي ۳ کاله تیر کړل او بیا د جنوبي وزیرستان په مرکز وانه کې مشهورې مدرسې دارالعلوم جنوبي وزیرستان کې د شیخ الحدیث په حیث مقرر شو چې شپږ کاله یي په همدې مدرسه کې نبوي احادیث تدریس کړل او ګڼو طالب العلمانو ترې علمي فیض او د فراغت اسناد ترلاسه کړل .

په جنوبي وزیرستان کې له شپږ کاله تدریس وروسته دیوه کال لپاره بیا په ډیره اسمعیل خان کې دمولوي عبدالجبار صاحب مدرسې ته لاړ او له هغه وروسته په ۲۰۰٦ م کال کې یوځال بیا د بلوچستان مرکز کویټې ته لاړ او د حاجي محمدایوب کلي سیمه کې په خیرالمدارس مدرسه کې یي داحادیثو دوره پیل کړه. همدلته یي د شهادت تر نیټې ۲۰۱۴ م کال پورې د صحاح سته تدریس ته ادامه ورکړه چې هرکال به ورسره سلګونه داحادیثوطالب العلمانو درسونه ویل او په سلهاوو فاضلان به یې له مدرسې فارغیدل .

شیخ صاحب په خپل ژوند کې درې ځله په ۱۹۹۹ م - ۲۰۰۵ م - او ۲۰۰۹ م کلونو کې د حج د مبارکې فریضې داداء کولو لپاره حرمینو ته هم تللی و.

**شهادت یي**

شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب په خپله مدرسه خیرالمدارس کې د نبوي احادیثو تدریس ته ادامه ورکوله دتدریس ترڅنګ د خیر او صلاح په چارو او داولسي مشکلاتو د حل په چارو هم بوخت و، نوموړي چې په عامو مسلمانانو کې یي پراخ محبوبیت درلود، هرچا یي خبرې ته غوږ نیو او دده په منځګړیتوب لو یې لانجې په ډیره اسانۍ هواریدلې .

د ۱۴۳۵ هـ ق کال د محرم میاشتې د ۲۷ په شپه چې کله شیخ صاحب لـه خپـل یوه بل ملګري سره له یوه دعوت څخه بیرته د کور په خوا روان و، د شپې ۹ بجې ددوو تنو موټرسایکل سپرو کسانو لخوا په تفنګچه دوه مرمۍ وویشتل شو او سخت ټپي شو.

شیخ صاحب چې سخت ټپي شوی و، روغتون نه نقل شـو،خو درې ورځـې بعـد د محرم د میاشتې په ۳۰ مه د شپې په ۱۱ بجې یي د سختو ټپونو له امله خپـل روح خپـل مالک ته وسپاره او دشهادت جام یي نوش کړ . انا لله وانا الیه راجعون

د شیخ صاحب د شهادت خبر د یوې غمونکي حادثې په حیث د علم او عمـل د خاوندانو په منځ کې خپور شـو. عـام مسـلمانان، طالبـان او علـماء کـرام یـي وژړول ، داحادیثو نیمه خوا شاګردانو یي په هجران اوښکې تویې کـړې، دافغانسـتان داسـلامي امارت رهبري شورا یي په اړه د غمرازۍ اعلامیه صادره کړه او ټول مؤمنانو ددې سـتر عالم د شهادت له امله دده په نامرده قاتلانو نفرین ووایه .

د شیخ صاحب د جنـازې لمـونځ د محـرم پـه دیرشـمه نیټـه د نومـوړی دنـږدې ملګري او دهیواد دتکړه عالم شیخ الحدیث هبة الله اخندزاده صاحب په امامت اداء او له هغه وروسته په کویټه کې خاورو ته وسپارل شو.

د شیخ صاحب درې زامن پاته شول چې دوه یي فارغ علماء او دریم یي په دینـي زده کړو بوخت دی .

## د شیخ صاحب د شـهادت پـه اړه د اسلامي امـارت د رهـبري شـورى د تسـلیت پیغام

اعوذ بالله من الشیطن الرجیم بسم الله الرحمن الرحیم

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِـنْهُم مَّـن يَنتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلا (الاحزاب ۲۳)

په ډېره خواشینۍ سره مو خـبر تـر لاسـه کـړ چـې دهیـواد وتلـی او منلـی عـالم جهادي شخصیت شیخ الحدیث والتفسیر مولوي عبدالسلام صاحب چـې درې ورځـې

وړاندې داسلام اودین ددښمنانو له لوري پرې ناځوانمردانه حمله ترسره شوه او شدید ټپي شو، تیر ماخستن ناوخته یې دهجرت په دیار دپاکستان هیواد دکوټې ښار په یوه روغتون کې داخیستوزخمونو له امله ساه ورکړه او د٦٧کالو په عمر په شهادت ورسید ، انالله وانا الیه راجعون.

څرنګه چې مرحوم شیخ صاحب دافغانستان په سطحه یووتلي عالم او داسلامي امارت له پیاوړو علمي او جهادي شخصیتونو څخه وو،داستاد کل حیثیت یې درلود،زرګونو طالبانو ترې ددیني زده کړو او پوهې علمي فیض ترلاسه کاوه ، شهادت یې دافغانستان او سیمې دعلمي او جهادي خوځښتونو لپاره یوه ستره او نه جبرانېدونکې ضائعه ده.

مرحوم شیخ صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ دحاجي خان ګل زوي دپکتیکاولایت اوسېدونکي وودنوموړي خپل ټول عمر ددین په خدمت کې صرف شوي ،نوموړی په ۲۵ کلنۍ کې له دیني علومو فارغ شوی،له فراغت دوه کاله وروسته یې دنبوي احادیثو(لوې دورې) ددرس په ورکولو پیل کړی له تیرو ۳۴ کلونو راهیسي په مختلفو مدرسو کې دلوې دورې په درس ورکولو بوخت وو. په جنوبی وزیرستان دارالعلوم وانه ،دډیره اسماعیل خان په لویه مدرسه او دبلوچستان دکوټې ښار دشیخ مانده په جامعه خیرالمدارس او داسي نورو مدرسو کې دحدیثو د شیخ او استاد په توګه پاته شوي .

شهیدشیخ صاحب یو ستر دیني عالم وو،دخپلې پوهې،تقوی او له خپلو عقیدتمندانو سره دزیاتې مینې او محبت کولو له امله یې دعامو خلګو په زړونو کې ځان ته ځاي پیدا کړي و. نوموړی په سیمه کې دیوه وتلي شیخ الحدیث په توګه دشهرت ترڅنګ د ستر مبلغ او جهادي بلونکي په حیث پیژندل شوی شخصیت و.همیشه به یې په سترو ناستو او جهاد ي غونډو کې په خپلو جراتمندانه ویناوو کې دمجاهدینو حمایت کاوو او دمجاهدینو د ذهن سازۍ او اصلاح ترڅنګ به یې عام خلګ داشغالګرو په خلاف ځاني او مالي جهاد ته هڅول.

شهید شیخ صاحب له کلنو راهیسي داحادیثو لویه دوره او دقـران کـریم تفسـیر کاوو، هرکال تر یو نیم سلو زیاتو طالب العلمانو له نوموړي څخه علمی فیض حاصلاوو او دفضیلت ددستار تړلو ویاړ یې ترلاسه کاوو.

دا چې دشهید شیخ صاحب ژوند او موجودیت ددین ښمنانو ونه زغمـلای شـو او دیوې بزدلانه حملې په ترڅ کې یې نوموړی په شـهادت ورسـاوه ،ددښـمن دا کرغیـړن عمل د شیخ صاحب د دارینود سرلوړي او دقاتلینو لپـاره ددنیـا او اخـرت دمختـورۍ سبب شو.

.دافغانسـتان اسـلامي امـارت ددې سـتر ویـر لـه املـه دشهیدشـیخ صـاحب کورنۍ،شاګردانو او دحق دلارې مبارزو مجاهدینو او ټولو هیوادوالـو تـه دغمـرازۍ او تسلیت مراتب وړاندي کوي،څښتن تعالی دي دمرحوم شیخ صاحب شهادت قبـول او لـوي خـدای ج دي دنومـوړي کورنۍ،زامنو،قریبـانو او شـاګردانو تـه ددې سـتر ویـر دزغملو توان او دصبر جمیل توفیق ورنصیب کړي.

دافغانستان اسلامي امارت رهبری شوری

## د شیخ عبدالسلام صاحب د شخصیت په اړه

شهید شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب په دې سربیره چې متبحر عـالم ، د احادیثو استاد او دقرآن دتفسیر، احادیثو او حنفي فقهې یو منل شوی پوه و، د روس ضـد جهادپـه مهـال او اوس د امریکـا ضـد جهـاد پـه مهـال دجهـاد کلـک ملاتـړی او دمجاهدینو لپاره یي د یو لارښود حیثیت درلود، نومـوړي همیشـه لـه مجاهـدینو سره لیدل، هغوی ته یي توصیې کولې او دخپل توان په اندازه یي ورسره دخیر په چـارو کـې همکاري کوله ،

شیخ صاحب په خپل ژوند کې د تدریس ترڅنګ د عامو مسلمانانو په ژونـدچارو کې هم دخیل شخص و، دخلکو جنجالونه او تنازعات یي هوارول او حتی د قومونـه پـه سطحه د لویو لانجو مخنیوی یي کاوو، شیخ صاحب لکه څنګه یو دقیق عالم و په عامه

عرف هم پوره خبر و. نوموړي د مسلمانانو ترمنځ د بديو په شان لويې لانجې هـوارولې مسلمانان يي سره پخلا كول او د مرگونو او جنجـالونو مخنيـوی يـي كـاوو، نومـوړی د مسلمانانو په غم غمشريک شخص و او ډير كوښښ يي كاوو چې مسلمانان له جنجالـه خلاص او زړونه يي خوشاله شي .

د نوموړي نږدې ملگری جيدعالم شيخ الحديث هبة الله اخندزاده صاحب وايـي: دحضرت شيخ صاحب سره زما ډيره علاقه وملگرتيا وه اوډيـر ليـري اونـږدې سـفرونه موسره وکړه ،په مختلفومجلسونو اوجلسوکې به موشرکت کاوو، دحضرت شيخ صـاحب امتيازي خصوصـيت داو چـي ده بـه ډيرکوښـښ كـاوو چـي ديـوه مـؤمن مسـلمان زړه خوشـحاله وسـاتي اودمسـلمانانوترمنځ بـه يـې خصوصـا دعلماءکراموداتفـاق او اتحـاد کوښـښ يـي ډيرکـاوو، لهـذاچي كلـه بـه مـوږ يوجلسيـ يايوفـاتحي يادمسـلمانانويوبل اجتماعي أمرته ورغلو،د بيرته راتلو بـه شـيخ صـاحب ويـل: څـه ښـه كاروسـوچي دغـه مسلمانان خوشحاله سوه په تقرير كښې به يې علماء ته ويل چي تاسو ولي اختلاف كوئ له اختلافه ځان وساتئ .

د افغانستان وتلی جهادي شخصيت او ديني عالم مولوي فريدصاحب چې شهيد شيخ صاحب يي له نږدې پيژاند د نوموړي په اړه وايي :د شهيد علامه شيخ عبدالسلام رحمة الله عليه ژوند واقعا په دې پُرفتن دور کـې د فخـر او تقليـد وړ و، داسـلافو يـوه نمونه وه ،صورت او سيرت يـي پـه شريعـت برابـر و، بـاطن يـي تـر ظـاهر ماتـه غـوره ښکاريده ، بي ريا او مخلص انسان و، دشپې په آخر کې به راجگ شو د تهجد لمونځ بـه يي په پټه طريقه اداء کړ، بيرته به آرام پرې ووت ، خلکـو تـه بـه يـي دا پـه خيـال كـې ورکوله،چې گويا زه بالكل د شپې تهجد ته پورته شوی نه يـم، مالـه ده سره دملگرتياپـه وخت کې دده د احالت په خپله ليدلی دی.

ډير باجرأته جيد عالم ،خوش اخلاقه د شاگردانو محبوب او جذاب شخصـيت و، د مسلمه امت په موجوده دربدره حالت او د کفري نړۍ په دسيسو خبر سړی و، همدا

وجه وه چې ددین او وطن دښمنانو ته دده مبارک وجود د زغم وړ نه و، نو دسیسه په کار شول او مسلمانان یي د غم په ټغر کینول .

که خپلې خاطرې په لنډو ټکوکې راخلاصه کړم،نو باید ووایم چې که د شهید شیخ صاحب رحمة الله علیه په شان ډیر خلک موږ درلودلای ،نو دنیا ته مو د صحابه کرامو رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُم په شان به زغرده دا اعلان کولای شوای چې : کونوا مثلنا .. یعنی لکه دا موږ داسې شئ ، چې دا قول به صحابه کرامو دنیاوالو ته کاوو.

د هیواد نومیالی عالم شیخ الحدیث و التفسیر مولوي عبدالحکیم صاحب د شهید شیخ عبدالسلام صاحب په اړه وایي : حضرت شیخ الحدیث شهید عبدالسلام صاحب مرحوم ډیر عابد او متقي شخص و،زموږ سره په ډیرو سفرونو کې ملگری شوی و، دنوموړي یوه خاصه دا وه چې هرڅومره ستړیا به وه دتهجد لمونځ یي نه پریښود.

علمی استعداد یي دومره قوي و، چې کله به د یوې مسئلې ذکر وشو یا به د کوم حدیث شریف پوښتنه وشوه،نو ده به د کتاب له ذکر سره د هغه حواله ورکړه،په فقهي مسائلو کې ډیر محتاط و همیشه یي په معتبرو کتابونو حواله ورکوله،د اخلاقو او تواضع یي دا حال و چې یو وخت په سفر کې سره ملگري و، ملگرو خوراک تیاراوو، نو شیخ صاحب په خپله د اور په بلولو او خدمت باندې اخته و.

د نوموړي اخلاق د اسلامي اخلاقو یوه نمونه وه، د خوشطبعۍ یو ځانگړی مزاج یي درلود چې هیڅوک نه ورسره تنگیدل، دملگرو د طبیعت د راستګي لپاره به یي ډیر خوږ مجلس کاوو، له کشر او مشر سره به یي د هغوی د مرتبې په مناسب انداز خبرې کولې.

شیخ صاحب یو دلاوره او جرأتمند سړی وه ، ما هیڅکله د وهم او ویرې خبره نه ده ځینې اوریدلې.د مجاهدینو سره یي ځانگړی محبت درلود،همیشه یي له مجاهدینو سره لیدل کتل، ښې ښې توصیې یي ورته کولې او دهغوی پوښتنې یي په ډیر ښه انداز په سړه سینه ځوابولې .

د شهيد شيخ صاحب په اړه د ځو تنو علماء کرامو تأثرات مو د نمـونې پـه حيـث راواخيستل، د شيخ صاحب په اړه هرچا چې ليدلی همداسې نيک تأثرات لري، نوموړي ته الله تعالی خورا ښه اخلاق او ستر علمي استعداد ورکړی و، الله تعالی ته خواست کوو چې دده برکات يـي پـه زامنـو او شـاگردانو کيـږدي او دعلـم خيـر دي يـي الله تعـالی همداسې جاري ولري . آمين يارب العلمين



# د شهيد مولوي نورقاسم حيدري ژوند او کارنامو ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

د ۱۳۹۳ هـ ش کال د حمل مياشتې په ۱۸ نيټه رسنيو خبر ورکړ، چې دکونړ ولايت په شيګل ولسوالۍ کې دهمدې ولايت لپاره د طالبانو نظامي مسؤل /والي د امريکايي بې پيلوټه طيارې په بريد کې په شهادت رسيدلی.

له معمول سره سم د مولوي نورقاسم حيدري صاحب د شهادت خبر د ورځنيو عادي خبرونو په حيث په مطبوعاتو کې بدرګه شو،خو ددې نوميالي مجاهد دشهادت خبر کوم عادي خبر نه و، په هماغه ورځ په حقيقت کې افغان مؤمن اولس خپل يو کمساری باتور بچی له کفر سره دمقابلې په جګړه کې له لاسه ورکړی و.

هو کې، مولوي نور قاسم هغه مجاهد و چې د رجالو دقحطۍ په دې زمانه کې يې نه يوازې په جهادي ډګر کې ديوه نه ماتيدونکي، زړور، مخلص او لارښود مجاهد په حيث دنده اجراء کوله بلکې د خپلو ملګرو مجاهدينو ترمنځ په محلي کچه د يوه رهنما په موقف کې و، چې په شهادت يې ډير زړونه ودرديدل .

راځئ يوه شيبه ددې نوميالي مجاهد په ژوندپيښو، کارنامو او شخصيتي ځانګړنو سره وغږيږو او د ياد په تازه کولو يې دهجران تنده ماته کړو .

## پيدايښت او زدکړې

نورقاسم حيدري د حاجي محسن زوی په ۱۳۵۲ هـجري شمسي کال د افغانستان د خوست ولايت دصبريو ولسوالۍ په نيکنام کلي کې په يوه ديندراه کورنۍ کې دنيا ته سترګې وغړولې .

نوموړي خپلې لومړنۍ زده کړې د ماشومتوب په مهال په خپله سیمه کې د مسجد له ملاامام څخه ترسره کړې، د کمونیستي کودتا وروسته یي د هجرت په مهال د پاکستان په خیبر پښتونخوا کې په مختلفو مدارسو کې د دیني علم حصول تـه دوام ورکړ.

په دې لړکي نوموړي خپلې زده کړې په کوهاټ کي پیل کړې ورپسې یي د هنگـو ولسوالۍ مربوط د درسمند سیمې رحمانیه مدرسـه، پـه میرانشـاه کـي منبـع العلـوم مدرسه،د خوست منبع الجهـاد مدرسـه، د وزیرسـتان دشـوې سـیمې ریـاض العلـوم مدرسه، د هنگو دکاهي سیمې سراج الاسلام مدرسه او دافغانستان او پاکستان په گڼو نورو مدارسو کي یي دیني زده کړو ته دوام ورکړ تردې چې له دینـي علومـو د فراغـت سند یي په ۱۳۷٦ هـ ش کال د هنگو مربوط زرگري سیمه کې واقـع پـه جامعـة العلـوم الاسلامیه مدرسه کې له مشهور استاد شیخ الحدیث بهرمند صاحب څخه ترلاسه کړ.

مولوي نورقاسم حیدري صاحب خپلـو دینـي زدکـړو تـه پـه داسـې مهـال ادامـه ورکوله چې ورسره یي جهادي فعالیت هم نه هیراوو نوموړی به دکال په اوږدو کې څه موده په سنگر کې او څه موده په مدارسو کې و، له دیني علومو له فراغت وروسته یـي څه موده دخوست ولایـت د صـبریو ولسـوالۍ پـه مچـۍ سـیمه کـې دشـمس العلـوم مدرسې دمهتمم او مدرس پـه حیـث دنـده اجـراء کـړه ددې مدرسـې دبنسـټ ډبـره نوموړي په ۱۳۷۱ هـ ش کال کـې ایښـي وه چـې تراوسـه فعالـه ده او دشـهید حیـدري صاحب دخیرجاري په حیث په کې طالب العلمان ددیني علومو زده کړې کوي .

### د کمونیزم په خلاف جهاد

مولوي نورقاسم حیدري د صورت او سیرت په لحاظ د جهاد او مبارزاتي ژوند یو مجسم تصویر و. په نوموړي کې د اسلام د لارې د یوه سرسپارلي مجاهـد ټـول صـفات موجود و. تا به ویل دغه انسان الله تعالی یوازې د خپل دین ددفاع او دکفـر پـه مقابـل کې دجنگیدلو لپاره خلق کړی دی، ځکه نوموړي خپل ټول ژوند جهاد ته وقف کړی و. خبرې، فکر او ټول کړه وړه یي د جهاد پـه اړه و، نومـوړی پـه کشرتـوب لا لـه شـوروي

يرغلگرو او دهغوی له کمونيستي گوډاگيانو سره وجنگېد، په تانده ځـوانۍ کـې يـې د شر او فتنو په مقابل کې د جهاد سنگر وپاله او په نسبتا پاخه عمر کې يـي دامريکـايي طاغوت په مقابل کې د مسلح جهاد سنگر تر هغو تود وساته چې په همدې لاره کي يي د شهادت جام غړپ کړ .

د شهيد حيدري د جهادي ژوند، اتلوليو او کارنـامو داسـتان خـورا اوږد دی چـې دلته يي موږ په لنډو جهادي خدماتو ته اشاره کوو.

هغه مهال چي د شوروي اتحاد سرو لښکرو په افغانستان هجـوم راوړی وو او پـه زرگونو مسلح ځواکونه يي په خوست ولايت کې ځای په ځای کړي وو، هغه مهـال چـې خوست ولايت د اسلام او کمونيستي کفر ترمنځ د تودې معرکې په ډگـر اوښـتی وو او د شوروي عسکرو د ډيرښت له امله يي د دوهم مسکو لقب گټلی و، په همدغه وخـت کې نورقاسم حيدري چې لا بيخي کم عمـره وو دخوسـت ولايـت پـه بـاک، عليشـيرو، ځاځي ميدان، يعقوبي، ژوره او توره غاړه سيمو کې يي د کمونيزم په خلاف په جهـادي تعرضونو کې برخه واخيسته. نوموړی له کوچنيوالي د مرميو له باران، د سکډ توغنديو له چاودنو او د روسي مېگ او برگيـو لـه بمبـارونو سره بلـد شـو. دجگـړو پـه لمبـو او ماينونو په چاودنو کې رالوی شو، دخوست د بري په ساحه کې زخمي شواو دالله تعالی په لاره کې د وينو دصدقې خوند يي وکوت، له کفري لښکرو سره دمخامخ جنگيدلو او د کمونيزم په پوستو د ورختلو هنر يـي عمـلا تجربـه کـړ، د سـتر اتـل جنـاب حقـاني صاحب تر مشرۍ لاندې د خوست په عظيمه فتحه کې يي د يوه تاند مجاهدپـه حيـث رول ولوباوو، دخوست له فتحې وروسته د کمـونيزم د ټغـر ټولولـو پـه نيـت لـه نـورو مجاهدينو سره يوځای د پکتيا د مرکز گرديز په خوا لاړ. پـه سـتو کنـډو، مچلغـو او د گرديز ښار په شاوخوا نورو سـيمو کـې يـي د کمونيسـتانو خـلاف پـه سـختو جگـړو او تعرضونو کې برخه واخيسته او ترهغه يـي جهـاد تـه ادامـه ورکـړه تـر څـو کمونيسـتي حکومت ونړيد .

د تنظیمي دورې په وروستیو کې چې د مولوي عبدالحکیم شرعي صاحب په مشرۍ په خوست ولایت کې دنظم راوستلو او فساد دمخنیوي لپاره کوم تشکیلات جوړ شول مولوي حیدري هم په کې ګډون وال و چې د خلکو دسر او مال د خوندي کولو لپاره یې ستر خدمتونه ترسره کړل.

## د طالبانوپه اسلامي تحریک کې خدمت

په ۱۳۷۳ هـ ل کال کې چې دطالبانو اسلامي تحریک په کندهار کې ظهور وکړ ، مولوي نورقاسم حیدري چې دغه مهال یې په پاکستان کې دیني زده کړې کولې د خوست ولایت د یوشمیر طالبانو سره یوځای د بلوچستان له لارې کندهار ته لاړ او په هماغو ابتدائي شیبو کې له اسلامي تحریک سره ملګری شو، نوموړي د شهید ملا بورجان اخند، شهید ملا مشر او داسلامي تحریک د نورو مشرانو په ملګرتیا د غزني او میدان وردګو ولایت په تصفیه کې برخوال و، تر څو چې دطالبانو اسلامي تحریک تر خوست پورې ورسید. دغه وخت چې د طالبانو جنګي کرښه د کابل په چهار اسیاب کې وه مولوي نورقاسم د خوست ولایت د ۷۰ تنو طالبانو سره یوځای چهاراسیاب ته لاړ. دوی داسې مهال چهار اسیاب ته ورسیدل چې په همدې ورځو کې طالبانو د دهمزنګ او کارته سه په سیمو کې د حزب وحدت لخوا تخلیه کیدونکي سیمې نیولې،مولوي نورقاسم صاحب هم له خپلو ملګرو سره دکابل ښار په جنوب لویدیځ کې همدې سیمو ته داخل شو، وروسته چې په همدې سیمه کې مسعود ناڅاپه په طالبانو برید وکړ، د سختې جګړې په پایله کې مولوي نورقاسم صاحب هم زخمي شو.

د نوموړي دهمدې صحنې یو ملګری وایي: طالبانو او دمسعود کسانو چې تردې وړاندې یې جګړه نه وه سره کړې په ډیره نږدې فاصله کې اوسیدل، ماسپښین مهال مسعود ناڅاپه په طالبانو برید وکړ، همدلته جنګ ونښت، موږ د سرک په یوه غاړه وو او بلې غاړې ته په پنځه یا شپږ مترۍ کې دمسعود وسلوال و، زه له لږ جګړې وروسته ټپي شوم اومولوي حیدري ته مې وویل چې له دې ځایه باید ووځو، ده په اطمینان راته وویل ته یو پټ ځای کینه زه په دښمن ګوزارونه کوم تر څو د وتلو لار پیدا شي، له

نوموړی سره راکټ لانچر و په دښمن يي پرلپسې څو ګوزارونه وکړل، چې ددښمن ګڼ کسان په کې له منځه لاړل، دهمدې جګړې په مهال يوه ملګري په مولوي حيدري باندې غږ وکړ چې په نږدې ودانۍ کې ددښمن کسان دي چې هشتادودو ورسره دی، تاسو سر مه پورته کوئ هسې نه زيان درته ورسيږي، مولوي حيدري راکټ ته مرمۍ واچوله او ويل يي چې وار به پرې مخکې کړم، خو چې کله يي د فير لپاره سر ورهسک کړ مخکې له دی چې دراکټ فير پرې وکړي له مقابل جانب څخه د هشتادو فير وشو، چې ددرانه انفجار په نتيجه کې مولوي حيدري په سر باندې په پرخچو ولګيد او ځای په ځای بې هوشه شو.

کله چې راپه هوښ شو نو سره له دې چې سخت زخمي و بيا يي هم له مورډ سره دچهاراسياب په خوا تګ ته ادامه ورکړه همدغه مهال طالبان د کابل له غرب څخه بيرته د وتلو په حال کې وو، مورډ چهاراسياب ته راغلو او څرنګه چې مولوي صاحب سخت زخمي و د شپې مو خوست ته ورساوو، د خوست په روغتون کې ډاکټرانو چې ايکسري واخيستي او دده د سر ټپ يي وليد نو حيران شول چې څرنګه ژوندی پاته دی ځکه دده د سرهډوکي مات وو او پرخچي يي په دماغو کې ښخې وې، ډاکټرانو وويل چې ددې علاج زمونږ د وس کار نه دی او دژوند يي هم لږ احتمال شته، د ډاکټرانو د جواب نه وروسته مونږ پيښور ته ورسولو، خو هلته هم چې ډاکټران ددماغو ټپ وليد نو له عملياتو يي انکار وکړ، ډاکټرانو وويل چې دده ټپ ډيرحساس دی که عمليات يي وشي ژوند به له لاسه ورکړي ښه داده چې کور ته يي ورسوئ ترڅو له خپلو خپلوانو سره وروستۍ دژوند شپې تيرې کړي، ډاکټرانو ويل چې ددې سخت ټپ سره سره مونږ حيران يو چې څرنګه ژوندی پاته دی او په خپلو پښو ګرځي، دوی ويل چې دا يوازې ددې مجاهد کرامت کيدلای شي او بس .

کله چې مولوي حيدري ته د ډاکټرانو د ځواب خبره ورسيده ده دا آيت ووايه : اذا جاء اجلهم لايستأخرون ساعة ولا يستقدمون . يعني مرګ په خپل وخت دی او هيڅکله مخکي يا وروسته کيدلای نه شي.

په پيښور کې د ډاکټرانو له ځواب وروسته نوموړی ملګرو بيرته خوست ته راوستلو خو خپل کور ته تر رسولو وړاندې يې په خوست کې د بادشاه زار په نوم ډاکټر ته وروستلو ترڅو يي دخپل وس مطابق علاج وکړي، دې ډاکټر وويل چې د مولوي صاحب زخم ډېر ژور او حساس دی عمليات يي خطرناک دي چې په عملياتو کي يي يوازې لس فيصده د ژوندي پاته کيدلو احتمال شته، زه يې په دې شرط عمليات کوم چې له کورنۍ او ملګرو څخه يي داجازې لاسليک راته راوړئ. د ملګرو له مشورې وروسته نوموړي ته همدا لاسليکونه راوړل شول او نوموړي دمولوي صاحب د سر زخم عمليات کړ، د ډاکټر دعملياتو له پيل سره يوځای دمولوي صاحب ملګرو د سورة يس ختم او مأثورې دعاګانې پيل کړې، لږ شيبه وروسته ډاکټر زيری راووړ چې دمولوي صاحب عمليات کامياب شول او له اعصابو څخه يي هډوکي راوايستل شول .

دهمدې عملياتو په نتيجه کې دمولوي صاحب د سرزخم يو مخ ښه شو، خوډاکټر ورته سپارښتنه کړې وه چې تر ډېر وخت پورې به په جنګ کې شرکت نه کوې او نه به په راکټ لانچر باندې فير کوې ، خو دمولوي صاحب د جهاد جذبه خورا غالبه وه تردې چې له صحت يابۍ وروسته بيا داسلامي امارت جهادي ليکو ته لاړ او دامريکايي يرغل ترمهاله يي بيا بيا په جهادي تعرضونو کې شرکت وکړ نوموړی د چاريکارو په جنګ کي يوځل بيا زخمي شو او تر هغه وخته يي د شراو فساد په مقابل کې جهاد ته ادامه ورکړه چې امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ .

## دامريکايانوپه خلاف جهاد

په افغانستان د امريکايانوله يرغل وروسته مولوي صاحب نورقاسم له مقدمو مجاهدينو څخه و چې دخوست په ولايت کې يي دامريکايانو په خلاف مسلح جهاد پيل کړ،د نوموړي دمدبرانه مشرۍ له برکته د خوست ولايت د صبريو ولسوالي په همدې سيمه کې دجهاد په يوه نه ماتيدونکي سنګر واوښتله او امريکايانو په کې سخت تلفات وليدل، سره له دې چې امريکايانو په دې سيمه کې خورا سخت ظلمونه

او وحشتونه ترسره کړل، د صبريو او خوست د نورو سيمو په زرګونو خلک يـي بنـديان او شهيدان کړل خو بيا يي هم په اولس کې دجهاد جذبه ونه وژله .

مولوي نورقاسم صاحب چې څه موده د خوست په صبريو ولسوالۍ کې د جهادي چارو مشر او ورپسې ډيره موده د خوست ولايت عمومي جهادي مسؤل/ والي و په دې ولايت کې ستر جهادي خدمتونه سرته ورسول.

نوموړي چې خپله يي په جهادي عملياتوکې شرکت کاوو او دعملياتو قومنـده بـه يي په غاړه وه د خوست څلور ولسوالۍ باک، عليشير، صبري او قلنـدر ولسـوالۍ دغـه راز دپکتيا مربوط جاني خيل ولسوالي يي په مکرر ډول فتحه کړې، دخوست په لراوبر کې ددښمن ډيرې پوستې يي هم بيا بيا فتحه کړې چې ددې عملياتو په ترڅ کي يي نه يوازې دښمن ته درانه تلفات واړول بلکې بيا بيا يي لوى مقدار غنايم هم ونيول.

په خوست کې يوه سخته جګړه چـې نومـوړی پـه کـې زخمـي شـو، دخوسـت پـه عليشيرو ولسوالۍ عمليـات وو،ددې عمليـاتو پـه نتيجـه کـې نومـوړي ددښـمن ګڼـې دفاعي پوستې فتحه کړې او دولسوالۍ مرکز ته ورسيدل، خو کله يي چـې د ولسـوالۍ په مرکز بريد وکړ د مجاهدينو مهمات کم شول ، همدغه مهال دنومـوړي همسـنګر او تکړه مجاهد دکابل اوسيدونکی ملا مصطفی په شهادت ورسيد، مولوي حيدري ملګرو ته وويل چې د مهماتو دنشتوالي له امله بايد عقب نشيني وکړي او شهيد له ځـان سره واخلي د عقب نشينۍ په مهال په مجاهدينو امريکايي الوتکو بمبار وکړ چې د مولـوي حيدري ګڼ تکړه مجاهد ملګري په کي شهيدان شول او خپله هم سـخت ټپـي شـو. دا ځل هم د نوموړي ټپونه خورا سخت و او ډاکټرانو ويل چي ښايي د نومـوړي بـدن فلـج شي، خوالله تعالی د ډاکټرانو د باور خلاف نوموړي ته يوځل بيا صحت ورکړ. له همدې زخمونو څخه له جوړيدلو وروسته مولوي صاحب له خپلو ملګرو سره يوځل بيا ددښمن په محاصره کې واقع شو، چې ټولـه شـپه لـه دښـمن سره وجنګيـد، پـه دې جګـړه کـې نوموړی يوځل بيا په سربانديې دوه مرمۍ ولګيـد، خـو دا چـې الله تعـالی د خپـل ديـن دخدمت لپاره ورباندې ژوند لورولی و له سختو ټپونو سره سره بيا هم ژوندی پاته شو.

په خوست ولایت کې د نوموړي وروستي دوه ستر عملیات چې خپله یـې مشرـي او ترتیب په غاړه و یوځل د خوست پـه خلبیسـات سـیمه کـې دامریکایـانو پـه سـتره قرارګاه باندې لومړني فدایي عملیات و، چې پلان او نقشـه یـې مولـوي صـاحب جـوړه کـړې وه پـه دې عملیـاتو کـې فـدایان پـه لـومړي ځـل دامریکایـانو پـه اډه ورننوتـل، امریکایان یې سخت وځپل او د باوري سرچینو په استناد په دې عملیـاتو کـې تـر سـلو ډېر امریکایي عسکر مړه او ټپیان شول .

له همدې عملیـاتو وروسـته پـه ۲۰۰٦ م کـال کـې د مولـوي صـاحب پـه مشرـۍ دخوست ولایت په دریو ولسوالیو صبریو، باک او علیشیرو باندې پـه هـم مهالـه توګـه ستر عملیات پیل شول چې دښمن ته په کې درانـه تلفـات واوښـتل، ددې عملیـاتو پـه مهال مولوي حیدري صاحب چـې دخلبیسـات پـه سـیمه کـې ددښـمن پـه پوسـتو پـه عملیاتو کې برخوال و، یوځل بیا ټپي شو چې دا په جهادي ژونـد کـې دنومـوړي شـپږم ځل ټپي کیدل و، خو په دې ځل هم الله تعالی دتیرو ځلونو غونـدې کاملـه شـفاء ورتـه نصیب کړه.

### د کونړ ولایت د مسؤل په حیث

د ۲۰۱۲ میلادي کال په لومړیو کـې شـهید مولـوي نورقاسـم د اسلامي امـارت د مشرتابه په فرمان د کونړ ولایت د جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو، نوموړی له ټاکـل کیدو وروسته له خوست څخه کونړ ته لاړ او په جهادي صحنه کې یې عملا د جهـادي صفوفو په تنظیم او ابتکاري برنامو په تعمیل پیل وکړ، په کونړ کې دغه مهال یـو سـتر شکایت ددښمن له جاسوسانو څخه موجود و. مولوي صاحب په ټولـو ولسـوالیو کـې د ځانګړو خفیه ګروپونو په ګمارلو سره وتوانید چې ددشمن ډېر جاسوسـان تشـخیص او بیایي له مینځه یوسي، په دې سربیره نوموړي د جهادي تهـاجمي عملیـاتو لپـاره نـوې طرحې وړاندې کړې چې په ډېری سیمو کې یې ښې نتیجې درلودې. پـه دې لـړ کـې د کونړ په مروره، دانګام، اسمار، غازي اباد، ماڼوګي او نـاړۍ ولسـوالیو کـې ددښـمن ۱۴

پوستې دمجاهدينو په عملياتو کې فتحه شوې دښمن ته په کې درانه تلفات ورسيدل او مجاهدينو ډېرې وسلې او مهمات غنيمت کړل .

د مولوي صاحب د جهادي پلانونو په نتيجه کې په ناړۍ کې دانچه ګل په نامه ددشمن مهم مرکز چې تر ۴۰ پورې ددښمن ځواکونه په کې موجود وو فتحه شو. د کونړ په دانګام کې دښمن نيت درلود ترڅو دلته يو قوي مرکزي بيس جوړ کړي، خو کله چې مولوي صاحب ددښمن له دې پلان څخه خبر شو په متقابلو عملياتو او بريدونو سره يې ددښمن د دپلان د عملي کيدو مخه ونيوله او دښمن ونه توانيد چې دلته خپل اهداف ترلاسه کړي .

په کونړ کې دمولوي حيدري صاحب د مسؤليت په مهال يوه بله مهمه بريا د ۱۳۹۲ هـ ش کال د کب مياشتې په څلورمه د غازي اباد‌په ولسوالۍ کې ترلاسه شوه په همدې نيټه مجاهدينو ديوه دقيق پلان له مخې د مزدورې اردو په يوه قرارګاه بريد وکړ چې په نتيجه کي يې ددښمن شاوخوا ۲۵ تنه عسکر ووژل شول او ٦ تنه نور مجاهدينو ژوندي ونيول بايد وويل شي چې په دې فتحه کې اساسي کردار د هغو نفوذي مجاهدينو و چې له مجاهدينو سره يې تماس درلود او مجاهدينو ته يې د دې بيس په اړه پوره معلومات ورکړي وو .

په کونړ ولايت کې دمولوي نورقاسم بله کارنامه د خپلسريو له منځه وړل او په جهادي صفوفو کې همآهنګي رامنځته کول و نوموړي په دې لاره کې خورا ستر خدمات سرته ورسول او د ډېرو ناخوالو مخه يې ونيوله.

هغه غوليدلي افغانان چې ددښمن په ملکي او نظامي اداراتو کي يې وظايف اجراء کول مولوي صاحب ټولو ته دعوت ورکړ او حتی خطونه يې ورته واستول ترڅو له دې کار څخه لاس واخلي په دې لړ کې په سلګونو کسان د ډاډ له حاصلولو وروسته ددښمن له ليکو راووتل او خپل عادي ژوند ته ستانه شول. دمولوي نورقاسم صاحب د مسؤليت په مهال په کونړ ولايت کې د دعوت والارشاد / جلب او جذب پروسه په خورا برياليتوب سره روانه وه ، په دې لړ کې يوازې دکونړ په شيګل ولسوالۍ کې ١٢٦

تنه هغه کسان چي پخوا يي ددښمن په صف کې دنده اجراء کوله مجاهدينو ته تسليم شول او له دښمنۍ څخه يي لاس واخيست .

د ولسمشرۍ د دريم ځلي انتخاباتو په لومړي پړاو کې مولوي صاحب نورقاسم د لومړني مسؤل په حيث خپله په صحنه کې و نوموړي له انتخاباتو لس ورځې وړاندې د کونړ ولايت مختليفوسيموته سفر وکړ ترڅو ددښمن دغه پروسه شنډه کړي نوموړي په درست کونړ کې د انتخاباتو د شنډولو لپاره يو مؤثر پروگرام جوړ کړ، ټولو مجاهدينو ته يي قومنده ورکړه چې دانتخاباتو په ورځ د سهار له پنځو بجو څخه ددښمن په مراکزو، پوستو، د ولسواليو په مراکزو او نورو دولتي اماکنو باندې بريدونه پيل کړي. ددې عملياتو په لړ کې د ورځې په اوږدو کې په کونړ ولايت کې مجاهدينو ۷۰ لوی او واړه بريدونه په دښمن ترسره کړل، چې په نتيجه کي يي ددښمن ۸۸ تنه عسکر، اربکيان او منسوبين له منځه لاړل او ګڼ نور ټپيان شول او په دې توګه په دې ولايت کې دانتخاباتو غربي منحوسه پروسه په بشپړه توګه شنډه شوه .

## د مولوي نورقاسم شهادت

د ۱۳۹۳ هـ ش کال د دحمل د مياشتې په اتلسمه نيټه مولوي نورقاسم حيدري چې له خپلو څو تنو ملګرو سره د کونړ د شيګل ولسوالۍ په مربوطاتو کې روان و او نيت يي و چې دکونړ ولايت له نورو جبهاتو څخه ليدنه کتنه وکړي، ناڅاپه دامريکايي بي پيلوټه الوتکې تربريدلاندې راغی چې په نتيجه کي يي مولوي نورقاسم حيدري له خپلو دريو تنو مجاهدو ملګرو مولوي عبدالکريم جانباز ، منصور او حميدالله سره يوځای د شهادت لوړ مقام ته ورسيد .

انا لله وانا اليه راجعون

مولوي صاحب نورقاسم خپل هميشني ارمان ته وصل شو او د شهادت په ابدي سفر لاړ او ترشا يي شپږ اولادونه ۳ زامن او ۳ لوڼې پريښول . رحمه الله تعالی

**خاطرې او د شخصيت ځانګړنې**

د شهيد مولوي نورقاسم يو ملګرى مولوي احرار وايي : له امريکايانو څخه د هجرت د ژوند په مهال زه او مولوي صاحب حيدري په يو کور کې اوسيدلو، چې هغه کور په دوو برخو مشتمل و، په يو حصه کې يې زه اوسيدم او په بله کې يې حيدري صاحب اوسيدلو، يوه ورځ حيدري صاحب په جهادي سفر ولاړ، دراستنيدو پرمهال په لاره کې دمنافقانوتر بريد لاندې راغی چې حيدري صاحب په سر دسترګو د کونجو په هډوکو ټپونه وخوړل، خو الله جَلَّجَلَالُهُ يې سترګې له ړنديدو وساتلې، او په همدې سفر کې يې چيرته په يوه روغتون کې ديوڅه مودې درملنې لاندې وو، کله چې کور ته راستون شو، زه له دې ناخبره وم چې حيدري صاحب ته مشکل پيښ شوي دي،هسې د پوښتنې په نيت مې د کور دروازه وروټکوله مولوي حيدري صاحب په دروازه کې سر رابهر کړ ګورم چې ډير سخت ټپي ده، ما ورته وويل چې دا ولې؟ ده کيسه راته وکړله، چې په لار کې دمنافقينو لخوا ټپي شوم، اوس دمجلس طاقت نلرم، ما ورته وويل چې څه ولاړ شه آرام وکړه، ځکه ډير زيات په تکليف و، په لمانځه کې يې دسجدې داداء کولو توان او طاقت نلرلو، کله چې راتلونکي شپه تيره شوه، نو سهار مې پوښتنه پري وکړه، چې اوس به څنګه وي دروازه مې ووهله چې کله بيرون راووتلو ما ترې وپوښتل چې څنګه يې؟ ده په ځواب کې راته وويل: چې نن جوړ يم، او راته ويې ويل چې بيګا شپه مې خوب وليدلو چې مفتي محمد فريد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ( د دارالعلوم حقانيه مفتي او شيخ الحديث )په خوب کې راغلو او راته ويې ويل: چې صبا به جوړ يې، دحيدري صاحب په وينا چې سهار له خوبه راپاڅيدم چې کله په لمانځه ودريدلم بس جوړ تيار وم سجده مې هم وکړله او پخوا مې سجده نشواى کولاى، هيره دې نه وي، چې حيدري صاحب دمفتي محمد فريد رَحِمَهُ ٱللَّهُ مريد او مسترشد وو، او دطريقت تر شپږم سبق پورې وظائف يي سرته رسولي وو.

د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د رياست الوزراء مرستيال او ختيځ زون تنظيمه رئيس مولوي عبدالکبير صاحب وايي :

مولوي نورقاسم زړور او متواضع شخص و، د خوست په سطحه له مقدمو مجاهدينو څخه حسابيږي چې نه يوازې په خپله سيمه صبريو کې ستر جهادي خدمتونه وکړل بلکې په درست خوست ولايت کي يي د جهاد په پراختيا کې ستر رول درلود، په کونړ ولايت کې دمسؤليت په مهال هم مجاهدين ترېنه خوشاله و، نوموړی د کافر په مقابل کې سخت او نه ماتيدونکی او دمسلمان په مقابل کې متواضع و، دمشر لپاره مناسبه وي چي په سخته مرحله کې خپله ځان مقاومت ته وړاندې کړي، لکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې د حنين په غزا کې په سخته مرحله کې مستقيم پاته شو، ټول صحابه په شا لاړل خو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځان قربانۍ ته وړاندې او ثابت پاته شو، په مولوي نور قاسم صاحب کې همدا دايثار او فداکارۍ صفت موجود و.

د خوست ولايت اوسيدونکی شيخ الحديث مولوي افضل حسين صاحب د مولوي صاحب په اړه دوه ليدلي خوبونه داسې بيانوي : يوځل مي ليدل چې له مولويصاحب نه شاوخوا ډير زمريان تاو وي ټول دده پيره کوي مولوي صاحب له يوه زمري سره پنجه اچولي وي خو دزمري پنجه ترې لاندې وي او داسې ښکاري چې زمری ورته تسليم وي.

دوهم دا چې په خوب کې گورم چې يو صندوق وي دمولوي صاحب يو مخالف دښمن يې دخلاصولو هڅه کوي نو څوک په خوب کې ورته ووايې چې دا دنبي کريم صلى الله عليه وسلم له طرفه محترم مولوي صاحب ته تحفه ده بل چا ته يې دخلاصولو اجازه نشته.

يو بل ملگری چې بيخي يې مولويصاحب ليدلی نه و، کله يي چې دکونړ ولايت په وروستۍ نشر شوې ويډيو کي مولوی صاحب وليدلو نو له يوه بل ملگري څخه يې وپوښتل چې دا څوک ده چې غږيږي هغه ورته وويل چې دا مولوي نورقاسم نوميږي په قوم صبری د خوست اوسيدونکی دی او اوس دکونړ ولايت جهادي مسؤول دی. هغه ورته وويل: چې قسم بالله څه وخت مخکې مې همدغه سړی له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په خوب کې څنگ په څنگ ليدلی وو.

د مولوي صاحب اقتصادي ژوند درست عمر د فقر او غربت ژوند و، دبيت المال له پيسو سره يي سخت احتياط کاوو، مولوي احرار وايي کله چې دامريکايانود يرغل په اوائلو کې مولوي صاحب هجرت ته اړ شو نو د هجرت په ژوند کي يي په يوه داسې خونه کې اړولي وو چې بيخي داوسيدو قابله نه وه، په همدې وخت کې به يي د ډوډۍ پخولو لپاره په خپله شا له غره څخه د مزرو او کيکرو ګيډۍ راوړلې او کله به چې ځينې مجاهدين ملګري ورسره ميلمانه شول، نو په کور کې يي يوازې يو چاينک وو چې په هغه کې به يې چاى جوشاوو هم او ميلمنو ته به يې هم پکې راووړ، نو کله به چې چاى ختم شو چينک به يې کور ته يووړ بيا به يې چاى جوشولو او ميلمنو ته به يې راوړلو، هغه مهال چې مولويصاحب دخوست ولايت جهادي مسؤليت په غاړه درلود بيا يې هم په خپله له غره څخه خس راوړل.

مولوي صاحب ظاهرا غريبانه او فقيرانه ژوند درلود خو نوموړي دايمان په پانګه غني او الله تعالى ورته لوی جرأت او اخلاص ورکړی و. مولوي احرار وايي : يو ځل ديو موټر بم جوړولو لپاره د څلور ټنه باروتو جوړولو او انتقالولو کار و ملګري ډير وو خو شهيد مولويصاحب په خپله په کار مصروف و، ملګرو ډير اصرار پرې وکړ چې ته کار مه کوه موږ ډير يو، يوه سرګروپ ورته وويل چې هرڅومره ملګري دې پکار وي دکار لپاره له ما يې واخله خو ته کار مه کوه، شهيد حيدري صاحب ورته په ځواب کې وويل: چې زه هم دثواب دحصول لپاره راغلى يم، آخر هغه دلګى مشر۔ هم له محترم مولويصاحب سره په کارپيل وکړ.

مولوي احرار د شهيد حيدري صاحب د جهادي تاکتيکي بريدونو په اړه وايي : دمحترم مولوي صاحب په قيادت کې يو ځل مجاهدينو دخوست ولايت صبريو ولسوالى کې يو کور څو ورځې موقتا داسې معرفي کړ لکه د مجاهدينو مرکز چې وي، يو موټر بم يې جوړ کړ، او دهمدې کور په منځ کې يې ودرولو، او اطاقونو ته يې ګڼ شمير بوټونو چپلکې او څپلۍ کينبودلې او يو فدايې ملګرى دننه په اطاق کې ناست و، چي د موټر بم شارټي مزى ورسره و ، دشپې چې کله په دوو درو چورلکو کې امريکايان

د چاپې لپاره راغلل اوټول کور ته داخل شول چيغې يې وهلې چې تسليم شئ وسله پرزمکه کيږدئ، په دغه وخت کې استشهادي مجاهد موټر بم ته انفجار ورکړ، چې په لسهاوو امريکايې عسکر پکې مړه او ټپيان شول وروسته نور امريکايان ددغو مړو او ټپيانو دانتقالولو لپاره راغلل ملګرو له وړاندې له کور نه دماينونو حلقه تاو کړي او ټول يې په داسې ترتيب برابر کړي وو چې يوځای انفجار وکړي، کله چې امريکايان دمړو او ټپيانو په پورته کولو بوخت شول دملګرو له لوري ماينونو ته انفجار ورکړل شو چې په دې کې هم ښه پريمانه امريکايان مردار شول، دعيني شاهدانو په وينا په دغو کامیابو عملياتو کې دامريکايانو مړه او زخميان له سلو اوښتي وو.

د مولوي نور قاسم صاحب د جهادي ژوند خاطرې او کارنامي خورا ډيري دي ، چې د ټولو يادول ددې ليکنې د توان خبره نه ده ، الله تعالی ته سوال کوو چې ددې رښتيني مجاهد او دحق سنګر د رښتيني ساتونکي قرباني او خدمات په خپل دربار کې قبول کړي او برکات يي په کورنۍ او ملګرو جاري ولري .

آمين يا رب العلمين



## د شهيد ډاکټر عبدالواسع عزام جهادي ژوند ته لنډه کتنه

**ليکنه:قاري محمد يونس راشد**

**هوکې : شهيد الحاج ډاکټرعبد الواسع عزام رَحِمَهُ ٱللَّهُ شـهيد شـو. شـهيد حـاجي ډاکټر صاحب تقبله الله دابدي ژوندپه لور يون پيل کړ، هغه به دشهادت دنېتې څخـه دابد لپاره دهر راز ستونزو څخه بيغمه وي نور به هغه ستوماني نه لري نور بـه دښـمن ونه توانيږي چي هغه دوحشـتونو پـه زنـدان کـي زنـداني کـړي نـور بـه شـهيد ډاکټـر عبدالواسع عزام رَحِمَهُ ٱللَّهُ دخپلو زنداني ورونړو او خويندو په کړيکو ونـه ځـوريږی ځکـه هغه اوس داسي دار ته ولاړ چی هلته نور ځورول نشته هلته غم نشـته هلتـه د رښـتينو مؤمنـانو لپـاره ټولـه دنيـاوي غمونـه دردونـه پـه بـې پايانـه رحمـت ، جنتونـو او خوښيوبدليږي.**

**شهيد حاجي ډاکټرصاحب دشهيدانو دسپيڅلي کاروان ملگری شـو هغـه اوس د نورانيت دقافلې لاروی شو ، اميد مودی انشا ءالله چي هغه بـه اوس دالهـي خطـاب دا شرف ترلاسه کړی وي چي : يا ايتها النفس المطمئنة ارجعي الی ربک راضية مرضـية ، فادخلي في عبادي وادخلي جنتي .**

**قهرمان شهيد الحاج ډاکټر عبدالواسع عزام رَحِمَهُ ٱللَّهُ د اسلامي امارت يو له هغـو پياوړو قوماندانانو څخه و چي له تنکۍ ځوانۍ څخه بيا تر شهادته پوري يـې د اسـلام له مقدس دين او مظلومو مسلمانانو څخه دفاع وکړه او په جهـادي ژونـد کـي يـې هـر ډول ستړياوو او تکاليفو ته سينه سپر کړه.**

**شهيد حاجي ډاکټرصاحب په سپېڅلي جهادي روحيه، پـوره اخـلاص او مدبرانـه مشرتوب د مجاهدينو د ښه نظم او نسق او نظامي تربيې په برخه کي پراخي هلي ځـلي**

وکړې او په ډېرو سختو حالاتو کي يې په ټينګ عزم او پوره استقامت جهادي خدمتونه ترسره کړل.

**پېژندنه :**

اتل شهيد ډاکټرعبدالواسع عزام د١٣٨٦ هجري قمـري كـال د جـمادي الثـاني د مياشتي په ١٥ نېټه د کندهار ولايت د پنجوايي ولسوالۍ د سپېروان د سيمي د حاجي عبدالباقي صاحب په ديندار کورنۍ کي وزېږيد.

**زده کړه :**

شهيد حاجي ډاکټر صاحب د خپل عمر پـه اووه کلنـۍ کـي دينـي زده کـړي پـه پنجوايي کې دخپل کلي په مسـجد کـې پيـل کـړې. نومـوړی لا تنکـی ځـوان و چـي د وحشي روسانو سرو لښکرو پر ګران هيواد يرغل وکړ او د نورو مظلومو افغانانو په شان د ډاکټر صاحب کورنۍ هم هجرت وکړ. ډاکټرصاحب په دارالهجره کـي خپلـو د ينـي زده کړو ته دوام ورکړ، دغه مهال نوموړي دبلوچستان په پنجپای کمپ کې په مدرسه افضليه کې تر څه موده ديني زده کړې ترسره کړې مګر د نوموړي په زړه کي د جهادي ولولو غورځنګ او پاک احساس دې ته اړ کړ تر څو خپلي زده کړي همـداسي نيمګـړي پرېږدي او د نورو مجاهدينو وروڼو سره يو ځاي د سپېڅلي جهـاد ګرمـو سـنګرونو تـه ولاړ شي .

څرنګه چي هغه مهال په جهادي ليکو کي زيات شمېر مجاهدين زخميان کېـدل او د نورو اسبابو تر څنګ يوه داسي کس ته هـم اړتيـاوه چـي د جګـړې د ډګـر زخمـي مجاهدين معالجه او تداوي کړي نو مجاهدينو د شهيد حاجي ډاکتـر صـاحب د هغـه ځانګړي استعداد او ذکاوت لـه مخـي چـي لـوي الله جَلَّجَلَالُهُ دی پـرې نـازولی و دغـه خدمت ته انتخاب او طبي زده کړو ته وهڅاوه، همدا و چـي حـاجي ډاکتـر صـاحب د همغه مهال ضروروي طبي زده کړي بشپړي کړې او ديوه ابتـدايي معـالج ډاکتـر پـه

حيث يې دسنګرونو د زخمي مجاهدينو په خدمت پيل وکړ او دا دنده يې په پوره اخلاص او ديانت ترسره کړله .

## جهاد او مبارزه يې :

شهيد ډاکټر عبدالواسع عزام لا نوی ځوان و چې د سرو لښکرو سره يي د مقابلې ډګر ته ور ودانګل او د کندهار په سنګحصار کې يې د مرحوم فيض الله اخندزاده صاحب په جبهه کې په جهاد پيل وکړ، دده جهادي تربيه او روزنه پداسي يوه جهادي جبهه کې وسوه چې د اسلامي امت نامتو غازيان او د سپېڅلي جهاد مشران يي غړي و لکه د اسلامي امارت زعيم عاليقدر اميرالمومنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ، الحاج ملابرادراخند حفظه الله او يو شمېر نور مشران .

په جهادي صفوفو کې له څه مودې نظامي خدمتونو وروسته د جبهې د مشرتابه لخوا د جګړې په ډګر کې د زخمي مجاهدينو د علاج او تداوي لپاره د مجاهدينو د طبي زده کړو و مرکز ته ور وپېژندل شو، نوموړی د طبي زده کړو له فراغته وروسته خپل جهادي سنګر ته ستون شو او سمدلاسه يې په عملي توګه د زخمي مجاهدينو په خدمت پيل وکړ ددې تر څنګ يې په فارغه وخت کې د سيمي د عامو مسلمانانو سره په پراخه او نه ستړي کيدونکي ډول روغتيايي مرستي کولې او دغي سپېڅلي دندي ته يې تر هغو پوري دوام ورکړ تر څو د شر او فساد، نا امنيو او ناوړه حالاتو څخه د مسلمان ملت د نجات او خلاصون په موخه د طالبانو اسلامي تحريک ظهور وکړ .

## د طالبانو د اسلامي تحريک سره يې يو ځاي کېدل:

شهيد حاجي ډاکټر صاحب په هماغه اوائلو کې د طالبانو د اسلامي تحريک سره ملګری شو او دطالبانو داسلامي تحريک دعمومي نظامي قومندان قهرمان شهيد ملامحمد اخند په مشرۍ يې سپېڅلي جهاد ته ادامه ورکړه، دغه مهال نوموړي يو سيار کلنيک جوړ کړی و چې د جګړې د ټپيانو معالجه يي کوله د هرات ولايت د فتح په درشل کې يې د زخمي طالبانو د تداوۍ او معالجې په برخه کې نه ستړي کېدونکي

او مخلصانه خدمتونه ترسره کړه اوبیا د همـدې ولایـت د روغتیـا رئـیس او ورپسـې د انحصاراتو د رئیس په توګه وټاکل شو.

د کابل ولایت له فتحې وروسته د افغانستان دسرې میاشتې د عمومي ریاسـت د معین په توګه وټاکل شو او په دغه مهمه اداره کې یې د یو لړ مهمو اصلاحاتو او مثبتـو بدلونونو په راوستلو سره خپل استعداد او قوي مدیریت څرګند کړ.

شهید حاجي ډاکټر صاحب پر دغه دنـده پـر افغانسـتان د صـلیبي یرغلګـرو تـر بریده پوري پاته و او د یرغل په جریان کې یـې د امریکـایي وحشـیانو پـه بمبـارد کـې دزخمي سوو مظلومو افغانانو سره په خورا مېړانه او سرښندنه عاجلې مرستې وکړې .

په بمبار د کې له زخمي سوو مجاهدینو او اولسي خلکـو سره یـې د خپلـو سـیارو کلینکونو په مټ داسې چټکې او مؤثرې روغتیایي مرسـتې کـولې چـې تـر هـر زخمـي پوري به یې طبي ډله رسوله او هلته به یې تداوي کاوه. د یرغل په بهیر کې یې بل لوی خدمت د هغو عربو مجاهدینو د کورنیو او ماشومانو ساتنه او بیا محفوظـو ځـایونو تـه انتقال و چې د کور سرپرستان یې یا شهیدان او یا د جګړې په لیکه کې بند پاتې وو .

## له امریکایي یرغل وروسته یې جهادي خدمات :

له امریکایي یرغل وروسته شهید حاجي ډاکټر صاحب پـه مسـلحانه جهـاد پیـل وکـړ او لـومړی یـې د کنـدهار پـه مختلفـو ولسـوالیو کـې پـه محـاربوي عملیـاتو او د مجاهدینو په اکمال کې برخه واخیسته چې پدې لړ کې یو ځـل پـه ارغسـتان ولسـوالي کې د لنډ مهال لپاره بندي هم شو.د صلیبي یرغلګرو پـه مقابـل کـې پـه هیـواد کـې د جهادي عملیاتو په طوفاني لړ کې شهید حاجي ډاکټر صاحب هـم پـه کابـل، کنـدهار، هرات او بلخ ولایتونو کې یو شمېر لوی استشهادي عملیـات پـلان او تـرسره کـړل چـې دغو ښارونو ته ده پخپله فدایان او د فدایي عملیاتو لـوازم رسـول او تـر خپـل نظـارت لاندې یې عملیات ترسره کول .

باید وویل سي چي شهید حاجي ډاکټرصاحب یو ځل د همداسي عملیاتو د پلان په درشل کي په مزارشریف کي ونیول شو چي ژر تر ژره د الله جَلَّجَلَالُهُ په نصرت را خلاص شو مګر د یوه بل مهم پلان د عملي کولو په لړ کي دی کابل ته رسیدلی و چي د صلیبي جاسوسانو له خوا کشف او ونیول شو او بیا د اوږدې مودې لپاره بندي کړای شو.

## شهید حاجي ډاکټر صاحب او زندانونه :

په کابل کي له نیول کېدو وروسته لومړی د کابل د خاد ریاست ته انتقال شو او تر پېژندني وروسته ریاست هفده ته ولېږل شو، په ریاست هفده کي د دغه ریاست د رئیس ګلالي لخوا دومره تعذیبونه او شکنجې ورکول شوې چي ددغه ریاست د مرستیال په خبره تراوسه هیچاته هم دومره وهل او شکنجې ندي ورکړل شوي خو د الله جَلَّجَلَالُهُ په فضل ددومره فشارونو سره سره بیاهم هیڅ ډول اقرار او خبره دده له خولې نه ده وتلي .

سره لدې چي حاجي ډاکټر صاحب هیڅ ډول اقرار ونکړ مګر غلامو قاضیانو بیا هم په لومړی او دوهمه محکمه کي په لس لس کاله بند محکوم کړ او په ریاست هفده کي له اتو میاشتو تېرولو ورسته د پلچرخي د مرکزي زندان څلورم بلاک ته انتقال کړل شو.

د پلچرخي په څلورم بلاک کي د اسیرو مجاهدینو مشري ورترغاړي شوه او دغه بلاک يې د خپلو تکړه ملګرو په ملګرتیا په مدرسه بدل کړ او بندیانو ته يې نه هېرېدونکي خدمتونه ترسره کړل.

په پلچرخي زندان کي د شهید حاجي ډاکټر صاحب د فعالیتونو او نفوذ له ویري د زندان چارواکو دی څو ځلي نورو زندانونو ته هم انتقال کړ چي پدې لړ کي يې د کندهار محبس، د پلچرخي نظامي یا ګوانتنامو بلاک او بیایي بګرام زندان ته یووړ.

## له زندانه خلاصون او وروستني جهادي خدمتونه :

شهيد حاجي ډاکټر صاحب په زندانونو کي مجموعاً پنځه کاله او اته مياشتي تيري کړې او د اسلامي امارت د مشرتابه په خاصه توجه له زندان څخه راخلاص شو، له زندانه تر خلاصېدو وروسته سمدستي د اسلامي امارت د مشرتابه له لوري د کندهار ولايت د ولايتي کمېسيون مسئول وټاکل شو او په دغه اداره کي يې ډېر اصلاحات او خدمات ترسره کړل چي د اسلامي امارت دمسئولينو له لوري تقدير شول، د ولايتي کميسيون د رياست وروسته د مشرتابه لخواد کندهارولايت د عمومي مسئول په توګه وټاکل شو او دلته يې هم ولايتي اداره منظمه او نور ډېر خدمتونه ترسره کړل .

د کندهار د والي په حيث له ټاکل کېدو وروسته نوموړي دمجاهدينو لپاره معسکر جوړ کړ چې درى ځله له ٦٠ تر ٨٠ پورې په حربي فن سمبال مجاهدين ترې فارغ شول ، دغه راز يي په ولايتي اداره کې نور هم مثبت نوښتونه رامنځته کړل، د ملکي او نظامي ادارو جلاجلا مياشتنى مجالس او بياپه دوو مياشتوکې مشترک مجلسونه يي پيل کړل، دکندهار د ټولو ادارو لپاره عمومي طرز العمل، دولايتي کميسيون لپاره طرزالعمل دغه راز دمعسکر لپاره طرز العمل يي ترتيب کړل او هره مياشت يي د ټولو ادارو راپور وركول د يوه مكلفيت په حيث عملي کړ، دغه راز يي دولايتي دندې په مهال دعمومي هيئتونو څخه پرته دولايتي اداري لخوا دکندهار مختلفو سيمو ته هيئتونه ليږل ترڅو جهادي چارې له نږدې ووينې، دولس شکايتونه واوري او دمجاهدينو مشکلات رفعه کړي .

## شهادت يې :

د ۱۳۹۳ کال د جهادي عملياتو له پيل مخکي د کندهارولايت د مجاهدينو دجهادي تعليماتو پنځه ورځنى مجلس له پاي ته رسېدو سره سم شهيد ډاکټر صاحب سمدستي د جهادي عملياتو په منظمولو پيل وکړ. دغه مهال سره له دې چې نوموړی په کندهار کې دلومړني مشرمجاهد په حيث ددښمن لخوا ترسخت تعقيب لاندې و، دښمن يي حتى عکسونه خوړند کړي و او له خلکو يي غوښتنه کوله چې دانعام په

مقابل کې دده په اړه معلومات ورکړي خو بيا هم شهيد ډاکټر صاحب ددښمن دداسې تعقيب او هڅو پروا نه کوله نوموړي پـه پـوره زړورتيادکنـدهار بيلابيلـو ولسـواليو تـه سفرونه وکړل او ترهغه وخته په جهـادي سـنگرونو کـې پاتـه شـوترڅو يـي د شـهادت غمجنه پيښه رامنځته شوه .

حاجي ډاکټر صاحب چې دجهادي دندې په مهال د يـوه کرايـي ډاټسـن مـوټر د موټروان په ملگرتيا د هلمند ولايت د گرمسېر ولسوالۍ د صفار له سيمي څخه تېرېـده د همدې سيمي پوليسو لخوا د درېدلو امر ورته وشو، څرنگه چي حاجي ډاکټر صـاحب له ځان سره خپل کيوبايي توپک هم درلود دا يي هيڅکله ضمير نه قبلوله چي له وسلې سره دي ژوندی ونيول شي ، سمدستي يې موټروان ته امر وکړ چي موټر مـه ورتـه دروه چي پدې سره پوليسو په خپل رېنجر موټر کي دوي تعقيب کړل او رېنجر يـې ددوي د موټر سره پر بغل کړ، کله چـي د پوليسـو رېنجـر ددوي د مـوټر برابـری تـه راورسـېد پوليسو په خپلو توپکانو حاجي ډاکټر صاحب تهديد کـړ او ورتـه ويـې ويـل چـي مـوټر ودروئ ! حاجي ډاکټر صاحب ددوي د خبرو په جواب کـي پـر دوي د خپـل کيوبـايي توپک خوله راواړوله او په سيټ کي سپاره پوليس يې وويشتل مگر د رېنجر پـه بـاډۍ کي دوه پوليس پاته شوه، هغوي پر دوی ډزکان شروع کړل، ددوي په ډزکـانو کـي حـاجي ډاکټر صاحب په پښه، لاس او نس کي زخمي شو او موټر هم له کـاره ولوېد،خودښـمن يې هم له پښو وغورځاوه چي دوی يې نورتعقيب نکړای شوای له څه تگ وروسته مـوټر ودرېد موټروان او حاجي ډاکټر صاحب په پښو يو څه تگ وکړ. وروسته حـاجي ډاکتـر صاحب له تگه ولوېد او موټروان ته يې وويل چي ته ولاړ شـه زه نـور نسـم تلـلای ،دغـه مهال چې موټروان د بل موټر د پيدا کولو او د ډاکټر صاحب دانتقال په هڅه روان شـو د موټروان له تگ وروسته حاجي ډاکټرصاحب د سختو ټپونو له امله شهيد شو او خپل وروستي ارمان ته ورسېد . انالله وانااليه راجعون.

د شهید حاجي ډاکټر صاحب تقبله الله له شهادت وروسته د پنجوايي ولسوالۍ د سفیدروان سیمي خلکو دده جسد را انتقال او په خپله پلرنۍ هدیره کي یې په ډېر عزت او درناوي سره خاورو ته وسپاره ، روح دي يې ښاد وي.

عجیب اتفاق : دالله جَلَّجَلَالُهُ شان دی چي د شهید حاجي ډاکټر صاحب مرحوم د زېږېدني او شهادت ورځي سره یو دي، حاجي ډاکټرصاحب د جمادی الثاني پر ۱۵ زېږېدلی او پر همدې تاریخ د شهادت لوړ مقام ته ورسېد ، تقبله الله

باید ووایو چې شهادت د ډاکټر صاحب ډېر پخوانی ارمان و، شیخ مولوي حبیب الله صاحب وايي چې ډاکټر صاحب یو وخت په داسې حال کې چې یوازې زه او دی په اطاق کې ناست و راته ویي ویل چې شهادت مې ډېر لوی ارمان دی باور وکړه لکه خلک چې د واده شپې ته څومره خوشالیږي زه تر هغه زیات شهادت ته هوسیږم.

د ملګرو یو څو خاطرې :

د شهید حاجي ډاکټر صاحب تقبله الله جهادي ژوند د جالبو خاطرو یوه مجموعه ده چي دهر ملګري سره یې په زړه کي خوږې خاطرې نقش دي، د ټولو خاطرو ذکر کول یوه لوي کتاب ته ضرورت لري مګر د لته یې د ځینو ملګرو بعضې خاطرې د نمونې په ډول وړاندي کوو :

د شهید حاجي ډاکټر صاحب خاص ملګری الحاج حافظ بسم الله صاحب چي په زندان کي يې هم په کلونو ملګرتیا ورسره کړې د زندان څو خاطرې داسي راته وايي :

مدرسه : د شهید حاجي ډاکټر صاحب له خوږو خاطرو څخه زما دا یوه خاطره ډېره په زړه کي ده چي کله دی د پلچرخی زندان څلورم بلاک ته راوستل شو په دغه بلاک کي يې بندیانو ته د نورو خدمتونو تر څنګ یوه منظمه مدرسه هم جوړه کړه او دزندان دغه بلاک يې کاملاً د مدرسې په شکل واړاوه، دلته له لسو زیاتو استاذانو درس کاوه او د سلګونو ډول ډول کتابونو تر څنګ یې د دغه مدرسې ټول ضروري لوازم ورته مهیا کړل. باید ووایم چي ددغه مدرسې څخه په لسګونو حافظان او قاریان

فارغ شوي او ګڼونورو طالب العلمانو پرې خپله علمي تنده ماته کړېده، د نورو طالبانو تر څنګ خپله حاجي ډاکټر صاحب هم له دغي مدرسې څخه عظيمه استفاده وکړه، قرانکريم يې ټول په قرائت او تجويد زده کړ او د ازادي مطالعې تر څنګ يې يو شمېر نور درسي کتابونه هم ولوستل، دغه مدرسه اوسه هم فعاله ده او له کتابو څخه يې ددغه بلاک تر څنګ د نورو بلاکونو بنديان هم استفاده کوي .

**تقوی :** حاجي ډاکټرصاحب شهيد ډېر متقي او همېشنی عابد و، زما په زندان کي نه يادېږي چي ده دي د تهجد لمونځ قضاء کړئ وي ، هره هفته به يې صلاة تسبيح لمونځ اداء کاوه حتی ځيني وختونه به يې هره ورځ هم کاوه، د قرانکريم تلاوت يې خپل عادت جوړکړئ و، په ملګرو کي مشهوره وه چي کوم ملګری به په عبادت کي کمزوری و؛ ويل به يې ځم د حاجي ډاکټر صاحب سره په اطاق کي ملګری کېږم تر څو د عبادت رنګ ورڅخه واخلم .

**ايثاراو سخاوت :** شهيد حاجي ډاکټر صاحب ډېر سخي و،څرنګه چي ده ته ډېر پايوازان راتلل او ډېر شيان يې ورته راوړل ده به ټول تقسيمول. حتی پداسي وخت کي هم چي ده به ډېر ضرورت ورته درلود. کله چي يې مورږ د بګرام زندان څخه بيرته پلچرخي زندان ته راوړو نو له دغو ملګرو سره نه پيسې وې او نه کوم بل د ضرورت شی، بنديان حيران وو چي خپل ضرورتونه څنګه پوره کړي، حاجي ډاکټر صاحب د بلاک کانتين والا را وغوښتی او ورته ويې ويل چي ورسه د بګرام څخه د را وستل سوو ټولو بنديانو پراطاقو وګرځه او ورته ووايه چي هر شي ته مو ضروروت وي راته ووایاست زه يې درته راوړم او ټولي پيسي حاجي ډاکټر صاحب راکوي، کانتين والا همداسي وکړل او په پای کي ټولي پيسې حاجي ډاکټر صاحب ورکړې .

سرشاري اوجرئت : د حاجي ډاکټر صاحب له خوږو خاطرو څخه يوه مي دا ډېره يادېږي چي ده به د زندان او د حکومت له لوړپوړو چارواکو سره هر وخت د بنديانو دحقوقو د دفاع په خاطر په ډېر جرئت سره خبري کولي او په خبرو کي يې هيڅ ډول تنزل نه ښکاره کاوو، همدا علت و چي هر وخت به دی مرحوم جزايي او کوټه قلف و.

**خاصه خاطره :** يو ځل مي له حاجي ډاکټر صاحب شهيد څخه وغوښتل تر څو زما د ملګرو د يادګارونو په کتابچه کي خپل يو يادګار راته وليکي ده د يادګار په پيل کـي خپل ادرس داسي ليکلی وو : اوسـنی ادرس : پلچرخـی زنـدان څلـورم بـلاک ، دايمـي ادرس : جنت الفردوس لوړ منزلونه ...

په اسلامي امارت کې دهـرات پخـوانی والي او بيـا دفوايـد عـامي وزيـر مولـوي احمدالله مطيع وايي:

شهيد ډاکټر صاحب زه له ډيرکشرتوبه پيژنم په يوه مدرسه کې مو درسـونه سره ويلي دي له هغه وخته ډاکټر صاحب ډير لوړ اخلاق درلودل اوډيرخواريکښ سړی و له جهاد سره يې ډيره زياته مينه وه دتعلقاتو په ټينګولو اوپاللو کې يي خـورا ښـه مهـارت درلودداسلامي امارت په اسـتازيتوب بـه يـې لـه ډيـرو خطرنـاکوجهتونوسره تماسـونه ټينګول او بيا به يې دملاقاتونو لپاره زمينه سازي کوله او له خطره ډک سفرونه يي کول ،ډيرزړور انسان وحتی په دا اوسني جهاد کې به هغو کسانو چـي دډاکټـر صـاحب لـه جهادي فعاليتونونه به خبر وو له ده سره به يې په يوه موټر کې سفر کولو ته زړه نه ښه کاوو ځکه چي شهيد ډاکټر صاحب به په خپل موټر کې نظامي مواد لکه منفجره توکي او وړه وسله يوه اوبله خوا انتقالوله او دمجاهدينو مراکزو ته به يې رسول زه چي يې پـه شهادت خبر شوم نوډير زيات غمګين شوم الله تعالي دي جنتونه ور په برخه کړي .

دشهيدډاکټرصاحب يو جهادي ملګری اغاجان وايې :

شهيد ډاکټر صاحب به په جهادي کارونو کې خورا ښه تکتيکونه کارول يوځل يې ماته داستشهادي بريد لپاره يو جوړ شوی اوله منفجره موادو ډک شوی ټـونس موټرپـه لاس را کړ چي دکندهار په ښار کې يې خوندي کړم ما هم دسيمټي خښتو دجوړولو په يوه کار خانه کې ودراوو هلته کارګرو او ځوانانو بـه زيـاتره وخـت پټـي ( قطعـې ) سره کولي ډا کټرصاحب ماته وويل ته يې هم ور سره کوه او ټوکي ټکـالي هـم ور سره کـوه، چي شک وانخلي. که څه هم زما زده نه وې ،خو پـري ور ګـډ شـوم او دري ورځـې مـې هلته تيري کړې خو دغه خلک راباندې پوه نه شـول همـدا رنګـه مـوږ ښـه ډيـر وخـت

دکندهار په ښار کې تیر کړ په هغه وخت کې به دګوډاګی اداري چارواکو اکثره سرف موټر کارول شهید ډاکټر صاحب هم سرف موټرددې لپاره واخست، چې هرڅای یې پولیس ونه دروي اودچا توجه جلب نه کړي او موږ ته به یې ویل چې ښه لوکس او جدید لباس اغوندئ، تر څو څوک پوه نشي چې موږ مجاهدین یو همداسي موکول ډاکټر صاحب به را سره و او ښه ډیر وخت موپه ښار کې دننه جهادي فعالیت وکړ.

حاجي خلیل د ډاکټر صاحب دجرئت او تدبیر په اړه وایي :

شهید حاجي ډاکټر صاحب له مهماتو ډک مازدا موټر په لاس راکړ او دی خپله تر مخه په ټونس کي روان و، کله چې دکندهار ښکارپور بازار ته ورسېدو هلته عسکرو سخته تلاشي کوله، زما مخکي یوه کرولا وه او د هغه مخته د ډاکټر صاحب ټونس روان و، عسکرو د حاجي ډاکټرصاحب موټر له تلاښۍ وروسته ایله کړ او روان سو کله چې کرولا تلاښي ته ودرېدل ما فکر وکړ چې تلاښي هم سخته ده او حاجي ډاکټر صاحب هم ولاړ، دده د خبرولو لپاره مي د مازدا غټ هارن وواهه ، عسکر راغی او خوشکه یې راته وکړه چې ته په هارن له تلاشۍ څخه ځان خلاصوې ؟ ده لا خوشکه نه وه خلاصه کړې چې حاجي ډاکټر صاحب راغی او له عسکر څخه یې پوښتنه وکړه چې څه کیسه ده ؟ عسکر ورته وویل چې دا موټروالا په هارن ځان له تلاښۍ څخه خلاصوي. حاجي ډاکټر صاحب وویل هو دا خلکو لوی لوی موټران را رهي کړي وي او لوی لوی هارنونه هم وهي ، ددوي د لاسه خلک په کورو کي خوب نسي۔ کولای، ډاکټر صاحب ماته سخت بدرد وویل او تر ګریوان یې ونیولم له موټر څخه یې راشوه کړم او څو چپلاخي یې ووهلم او بیا یې موټر ته ور پوري وهلم او راته ویې ویل چې زه حرکت وکړه. عسکر هک حیران پاته دی او ماحرکت وکړ اوپه دي ډول مو موټر له تلاشي خلاص اوتیر کړ، لږ چي ولاړو حاجي ډاکټر صاحب شهید په هنداره کي راته وکتل او خندل یې . . .الله تعالی دي ورڅخه راضي سي ډېرجرئتمند او دلاوره مشر وو

قاري محمد یونس راشد وایي :

اخلاص : زه د حاجي ډاکټر صاحب لـه اخـلاص څخـه ډېـر متـأثر وم، چـي کـوم جهادي خدمت به يې کاوه په مخ کي د پرتو ستونزو، خطرونو او سترياوو هيڅ پروا يې نه کول. يو ځل يې څوتنه علماء د يوه طرزالعمل د تسليمولولپاره دعـوت کړيـوه، دغـه طرزالعمل بايد د اسلامي امارت د يو شمېر لوړپوړو مسئولينو په حضـور کـي دوي تـه سپارل سوی واي مگر تصـادف داپېښ سـو چـي پـه کومـه ورځ دا طرزالعمـل علـماوو تسليماوه په هماغه ورځ حاجي ډاکټرصاحب بل مهم مجلس هـم درلـود، نولـه همـدې امله دواړه مجالس کول ناممکن و . حاجي ډاکټر صاحب علماوو ته وويل چـي د شـپې پر درو بجو سفر لرو، د سهار لمونځ هلته کوو او لمانځه وروسته ستاسـو مجلـس کـوو چي مجلس خلاص سي زه خپل بل مجلس دائروم ( بايد ووايو چـي ددواړو مجلسـونو د موقعيتونو تر منځ نژدې سل کېلومتره لار وه چي ډېره برخه يې خامه او خرابه هـم وه ) کله چي داخبره علماوو واورېده سخت حيران سوه چي والي وگوره او دشـپې پـر دريـو بجو دومره ليري ځاي ته تگ ؟ لکه چي حاجي ډاکټر صاحب ويلي و همـداسي د شـپې پر دريو بجو راغلی، يو ملگری ورسره و هغه موټر چلاوه موټر هم بې اسناده و، ما ورتـه وويل چي حاجي ډاکټر صاحب دا وخت خطرناکه دی او موټر دي هم بې اسـناده دی، سهار وختي ولاړ سه، ده وخندل او په پوره جرئت يې وويل چي ان شاء الله شـی نسـته، پداسي حال کي يې خداي په اماني واخيست چي پر څېره يـې موسـکا او اطمينـان لـه ورايه ښکارېدل، همداسي يـې دواړه مجلسـونه وکـړل، اوس مـي هـم دده دهغـه شـپې خندانه څېره ترسترگو گرځـي، الله دي ورڅخـه راضي سي او جنـت الفـردوس دي يـې ځاي سي آمين.

قاري سعيد وايي ډاکټر صاحب خپل دبندي کيدو او په زندان کې دگـوزارې پـه اړه خپل نظر داسې راسره شريک کړ :

ما به له ډير وخته دا ارمان کاوو چې الله تعالی ددیني علومو دزده کړې، يا د دين دخدمت لپاره الله تعالی يو ښه ارام ماحول راته برابر کړی وای، ترڅو مې دښـو ملگـرو په ملگرتيا کې ديني علوم لوستي وای .

کله چې په پل چرخي کې بندي شوم نو سره له دې چې ظاهرا موږ بنديان بلل کيدلو خو هلته ملگرو په خپل همت او کوښښونو سره دزندان فضاء داسې جوړه کړې وه، چې موږ ترې بې مثاله فايده واخيستله .يقينا که څوک وغواړي، له هرډول حالت څخه دخپل دين او دنيا دخير لپاره گټه اخيستلای شي، زندان که څه هم نوم يې ډير بد دی، خو که مؤمن او مجاهد بنديان کوښښ وکړي له همدې زندان څخه هم ددينې خدمت ډگر جوړولای شي .

موږ په پل چرخي کې دملگرو دهمت، اتفاق او تفاهم په برکت دخپلو اوسيدو په ځای (څلورم بلاک) کې يوه منظمه مدرسه جوړه کړې وه ، دامدرسه چې په پيل کې دبغلان ولايت داوسيدونکي ملاجنت گل اخند په کوښښ باندې پيل شوه، وروسته ملگرو په خپلو هڅو سره ټول فرش او ظرف، لکه دکتابونو ميزونه، الماری، پردې د ۱۵ استادانو لپاره تدريسي او دمطالعې کتابونه، دغه راز د ۱۲۰ طالبانو او تر ديرش ډيرو حافظانو لپاره کتابونه او قرانکريمونه برابر کړل، مدرسې دنورو مدارسو غوندې سم منظم فعاليت کاوو، لومړی يې دجلال اباد مولوي محب الله مهتمم وو، له هغه وروسه دغزني مولوي محمدعثمان او وروسته بيا دننگرهار مولوي روح الامين يې مهتمم وټاکل شو .

دغه راز موږ يو لوی کتابتون هم جوړ کړی و چې تقريبا ددری لکو روپو کتابونو مو راغونډ کړي و او ملگرو به مطالعه کول دڅلورم بلاک سربيره دوهم ، دريم او اووم بلاک سره مو هم دکتابونو مرسته کوله .

دپل چرخي زندان په څلورم بلاک کې يوه اندازه بهرني غيرمسلم کسان هم بنديان وو چې په دوی کې زياتره افريقايان وو، يو تن دانگلستان اوسيدونکی هم په کې و دوی اکثره نصرانيان يا يهود وو، ددې لپاره چې موږ دخپلو ملگرو سربيره دې غيرمسلمو کسانو ته فايده رسولي وه نو دهغوی دعوت او اسلام ته رابللو ته مو خاص توجه وکړه، دوی ته مو داسلامي معلوماتو انگريزي کتابونه او ثبت شوي فيتې پيدا کړې، چې په نتيجه کې يې په دوی کې څو تنه داسلام په مقدس دين مشرف شول،

چې دا زموږ لپاره یوه بله لویه لاسته راوړنه وه، د دوی داسلام راوړلو په مناسبت مو په زندان کې مراسم جوړ کړل، چې ټولو ملګرو ورته مبارکي وویله دغه راز یې څه نقدي پیسې او نور تشویقي شیان هم ورته اهداء کړل .

نو پل چرخي سره له دې چې زندان و خو زما په شمول ډیر وملګرو تري دیوې مدرسې کار واخیست، ماخپله دنحو، اصولو،ادب او نورو دیني علومو ګڼ کتابونه په پل چرخي کې ولوستل .

د یادونې وړ ده چې د شهید ډاکټر عبدالواسع صاحب لخوا لیکل شوي د زندان خاطرت په کتابي بڼه هم چاپ شوي چې عنوان یې دی( د زندان خاطرې او تجربې) چې په کې یې د زندان خاطري او ګټورې تجربې خوندي کړي دي.

الله تعالی دې په شهید ډاکټر صاحب ورحمیږي او کورنۍ ته دې یي صبرجمیل، اجر عظیم او نعم البدل ورنصیب کړي .

رحمه الله تعالی



# د شهيد ملا عبدالرحمن آخند ژوند ته کتنه

**ليکنه: قاري سعيد**

د ۱۴۳۵ هـ ق کال د ذوالقعدة الحرام مياشتې په ۲۸ مه نيټه د فراه ولايت په بکوا ولسوالۍ کې د دښمن په يوه هوايي بريد کې د هرات ولايت لپاره داسلامي امارت عمومي جهادي مسؤل ملا عبدالرحمن آخند له خپلو شپږو تنو نورو ملګرو سره په شهادت ورسيد.

دا په همدې کال کې داسلامي امارت دريم ولايتي مسؤل/ والي و چې دجهاد په تاوده ډګر کې د شهادت لوړ مقام ته ورسيد، تردې وړاندې د کونړ ولايت والي مولوي نورقاسم حيدري او دکندهار ولايت والي ډاکټر عبدالواسع عزام هم په جهادي ډګر کې په شهادت رسيدلي و،په دې ليکنه کې مو د شهيد ملا عبدالرحمن آخند ژوند ته ځغلنده کتنه کړې هيله ده چې راسره ويې لولئ .

**شهيد ملا عبدالرحمن آخند**

الحاج شهيد ملا عبدالرحمن آخند چې په (نيکه) سره يې شهرت درلود د ملامحمد هاشم زوی د ملامحمد رسول آخند لمسی په قوم پښتون /نورزی په ۱۳۹۷هـ ق کال د فراه ولايت د بکوا ولسوالۍ په چيچه سيمه کې په يوه ديندراه او علم دوسته کورنۍ کې زيږيدلی .

د نوموړي پلار ديني عالم و، چې له خورا کشرتوب څخه يې په نوموړي ديني درسونه پيل کړل.ابتدائي ديني زده کړې يې په خپل کور کې له خپل والد صاحب څخه ترسره کړي او بيا د بکوا ولسوالۍ د غازي اباد په سيمه کې د مشهور عالم شيخ الحديث مولوي محمد حسين صاحب مدرسې ته لاړ. په دې مدرسه کې له ډيره موده درس لوستلو وروسته د هلمند ولايت ته لاړ ، د هلمند په نوزاد ولسوالۍ او دپاکستان

دبلوچستان ايالت په پنجپاى سيمه کې يي په مختلفو مدارسو کې ديني زدکړو ته دوام ورکړو. نوموړي خپله ددينې زده کړو لړۍ پنځمې درجې ته رسولې وه، چې په افغانستان کې دشراو فساد په خلاف دطالبانو اسلامي تحريک پيل شو، هغه مهال چې طالبانو کندهار ښار نيولى و، خو دهيواد نورو سيمو ته لا نه و داخل شوي ملا عبدالرحمن آخند د فراه ولايت د تکړه جهادي مشر- شهيد ملامحمدصادق اغا تر مشرۍ لاندې دطالبانو په اسلامي تحريک کې شامل شو.

## په اسلامي تحريک کې خدمتونه

د کندهار له نيولو وروسته د طالبانو داسلامي تحريک عمده جنگي جبهات د کابل او دهرات په استقامتونو جنگي خطوط و، چې هميشه په کې سختې جگړې روانې وې. ملا عبدالرحمن آخند دغه مهال څه وخت د ميدان ښار په جنگي کرښه کې خدمت ترسره کړ او وروسته دهرات په استقامت د گرشک او فراه جنگي کرښو ته لاړ، نوموړي دگرشک او هرات ترمنځ په سختوجگړو کې چې څو ځله د اسلامي تحريک مجاهدين پرمخ لاړل او بيا راپه شا شول په دې ټولو جگړوکې يي شرکت درلود، تردې چې د هرات ولايت په تاريخي فتحه کې هم گډونوال و .

د هرات له فتحې وروسته چې د بادغيس او فارياب په حدودو کې دطالبانو دفاعي کرښه وه، شهيد محمدصادق اغا همدلته د نظامي قطعې مشر- و چې ملا عبدالرحمن اخند هم ورسره د مشر انډيوال په حيث وظيفه اجراء کوله. د فارياب ، مزار اودشمال دنورو ولاياتو ترفتحې وروسته چې شهيد ملامحمدصادق اغا د فارياب دوالي په حيث وټاکل شو، د نوموړي د شهادت ترنيټې پورې ملا عبدالرحمن اخند په فارياب کې دنوموړي دنظامى ملگروله جملې د يو مشر ملگري په حيث په خدمت بوخت و چې دملامحمدصادق اغا ترشهادت وروسته څه موده د فارياب ولايت د سرپرست والي په حيث هم پاتى شوى دى په دې موده کې نوموړى د شمال په مختلفو سيمو کې جهادي کرښو ته هم تللو چې په دې لړ کې د تخار، دره صوف او غور په سيمو کې جهادي خدمت يي ديادونې وړ دى .

په افغانستان د امريکايانو تر يرغل وړاندې نوموړي د هرات ولايت په غوريان ولسوالۍ کې دولسوال په حيث دنده اجراء کوله،کله چې امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ نوموړی خپلې سيمې ته راغی او د امريکايي يرغل په خلاف يې په جهادي ترتيباتو لاس پورې کړ .

## د امريکا په خلاف جهاد

د امريکايي يرغل نه وروسته چې داسلامي امارت مجاهدينو د هيواد له ځينو سيمو عقب نشيني وکړه ملا عبدالرحمن اخند هم خپلې سيمې ته راغی.څه موده وروسته يي په جهادی ترتيباتو لاس پورې کړ،ځرنګه چې هغه مهال دجبهه يي عملياتو امکان لږ و اوترټولو مؤثره وسيله د انفجاراتو په توسط ددښمن له منځه وړل و، ملا عبدالرحمن تر هرڅه وړاندې له نوروماهرو مجاهدينو څخه د ريموټي بم د جوړولو او استعمال تخنيک زده کړ،وروسته يي په خپله سيمه کې دامريکايي يرغل په دوهم کال عملا په خارجي يرغلګرو بريدونه پيل کړل. دا په فراه ولايت کې لومړني جهادي تحرکات و د ملاعبدالرحمن اخند ورور وايي : نوموړي دامريکايي يرغل په دوهم کال په لومړي ځل دبکوا ولسوالۍ په مربوطاتو کې دکندهار – هرات په لويه لاره دخارجيانو يو کروزين موټر په ريموټي بم والوزاوو ، له دې وروسته يې په همدې سرک دداخلي عسکرو يو دوه موټر په يوه کمين کې له منځه يووړل او ورپسې يي د ايټالوي يرغلګرو يو موټر په ريموټ کنټرول بم والوزاوو، په دې چاودونو سره په فراه کې په يرغلګرو د بريدونو لړۍ پيل شو ه چې وروسته دا ولايت په يوه ګرم جهادي ډګر واوښت .

د يرغل په همدې لومړنيو کلونو کې چې داسلامي امارت د مشرتابه لخوا د ټولو ولاياتو جهادي تشکيلات جوړ شول، په فراه ولايت کې هم پنځه جهادي محاذونه تشکيل شول چې د بکوا دجهادي محاذ مسؤليت ملا عبدالرحمن ته وسپارل شو. وروسته چې دمحاذونو تشکيلات د ولسواليو په تشکيلاتو واوښتل او په هره ولسوالۍ کې دمجاهدينو ځانګړی جوړښت رامنځته شو، ملا عبدالرحمن دفراه ولايت د بکوا

ولسوالۍ جهادي مسؤل وټاکل شو چې شپږ کاله يي هم همدا دنده په خورا ښه ډول ترسره کړه .

نوموړي شپږ کاله د بکوا ولسوالۍ د مسؤل په حيث دنده ترسره کړه بيا يو کال دفراه ولايت د بالابلوک ولسوالۍ دمسؤل په حيث پاته شو،له هغه وروسته يي يوکال بيا د بکوا ولسوالۍ دمسؤل په حيث وظيفه ترسره کړه ،چې ورپسې د نيمروز ولايت د جهادي مسؤل په حيث وټاکل شو په نيمروز کې يي ۸ مياشتې جهادي خدمت ترسره کړ او بيا د هرات ولايت د جهادي مسؤل په حيث وټاکل شو،په هرات ولايت کې يي ۱۹ مياشتې وظيفه ترسره کړه ترډې چې د همدې وظيفې په مهال په شهادت ورسيد.

د يادو وظائفو سره هم مهال نوموړی ډيره موده د فراه دولايتي کميسيون دمشر په حيث هم دنده ترسره کړې دغه راز يي ترڅه وخته داسلامي امارت د مرکزي نظامی کميسيون غړيتوب هم درلود .

ملا عبدالرحمن اخند چې په فراه ولايت کې يي خورا فعاله ډلګۍ درلوده ده د ډلګۍ ځينو مجاهدينو په نيمروز او هرات کې هم د محلي مسؤلينو په حيث جهادي وظايف سرته رسول ، دنوموړي ترمشرۍ لاندې مجاهدينو په فراه کې خورا زيات عمليات ترسره کړي چې څو بيلګو ته يې په لاندې توګه اشاره کوو.

ــ ، د ۲۰۰۴ م کال په اوړي کې د بکوا ولسوالۍ د بالبالک کاريز په سيمه کې مجاهدينو ددښمن په يوه لوی کتار بريد وکړ چې په نتيجه کې يې ددښمن ۱۸ تنه عسکر ځای په ځای ووژل شول ، شپږ موټر مجاهدينو په غنيمت ونيول او خورا زياتې وسلې او مهمات هم مجاهدينو ته په لاس ورغلل.

ــ دالفتح عملياتو په کال د بکوا ولسوالۍ د اسحاقزو په سيمه کې ددښمن په کاروان په حمله کې ددښمن ۱۴ موټر له منځه لاړل او ګڼ شمير عسکر يي هم ووژل شول .

ــ دالفتح عملياتو په اوږدو کې د نوموړي تر مشرۍ لاندې مجاهدينو يوازې د فراه په بکوا ولسوالۍ کې ددښمن ۱۸۰ ټانگونه په انفجاراتو کې له منځه يووړل چې ددښمن سلگونه عسکر هم په کې ووژل شول .

ــ دالبدر عملياتو په لومړيو کې د بکوا ولسوالۍ د سياواغا په سيمه کې مجاهدينو د امريکايي سيکورټيانو په کاروان بريد وکړ چې په نتيجه کې يي ۵ موټر او ۱۵ عسکر ختم شول. دسيکورټيانو مشر ژوندی ونيول شو او دجنگ په مهال ددښمن يوه طياره هم راوغورځيده. دالبدر عملياتو په لړ کې يوه بله کارنامه د گلستان ولسوالۍ د پيتاوک په سيمه کې ددښمن داکمالاتي کتار له منځه وړل و چې په ترخ کې يي ددښمن ۲ سرف موټر او ۲۲ اکمالاتي کانتينر له منځه لاړل. په همدې کال د گلستان ولسوالۍ دچهارراه په سيمه کې ددښمن داکمالاتي کتار په موټرو چې په يوځای ولاړ و ۱۲ يوځايي انفجارات ترسره شول چې ددښمن کتار يي له منځه يووړ .

ــ د البدر عملياتو په وروستيو کې چې دژمي موسم و،په امريکايي ساتونکو په بريد کې ددښمن ۱۲ موټر او ۱۸ عسکر له منځه لاړل مجاهدينو ۱۲ ماشيندار ۴ ثقيلان او نور ډير وسائل او مهمات غنيمت کړل .

ــ دالفاروق عملياتو په لړ کې د ملاعبدالرحمن تر مشرۍ لاندې مجاهدينو د گلستان ولسوالۍ د توت او چهارراه ترمنځ سيمه کې دداخلي گوډاگيانو په يوه لوی کتار بريد وکړ چې په نتيجه کې يي ددښمن تر شپيتو زيات عسکر مړه او ټپيان شول مجاهدينو گڼ غنائم هم ونيول او ددښمن قوه يې له منځه يووړه خو له جگړې نه دستنيدو په مهال ددښمن الوتکو بمبار وکړ چې په نتيجه کې يي د دملا عبدالرحمن اخند ۲۲ تنه جهادي ملگري په يوه ځای شهيدان شول .

شهادت يې

د شهيد ملاعبدالرحمن اخند کورنۍ يوه جهادي او شهيدپاله کورنۍ ده. دامريکا ضد جهاد کې د نوموړي د دوو ورونو شهيد عبدالسلام او شهيد عبدالغفار په

شمول ددوی د کورنۍ ۱۱ کسان په شهادت رسیدلي دي. نوموړی په خپل جهادي ژوند کې دوه ځله ټپي شوی و. په دې وروستیو کې دښمن ډیر کوښښ کاوو چې نوموړی په برید کې له منځه یوسي. دهمدې لپاره یي پخوا هم څو ځله ورباندې چاپې اچولې وې، دغه راز په وروستي ځل چې نوموړی د هرات ولایت څخه په لیدنه کتنه بوخت و، لومړی ځل په شینډنډ او بیا د هرات په غوریان ولسوالۍ کې وربانـدې امریکایانو چاپه واچوله. دغوریانو په چاپه کې دری تنه مجاهدین شهیدان شول خو ده ته الله تعالی نجات ورکړ . له هغه وروسته چې کله خپلې سیمې بکوا ته راغی ، دهمدې ولسوالۍ د دوشنبې په سیمه کې ددښمن د بې پیلوته طیارې تر برید لاندې راغی چې له شپږو تنو نورو مجاهدینو سره یوځای د شهادت لوړ مقام ته ورسید. اناالله وانااليه راجعون

د نوموړي دشهادت پیښه د مجاهدینو لپاره یوه دردوونکي پیښه وه ، دنوموړي دشهادت په اړه داسلامي امارت ویاند ښاغلي قاري محمدیوسف احمدي په خپل بیان کې وویل : په ډیره خواشینۍ سره مو خبر ترلاسه کړ چې داسلامي امارت یو وتلی او نومیالی قومندان دهرات ولایت دجهادي چارو مسؤل الحاج ملا عبدالرحمن اخندچې په نیکه سره یې شهرت درلود د اشغالگرو له لوري د الوتکې په هوایي برید کې دڅو نورو ملگرو سره یوځاي په شهادت رسیدلی. شهید ملا عبدالرحمن په فراه او هرات ولایتونو کې داشغالگرو ځواکونو او دهغوی دگوډاگیانو په خلاف له څو کلونو را هیسې په وسلوال جهاد او مبارزه بوخت و. نوموړي دخپلو گړندیو جهادي فعالیتونو او عملیاتو په توسط په سیمه کې د اشغالگرو عسکرو او هغوی دمزدورانو ژوند نا ارامه کړی و،همدا لامل و چې نوموړی ډیر وخت دډارن دښمن تر څار او تعقیب لاندي و.

اتل شهید الحاج ملا عبدالرحمن چې دجهاد په لار کې یو نه ستړی کیدونکي مبارز، قهرمان مجاهد او په خپله سیمه کې یو پیژندل شوی او بانفوذه جهادي شخصیت و، دجهاد په لار کې یي ډیر ستر خدمتونه ترسره کړي او په دې لار کې یې بې ساري قرباني ورکړې.

شهيد الحاج ملا عبدالرحمن اخند د اسلامي امارت دحکومت په مهال او همدا راز داشغالگرو ځواکونو په خلاف په اوسني جهاد کې په ډيرو سختو او نامساعدو شرايطو کې د هيواد په مختلفو ولايتونوکې دپام وړ جهادي فعاليتونه او خدمتونه ترسره کړي .

د قهرمان قومندان الحاج ملا عبدالرحمن اخند شهادت که څه هم يوه دردمنه پيښه او ستره ضايعه ده ، خو دښمن دي په دې نه خوشحاله کيږي چې دنوموړي شهادت به په سيمه کې دنورو مجاهدينوپه مورال او جهادي فعاليتونو منفي اغيزه وکړي، د اسلامي امارت مجاهدين له شهادتونو سره اشنا دي، ان شاءالله ډير ژر به رامنځ ته شوې تشه دنوموړي دسنگر ملگري ډکه کړي.

لکه څنگه چې داسلامي امارت د وياند په څرگندونو کې ورته اشاره شوې، شهيد ملاعبدالرحمن واقعا د هيواد په لويديځ کې له مطرحو جهادي شخصيتونو څخه و چې په خپلو نه ستړي کيدونکو هڅو يي په همدې حوزه کې يو قوي جهادي صف رامنځته کړ. نوموړي يوه قوي جهادي ډلگۍ درلوده چې دبالفعله مجاهدينو شمير يې تر ۹۰۰ تنو زيات دی.

نوموړي نه يوازې په فراه ولايت کې دسلگونو مجاهدينو مشري په غاړه درلوده بلکې کله چې په هرات کې مسؤل وټاکل شو هلته يي هم خورا ستړې جهادې کارنامې ترسره کړې نوموړی به اکثره وخت په جهادي جبهاتو کې و او په خپله يي په جگړو کې برخه اخيسته .

د نوموړي دنږدې ملگرو په استناد شهيد ملاعبدالرحمن په خپلو جهادي چارو کې هميشه له علماء کرامو سره مشوره کوله او جهادي چارې يي په ډير تدبر او جرأت سره پر مخ وړې ، همدا لامل و چې نوموړي په خورا پيچلو شرايطو کې خورا بريالۍ مبارزه وکړه او په پای کې خپل وروستي هدف شهادت ته ورسيد. روح دې يې ښار اوياد دې يي تل وي.

## د مرحوم مولوي عبد الهادي اخندزاده ژوند او خدمتونوته کتنه

**لیکنه: بشیر همدرد**

**مرحوم مولوي عبدالهادي اخندزاده په ۱۳۳۷ هجري شمسي۔ کال کې دپروان ولایت کوه صافي ولسوالۍ اړوند په سیاه سنگ کلي کې(چې په علاقه کې دملایانو په کلي سره شهرت لري) دسیمې د مشهور روحاني او بزرگوار شخصیت ارواښاد ملا حبیب الرحمن اخندزاده په علمي او روحاني کور کې نړۍ ته سترگې غړولې وې.**

**ملا حبیب الرحمن اخندزاده چې په ټوله سیمه کې یې په مشر اخندزاده صاحب شهرت لاره، نه یواځې دکوه صافي دننه ورته خلکو د روحاني مرشد په سترگه کتل بلکې دکوه صافي نه بهر په شمالي ،کوهدامن او ده سبز کې یې هم په لوی شمېر خلک عقیدتمن او ارادتمن ول.**

**زده کړې یې**

**مولوي عبدالهادي اخندزاده صاحب په کور دننه دعلمي او دیني ماحول په وجه په ډېر کوچنیوالي کې زده کړو ته کینول شوی و، البته له کوره بهرپه علم پسې هغه مهال ووت چې د ځوانۍ مرحلې ته نژدې و. لومړي دیني کتابونه یې په کورکې له بزرگوار پلار،مشر ورور او ترونو څخه ولوستل، بیا دنورو سبقونو لپاره په شمالي کې د باغ عالم مولوي صاحب په درس کې شامل شو، هلته له څه موده سبق ویلو وروسته له مولوي نصر الله او مولوي اسد الله سره دیره شوله هغوی دواړو څخه داستفادې وروسته دکابل په شیوه کیو کې د مشهورمدرس عالم مولوی محمود(چې په صوفي مولوي صاحب مشهورو) درس گاه ته ورغی، له هغه څخه دکافیې په گډون کتابونو ویلو وروسته دنورو زده کړو لپاره پاکستان ته لاړ، هلته دخیبر پښتونخوا مردان په قیامه مدرسه کې شامل شو، بیا له هغه ځایه روستم ته لاړ چیرته یې چې دوه کاله پرلپسې د**

فنونونو کتابونه له مشهورو استادانو هريو علامه سيد قريش بابارَحِمَهُ ٱللَّهُ) او شيخ الحديث مولانا قاضي محمد امين رَحِمَهُ ٱللَّهُنه وويل، بيا د فنونودوروستيو کتابونو دتکميل لپاره دمردان طورو کې مشهور مدرس مولانا غلام محبوب صاحب ته ورغی او دهغه څخه يې دفنونو کتابونه مکمل کړل، وړه دوره يې دکوهاټ په قاضی حسام الدين مدرسه کې له مفتي محمدنعيمرَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه وکړه او دلويې دورې لپاره يې دپيښور جامعه امداد العلوم غوره کړه، چيرته يې چې د لويې دورې ځو کتابونه له نوميالي شيخ الحديث شهيد مولانا محمد حسن جان مدنيرَحِمَهُ ٱللَّهُ او له شيخ الحديث مولانا امان الله [مروت] څخه وويل او په١٣٦٦ لمريز کال کې يې له جامعه امداد العلوم څخه دفراغت سند ترلاسه کړ.

## دشوروي يرغل په وړاندې جهادې مبارزې ته يې کتنه

کله چې مولوي صاحب په سبقونو پسي له افغانستانه پاکستان ته سفر کاوه، دغه مهال افغانستان کې دکرغېړنې کمونستي کودتاه پرضد د جهاد د پيل ورځې شپې وې، جهادي فعاليتونه خال، خال ترسترگو کېدل، لږ وروسته په ټول هېواد کې جهادي فعاليتونه منظم شول، له ديني مدرسونه په لوی شمېر کې طالبان جهادته لاړل، مولوي صاحب هم جهاد ته دتلونکو طالبانو له ډلې څخه و، ددې لپاره يې لومړی په ميرانشاه کې نظامې زده کړې وکړې او بيا دجهاد په نيت دخپلې سيمې له طالبانو سره يوځای کوه صافي ته ستون شو او د جهادي امورو په منظمولو کې يې کاري رول ترسره کړ. دياونې وړده چې په کوه صافي کې دجهاد په پيلولو کې د ارواښاد مولوي صاحب سربيره،دهغه مشر وررورشهيد مولوي عبدالصبور اخنذاده بنسټيز او قائدانه رول اداء کړی دی، څوک چې په١٣٦٥ لمريز کال کې کوه صافي کې دشورويانولخواد گڼو الوتکود ناڅاپه يرغل په ترڅ کې له يوشمير مجاهدينو سره يوځای شهيد شو. دشهيد مولوي عبد الصبور اخنذاده رَحِمَهُ ٱللَّهُ له شهادت وروسته د هغه جهادي ملگرو او قومندانانو څوځله کوښښ وکړ چې مولوي عبدالهادي صاحب د شهيد مولوي صاحب عبد الصبور په شهادت سره د رامنځته شوې تشې په ډکولو قانع کړي او دهغه ځای

ناستی شي، خوداچې نوموړي ددرس او تدریس په لور زیات میلان او رجحان لاره ، لـه هغوی څخه په مننه کولو یې ور ته عذر وړاندې کـړ،او پـه جهـاد کـې دخپلـې کـورنۍ دونډې لرلو لپاره یې خپل ترټولو مشر وررور ملاعبد الغفار اخنـدزاده غـوره کـړ چـې د اسلامي انقلاب د بري تر وخته یي جهادي وظائف په ډیره ښه توګه انجام کړل.

دمولوي صاحب دوی کورنۍ چې په۱۳٦۱ لمریز کې یې له افغانستانه پاکستان ته هجرت کړی و، اول د کرمې ایجنسۍ په خواجه علي پنډغالي کې میشت شول او بیا له هغه ځایه د صوابۍ پنډ غالي ته لاړل، هلته دکا ل یونیم لـه تیرولـو وروسـته دکوهـاټ غلام بانډې صافیانو کیمپ ته لاړل چېرته چې تردي مهاله میشت دي.

**تدریس یې:**

په ۱۳٦٦ ل کـال کـې دپیښـور لـه امـداد العلـوم نـه د فراغـت وروسـته دخیـبر پښتونخوا کوهاټ کې دانصارو په یومسجد کې یـې تـدریس پیـل کـړ، چـې د شـلو پـه شاوخوا کې طالبان ورسره وو ، په بل کال د کوهاټ بلي ټنګ شمس العلوم مدرسې تـه دمدرس په حیث لاړ، هلته دیو کال تدریس وروسته دکواټ غلام بانډې دمهاجرینو په پنډ غالي کې د منبع العلوم مدرسې ته وغوښتل شو،دلته له نوموړي سره په هر کتـاب کې دروند شمېر طالبان وو، او طالبانوته یې د درس طرز اوطریقه ډېره په زړپـورې وه .مولوي مطیع الله شاکر چې دمولـوي صـاحب پخـوانی شـاګرد او دتـره ځـوی یـې دی دمولوي صاحب د تدریسي اوعلمي صلاحیتونو په اړه داسې رڼا اچوي:

زما او د شهیدمولوي صـاحب روح الله روحـاني ابتـدایي تربیـت اوپالنـه مولـوي صاحب کړې له نوموړي څخه مې ډېر کتابونه درسا ویلي دي،دمولوي صـاحب د درس طریقه ډېره عام فهمه وه، اول به یې دسبق اجمال یا لنډیز ووایه بیا بـه یـې تفصـیل او دکتاب عبارت حل کاوه، په دې توګه یې پـه سـبق کـې فـیض او برکـت هـم زیـات و، کوښښ به یې کاوچې طالبان په اسانه او روانه توګه پـوی کـړي هیڅکلـه یـې مغلـق او پیچلې تعبیرات نه کول سبق یې ډېر روان اوسلیس و پـه دې عـلاوه دهـرې روژ ې پـه میاشت کې به یې دعظیم الشان قرآن ترجمه ( دوره یې تفسیر) هم کوله ددې ترځنـګ

مولوي صاحب ښه کامیاب واعظ او مبلغ هم و،چې په خلکو یې وعظ زیات تاثیر درلود په دې وجه دخواصو ترڅنګ دعوامو په منځ کې هم منلی او مقبول شخص و.

په ورته توګه د خدای بښلي مولوي صاحب یوبل خاص شاګرد مولوي محمد علي خان زاهد چې ډېره موده دمولوي صاحب سره نیږدې پاته شوی دی او داسلامي امارت په دوره کې د کونړ دبانک رئیس هم و دمولوي صاحب د درسي خصوصیاتو په اړه وایي: مولوي صاحب ښه کامیاب مدرس و، هیڅ داسې نه احساسیده به چې هغه یوکتاب درس کاو او هغه دي وربانـدې بـوج وي نومـوړي شـاګردانوته ددینـې تربیـې ترڅنګ اخلاقي اوسیاسي تربیه هم ورکوله، طالبان یـې دوخـت او حـالاتو نزاکتونـو تـه ځیر کول پخپلـه یـې هـم ځـان د درس او تـدریس ترڅنـګ دافغانسـتان لـه حـالاتو او جریاناتو خبرساته، وخت په وخـت یـې د خپلـو ملګـرو سره نـوي معلومـات او حـالات شریکول، خو دطالبانو اخلاقي تربیې ته ډېر متوجه و

دنوموړي پـه وینـا: مولـوي صـاحب پـه درس او تـدریس دومـره حـریص و چـې دحکومتي منصب ترڅنګ یې تل ارزو دا وه چې خلکوته علمي ګټه ورسوي نو ځکه یـې د څو کتابونو تدریس همیشه جاري ساته.

## دپروان او کاپیساه دطالبانو دمشر په حیث یې رول او کردار ته کتنه:

هغه مهال چې افغانستان کې دشوروي او کمونستي رژیم په ضـد جهـاد روان و ، دپاکستان په دیني مدرسو کې کومو افغاني طالبانو سبقونه ویل، هغوی دولایتونـو پـه سطحه ددې لپاره چې پخپل منځ کې له یوبل سره وپیژني، دیـو بـل لـه غـم او درد نـه خبر اووسي،یا داچې افغاني طالبان دنویو مذهبي اندونو په لومو کې ونه نښلي ترمنځو یې نوې تفرقې او ډلې ټپلې پیدانشي داهلسنت والجماعت په نوم جلا، جلا منظمـې او اتحادیې جوړې شوې وې، دهر ولایت طالبانو ځانته یوه شـورى درلـوده، هغـې شـورى دټول ولایت اړوند طالبانو چارې بررسي کولې اودخپل ولایت دټولو طالبانو یولست به ورسره پروت و، دطالبانو کوایف به یې معلومول، بیا به یې دهر تعلیمي کال په پای کې دافغانانو په کیمپونو کې غونډې جوړولې د اړوند ولایت طالبانو به په هغو غونډو کـې

ګډون کاو، په دې تو ګه به یې دیوبل سره پیژندل او اړیکې به یې غځیدل، بېلا بېل استعدونه او فکرونه په یوځای راټولیدل دیوبل له معلوماتو او وړتیاوو به خبریدل ، مولوي صاحب د پروان او کاپیساه په سطحه داهلسنت والجماعت دمنظمې او اتحادیې بنسټ ایښودونکی و، کله چې دپروان او کاپیساه داهلسنت اتحادیه تشکیل شوه، مولوي صاحب د اتحادیې دمرستیال په صفت غوره شو او یوکال وروسته دملګرو په ټینګار او غوښتنه دعمومي مشر (صدر)په حیث تعین شو، ترهغه وخته په دغه موقف او دنده پاته وځو په کندهار کې دطالبانو داسلامي تحریک په نوم دافغاني طالبانو یو منظم جهادي او سیاسي تحریک راپورته شو، چې په دې سره دولایتونو په سطحه جوړې منظمې او اتحادیې منحل شوې او دهېواد ټول طالبان او علماء دطالبانو داسلامي تحریک په لیکو اوصفوفوکې منظم او منسجم شول مولوي صاحب هم له خپلو ټولو ملګرو سره یوځای په دغه تحریک کې ګډون وکړ، چې دژوند ترپایه له هم دغه کاروان ملګری و او په ډېر اخلاص او للهیت اوصداقت سره یې پکې بېلا بېل خدمتونه تر سره کړل

## دطالبانو داسلامي تحریک په لیکو کې ګډون او خدمتونه:

کله چې دشر او فساد پرضد دهېواد په جنوب کندهار کې دامیر المومنین ملا محمد عمر (مجاهد) په مشرۍ طالبانو شرعي پاڅون وکړ، دهېواد دنورو جیدو علماوو ترڅنګ مولوي صاحب عبد الهادي اخنذاده هم دیوتکړه جید عالم او مدرس په حیث او دپروان اوکاپیساه دعلماوو او طالبانو له منځه دیو قوي او بانفوذه سیاسي او اجتماعي شخص په توګه ددغه پاڅون څخه په کلکه ملاتړ اعلان کړ، ددې لپاره یې دخیبر پښتونخوا ایالت په جنوبي سیمو کې ستري غونډې جوړې کړې اوپکې یې ددغه پاڅون په ضرورت او اهمیت ګډونوالوته ویناوې وکړې اوبیا دپروان او کاپیساه دعلماوو او طالبانو سره یوځای یې لومړی دخوست دلارې نه لوګر او بیا دهغه ځایه کندهار ته سفر وکړ، ددغه سفر نه په بیرته راستنیدو دپروان او کاپیساه دنورو دوه سوه طالبانو سره یوځای دخوست دلارې نه چهار اسیاب او بیا د کارته سه لومړۍ

کرښې ته لاړ، هلته په لومړی کرښه کې دشهید ملا بورجان اخند او ملايار محمد اخند سره يوځای شو،چيرته چې دمسعود په چل ول او دوکه طالبان دکارته سه سيمې څخه شاتگ ته اړشول او له امله يې لوی شمېر طالبان شهيدان، ټپيان او بنديان شول دپروان او کاپيساه له ملگرو څخه هم زيات شمېر بنديان او ټپيان شول، چې ځينې ټپيان هم دښمن په لاس ورغلل ، چې وروسته هغوی ټول دهرات په عمومي تبادله کې راخلاص شول

دهغه مهال را په ديخوا مولوي صاحب او ملگري يې داسلامي امارت په ليکو کې دسترو فداکاريو او قربانيو په بدرگه په مهمو خدمتونو بوخت و چې دهغوی په شاندارو خدمتونو داسلامي امارت مشران وياړي

هم دا راز کله چې په کند هار کې دهېواد ۱۵۰۰ جيدو علماوو دطالبانو داسلامي تحريک له مشر ملامحمد عمر مجاهد سره دامير المومنين په حيث بيعت وکړ، په هغه غونډه کې مولوي صاحب دپروان ا و کاپيساه ديوشمېر جيدو علماوو سره يوځای گډون وکړ اوداميرِ المؤمنين(حفظه الله) سره يې دهېواد دزعيم په حيث بيعت وکړ.

کله چې دهېواد ختيځ ولايتونه نيول کيدل ، په فتحه اونيولو کې يې دمولوي صاحب دقاري احسان الله بريال ( دکاپيساه ولايت لپاره داسلامي امارت موجوده والي) په مشری نه ستړيي کيدونکې قربانی ورکړې او ددغو قربانيو په وجه يې دجهادي مشرانو په زړونو کې دقدر ځای پيدا کړی و، کله چې کونړ ولايت فتحه شو دشهيد ملا بورجان او حاجې ملا محمد رباني په وړانديز عاليقدر امير المؤمنين دکونړ ولايت چارې دپروان او کاپيسا طالبانوته په وسپارلې او د۱۳۷۵ ل کال د ميزان په ۴مه نيټه مولوي عبد الهادي صاحب دکونړلپاره دوالي او قاري احسان الله بريال د امنيه قومندان په توگه تعين شول. کله چې شهيد ملا بورجان اخند دکونړ دفتحې بشپړولو وروسته بيرته د ننگرهار په لور روانيدو مولوي صاحب ته يې د کونړ د ټولو ملکي او نظامي ارگانونو لپاره دمسولينو دمعرفي کولو حکم پريښود، چې دهغه دحکم سره سم مولوي صاحب دکونړ د ملکي او نظامي ارگانونو لپاره مسؤلين معرفي کړل او په په

لنډه موده کې يې دولايت درياستونو په ګډون ټولې ۱۸ ولسوالۍ فعاله کړې دبازار او ښاروالۍ چارې يې ورغولې ښوونځي، ليسې او مدارس يې پرانستل دترانسپورټ چارې يې تنظيم کړې ددولتي عوايدو راټولولو طرز العمل يې نافذ کړ ، د ځنګلونو وهلو پرضد يې ګامونه پورته کړل پاکستان ته د نا قانونه لاروڅخه د لرګيو په انتقال يې بنديز پلي کړ،په لويو لارو او درو کې امنيت قايم شو،دخلکو دسر او مال خوندي کولو په غرض شپه ورځ مجاهدينو ګزمې پيل کړې زورواکان له سيمې څخه وشړل شول اجتماعي عدالت پلي شو، ټولو سوداګروته بهرته دبولډک دلارې دچارتراشو وړلو قناعت ورکړای شو، په دې اړه هغوی ته دافغانستان او خلکو ملي مصالح ورپه ګوته کړای شول چې ټولو سوداګرو په يو اتفاق دبولډک دلارې دچارتراشو دليږد نظر تائيد کړ.

## په کونړ کې يې سياسي او جهادي برياوې:

د اسلامي امارت لپاره کونړ ولايت کنترولول اوپکې حکومت جوړول يو چيلنج و ځکه ددې ولايت اراضي ډېره خطرناکه او له غرونو او ځنګونو تشکيل شوی دی، له نيکه مرغه مولوي صاحب ته الله پاک دستونزو دحلولود اوحکومتي چارو درهبري کولو او له خلکو سره دافهام او تفهيم يوه بيمثاله اومؤثره ملکه ورکړې وه، چې دهغې په وجه يې په لنډ وخت کې دکونړ اونورستانونو [دمرکزي او شرقي] په ګډون په ۱۸ولسواليو کې داسلامي امارت واکمنې قايمه کړه او داسې چې ترپايه پاته شوه، له شک پرته چې دجنګ دلارې ديوشمېر ولسواليو نيول طالبانو ته آسان نه و. خو هغه ټولې له جنګ پرته د کامياب حکمت عملي په جوړولو دخبرو او ولس ته دقناعت ورکولو دلارې فتحه شوې او پکې داسلامي امارت واکمنې ټينګه شوه.تردې پورې چې دمرکزي نورستان دلارې ترپنجشير پورې دامارت واک وغځيد او دشرقي نورستان په خوا دبدخشان ولايت ترحدودو پورې سيمې بې له جنګه يوازې له خلکو سره دمفاهمې او خبرو دلارې ونيولې.

دافغانستان داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال داطلاعاتو او کلتور او بيا دپوهنې وزير الحاج مولوي اميرخان متقي وايي :مولوي صاحب عبدالهادي په عملي ډگر کې يو موفق اوکامياب مسئول و ددې خبري دثبوت لپاره دا دري دلايل کافي دي چې يو خو يې دوفات تروخته دپروان او کا پيسادمجاهدينو او طالبانو په منځ کې خپل محبوبيت او دمشرتابه مقام په داسي ډول وساته چي که يې رسمي دنده وه که نه وه خو دا تير شل کلونه ټولو ورته دمشر په نظر کتل.

بل دا چې پنځه کاله يې داسلامي امارت په وا کمنۍ کې دکونړ غوندي غرني،سرحدي او له نظامي اړخه نهايت مهم ولايت خورا ښه رهبري وکړه په داسي ډول چي هم يې ميشت ولسونه لکه دورو ټو غوندې سره لنډ کړل او هم يې په داسي حال کې ولايت دمخالفينو له حملو وساته چي په غرنيو سيمو کې مخا لفينو فعال حضور در لود او لوی لوی مخالف قومندانان له يوي او بلي خواورته اکماليدل خو د مولوي صاحب د مدبرانه مشرتوب له امله دښمن ونه توانيد چې په خپلو شومو اغراضو کې بريالی شي او په دې سيمه کې اسلامي امارت ته کومه جدي ستونزه ايجاد کړي ځکه مولوي صاحب عام اولس په اعتمادکې اخيستی و او اولس د اسلامي امارت په ملاتړ دفاع ته چمتو وو

دمولوي صاحب بله ځانگړ تيا داوه چي سره له دي چي داسلامي امارت مشر تابه ته يې ډير ځان نه ور ښکاره کاوه او ځان ځلونه يې نه خو ښيده خو دعاليقدر اميرالمؤمنين اعتماد دومره ور باندي زيات و چي ډيره کمه به پيښه شوي وي چې مشر ملاصاحب دي دده خبره پر ځمکه غورځولي وي چې همدا په نومړي داسلامي امارت د زعيم د بشپړ باور ښه بلل کيدای شي.

مسعود په ځلونو کوښښ وکړ چې طالبان په کونړ کې په جنگ کې مصروف وساتي، څو دبدخشان دلارې هغه ته مشکلات پيدانکړې، ددې لپاره يې په لومړي گام کې له پنجشير څخه دمشرقي پخواني شړل شوي قومندانان چې پنجشيرته يې پناه وروړي وه لکه حضرت علي ، حاجي قدير اوکشميرخان له پريمانه پيسو او اکمالاتو سره

کونړته راولیږل ځودپیسو ورکولو دلارې خلک دمجاهدینو پرضد پورته کړي دپاکستان دلارې نه حاجي زرین او حاجي روح الله په دې هڅه کې وو چې هغوي دواړه هم په کونړ کې دطالبانو پرضد جنګونه پیل کړې ملک زرین څو ځله داسمار ولسوالۍ دنیولو کوښښ وکړ خو هر ځل دشکست سره مخ کېده، په ورته توګه کشمیر خان د شیګل ولسوالۍ دنیولو هڅه وکړه، خو بریالی نشو، هم دا راز دپیچ درې له لارې ځینو قومندا نانو څو ځله کوښښونه وکړل چې ځیني ولسوالۍ ونیسي۔ خو دجزئي پرمختګ پرته هغوی کوم پراخ پرمختګ ونشو کړای، ځکه چې مولوي صاحب دقومونو سره له ډېر نږدې په تماس او ارتباط کې و، او دولس دملاتړ په بدرګه د مخالفینو په ځپلو کې برلاسی و، تردې پورې چې کله هغوی ټول په کونړ کې ناکام شول مسعود ټول لرې کړل دټولو لپاره دمشرپه توګه یې سیاف ته وظیفه ورکړه او له پنجشیرنه یې هغه نورستان اوکونړ ته راولیږه، هغه (سیاف) پخپل ټول توان هڅه وکړه، چې دمخالفینو متلاشي ځواکونه سره یوځای کړي او په کونړ کې دامارت پرضد قوي محاذ پرانیزي د اوریدو له قراره سیاف به په خبرو کې دکونړ خلکو ته ویلي: چې زما پلرونه اونیکونه دکونړ نورګل ولسوالۍ له مزار درې نه پغمان ته تللي دي، زه هم په اصل کې کونړی یم! ماسره ودریږئ او په ما ننګ وکړئ! خو هیچا یې فریاد نه اوریده او ورسره ملګري نشول. بالاخره سیاف هم ناکام او نامراد پنجشیرته ستون شو، په دې توګه دمسعود دا ارمان پوره نشو چې په کونړ کې دجنګ پراخولو له لارې امارت ته ستونزې ایجاد کړې، ددې ټولو دسیسو شنډولو او پلانونو په خنثا کولو کې مؤثر اوفعال رول دوالي په حیث دمولوي صاحب دعلمي او سیاسي بصیرت و، چې د الله تعالی په مدد یې دکونړ خلک او علماء په ځان رامات کړي وو او د اولس اعتماد یې د امارت په ګټه خپل کړی و.

مولوي محمد علي خان چې په دغه ټوله دوره کې دمولوي صاحب له باوري او راز دارو ملګرو څخه و، وایي: دمولوي صاحب دبري راز په دې کې و، چې نهایتي مهربان او زړه سواند مشر و، او ددې لپاره الله تعالی ورته عجیبه لویه حوصله ورکړي وه دشپې ترناوخته به ددې لپاره ناست و، چې کیدای شي دچا کار ترما پورې بند وي هسې۔ نه

هغه راشي او زه ويده يم بيرته به مايوس لاړشي! هم دا وجه وه چې درسمي وخت نه پس به يې هم دخلكو په عريضو احكام ليكل او هيڅ يو عارض يې په دې وجه بيرته ندی ليږلی چې اوس رسمي وخت ختم شوی دی، هم دا سبب و چې دعوامو په زړو كې ورسره زيات محبت واو هر سړي ته گران و.

هغه وايي: دمولوي صاحب مزاج دتعصب او كينې څخه هم ډېر پاک و، كونړ يو داسي ولايت و چې دنورو ولايتونو په پرتله پكې مذهبي اختلافات ډېر وو، مولوي سره ددې چې پخپل مسلک باندې ټينگ ولاړو، خو دنورو علماوو يې نهايتي احترام او قدر كاوو، دهغوی سره تعصب او كينه يې نه درلوده، دهغوی سره راشه درشه او تعلقات يې يومخ عادي ووچې په دې اړه ترپايه دهيچا لخوا كوم شكايت ندی اوريدل شوی.

هم داشان نرمه رويه يې دومره زياته مؤثره او راښكونكې وه، چې مخالفينو هم ورباندې اعتراف كاو،حتی يوځل يو مخالف قومندان چې دباجوړ نه كونړ ته دطالبانو خلاف جنگ ته راتلو او دمرورې په سرحدي ولسوالۍ كې په يو كوركې ځان پټ كړی و ، دهغه كور څښتن يې چې نژدې ملگری و ورته مشوره وركړه چې جنگ ته دتلو نه وړاندې يو ځل والي صاحب سره وگوره او بيا لاړشه،هغه ويل: څنگه به ورسره ووينم؟ كوربه ورته و ويل: ستا دهر څه ضامن زه يم راځه چې والي صاحب ته دې اوس بوځم، قومندان دهغه سړي سره نيغ دمولوي صاحب ليدو ته راغی كله چې هغه دمولوي صاحب خبرې واريدې او دهغه نرمه رويه او اخلاق يې وليدل له هم هغه ځايه دمخالفينو سره جنگ ته روان شو او ترپايه دامارت سره ملگری پاته و څو چې امريكا په افغانستان يرغل وكړ او طالبان له كونړاو نور هېواد نه وتلو ته اړشول بيا هم هغه دامارت نه خپله لاره بدله نكړه.

### دستونزو اومشكلاتو پرمهال يې د بيمثاله استقامت اوجرئت بېلگې:

يوځل مخالفينو په داسې وخت كې د كونړ د ننگلام په ولسوالۍ حمله وكړه چې داختر شپه وه، زياتره طالبان داختر رخصتيو لپاره كورونوته تللي وو، له دې وجې دطالبانو شمېر كم وو، مخالفينو ولسوالۍ ونيوله،تردې چې دولايت لورته يې پرمختگ

هم وکړ، مولوي علی خان زاهد وايي: دغه مهال دوه شپې مولوي صاحب خوب ونکړ او خپله ټوله شپه بېلابېلو پوستو ته ورته او طالبانوته بـه يـې روحيـه ورکولـه چـې ګـورئ حوصله دلاسه ورنکړئ اوپخپلو مورچلو کې بيدار اوسئ هغـه وايـي: دغـه مهـال ورسره خپل ساتونکي هم نه وو ځکه هغو يې ټول لومړۍ کرښې ته ليږلي وو، يواځي دغه مهال ز ما نه علاوه ورسره مولوي نورجلال( دکورنيوچارو وزارت معين)او اينجنير ګـل آغـا ( دمولوي نجيب الله ورور) ملګري ول چې دولايت دفاعي پوستې مو کتلي او مجاهـدين مو بيدارول چې غفلت ونکړي، په دوهمه ورځ زه ورسره تر دوه بجو تـم شـوم خـو نـور خپل صبر ځواب راکړ خوب راغی ويده شـوم، خـو هغـوی ټولـه شـپه بيـدار ول او پـه مجاهدينو ګرځيدل، په سبا ته طالبانو مخالفين دولايت له حدودو بيرته په شا وتمبول او ننګلام ولسوالۍ يې بيرته ونيوه

په ورته توګه يوځـل مخـالفينو دشـيګل ولسـوالۍ لـه اسـتقامت نـه دمجاهـدينو دفاعی پوستو په نيولو اول خط دشينکوړک سيمې ته را نژدې کړ، چې ولايت تـه لنـډه پرته ده، دغه مهال له ځينو نورو ولايتونو څخه دملاتړ لپاره يو شمېر مجاهـدين راغـلي وو، هغوی په دې شکست سره دومره ورخطاء شول چـې ټولـو ځانونـه دولايـت مرکـز( اسعد آباد) ته ورسول او مشران يې نيغ مولوي صاحب ته راغلل چې پنځې دقيقي وخت دی که ولايت خالي کوي مونږ درته پنځه دقيقې تم کيدای شو چې کوم ضروري شيان وي هغه راوخلئ مخالفين مرکزته را لنډ دي، اومونږ خامخا درومـو دلتـه جنـګ ګـران دی او ولايت دسقوط په حال کې دی بيځايه ملګري مه خرابوئ! مولوي صـاحب ورتـه وويل: که تاسو خامخا ځئ تاسو نه راګرځوم په مخ موښه شه دا خو اوس هم مخـالفين لري دې مونږ دلته دولايت دچغسراى( اسعد اباد) بازار له دروازو نـه مخـالفين بيرتـه په شاتمبولي او دولايت دپريښودو خو سوال نه پيدا کېږي اونه دومره بي همته يم، پـه دې سره هغوی ټول موټروته پورته شول او دننګرهار په لور روان شول او مولوي صاحب خپل موټرته پورته شو دخپلو ملګرو سره شينکوړک ته ورغی هلته يواځې کـونړ کـې پـه خدمت مامور طالبان پاته وو کومکي کسان تللي وو، هلته يې مخالفينوته خط واچوه او

بیا څو ورځې وروسته دشهید ملا داد الله اخند په راتلو په مخالفینو تعرض وشو او په لږ وخت کې هغوی په شاه شول او ولسوالي بیرته ونیول شوه.

مولوي علي خان وایي: کله چې دکومک په هدف راغلي کسان بیرته لاړل دې کار دشته مجاهدینو په مورال منفي تاثیر وکړ، خو شینکوړک ته دمولوي صاحب په ورتګ او هلته دخط اچولو حکم مجاهدینو ته مورال او حوصله ورکړه بیا مولوي صاحب ماته دنورو ملګرو نه جلا وویل:دوی ماته وایي ولایت تخلیه کړه، ایاولایت داسې تخلیه کړم چې زه تري ژوندی ووزم؟ زه به ترهغه ولایت مخالفینوته پرنیږدم چې څو زما مړی له دې ځایه تللی نه وي، ځکه په شریعت کې له جګړې تیښته او په شا تګ جوازنلري... خو ان شاء الله مونږ به بری ترلاسه کوو کوم لوی تشویش نشته.

داطاعت کولو جذبه یې:

مولوي صاحب چې دشریعت ښه خبیر عالم و، همیش به یې دشریعت په حکمونو خپله هم دعمل کوښښ کاو اونورو ملګروته به یې په شرعي حکمونو دعمل کلکه توصیه کوله دځان په باب به یې ویلي: زه دلته دخدمت او داعلاء کلمة الله په سپیڅلې جذبه او اراده راغلی یم، له دې پرته بله هیڅ اراده نلرم، اونه راته په خدمت کې دولایت څوکۍ کوم ستر اهمیت لري که ما امیر المومنین صاحب دو لایت څخه لرې کوي او په ځای یې راته بل ددینه وړوکی مسولیت راکوي نوزه یې په قبلولو کې تردد نلرم زکه چې ماته دولایت څوکۍ مهمه نده بلکې دامارت شرعي واکمني مهمه ده او په امارت کې خدمت مهم دی که هغه په لوړه څوکۍ وې او یا په ټیټه رتبه.

ناروغي:

مولوي عبدالهادي اخندزاده صاحب ته د عمر په ورستیو کې دشکر او وینې دفشار ناروغې پیدا شوې وه، دهغې په وجه یې روغتیایې حالت ښه نه و، خوپه ژبه یې له ناروغۍ څخه شکایت نه کا و، بیا یې څه موده پس دسترګو لید هم کمزوری شو، کرار کرار یې نوربدن هم متاثر شو له وفات کیدو وړاندې یې روغتیایي حالت ترډېره

ښه و، دسترگونظر یې هم یوځه بیرته ځای ته راغلی و، خو داچې دمرگ تاکلې نیټه نـه بدلیږي،هلته ټول تدبیرونـه ناکـام او هـیڅ دي بـالاخره د۲۰۱۴ مـیلادي کـال د لسـمې میاشتې په ۳۰ مه نیټه دپنجشنبې په ورځ دسهار داشراق لمانځه کولو وروسته یې روح والوت او دتل لپاره یې سترگې له فاني نړۍ څخه پټې شوې. داولادونو سربیـره یـې پـه سوونو شاگردان( چې زیاتره یې دیني علـماء مدرسـین اومجاهـدین دي) مجاهـدین او ملگري صدقه جاریه پریښودل په جنازه کې یې په لنډوخت کـې لـوی شـمېر عوامـو او خواصو او دامارت مسـولینو اومجاهـدینو گـډون وکړ،دجنـازې وروسـته یـې جسـد د پښتونخوا د کوهاټ غلام بانډې د مهاجرینو په هدیره کې خاوروته وسپار ل شو انـا لله وانا الیه راجعون،ان لله ما أخذ وله ماأعطی وکل شئ عنده بأجل مسـمی.الله تعـالی دي مولوي صاحب ته مغفرت نصیب کړي او دنوموړي ټولې ستړیاوې، جهادونه ، درسـونه او تکلیفونه دي قبول کړي.



## د شهيد مولوي مير احمدګل صاحب ژوند ته کتنه

**ليکنه: ملا خبيراحمد مجاهد**

شـهيد مولـوي ميراحمـدګل هاشـمي رَحِمَهُ ٱللَّهُ داسـلام، جهـاد اوغيـرتمن ټـاټوبي افغانستان، ددفاع هغه فولادي سپراوتيره توره وه، چې زه هيڅ داسې عبارات اوټکي پـه ذهن کې نه لرم اونه يې تمثيلولی شم، ترڅو دهغـه دپرافتخـاره ژونـد، سرشـاره دينـي اوجهادي خدمتونو اوځلانده قربانيوکماحقه حق پرې اداکړل شي .

ځکه دشهيد مولوي ميراحمدګل هاشمي ژوند،جهادونه، طـالبي ، پوهـه اوتـدبير اوبالاخره شهادت، که هره برخه يـې راوسـپړل شي ، دوفـا، ديانـت ، اطاعـت ، متانـت اواسلامي تشخص منارونه پکې دنګ اوله ورايه ځليږي .

زه پورته دعوه له دې امله په جرأت کـوم، چـې ماتـه دشـهيد ميرصـاحب دژونـد قيمتي شيبي اوکارنامي يوه يوه مخې ته ولاړې اوترډېره ځايـه تـرې اګـاهي لـرم، ځکـه څوکاله سره يوځای په طالبي اوکتابونوکې شريک اوهمدوره وو،بيـا الله تعـالی هغـه تـه دخاص جهادي اوسياسي فراست له مخې چې پرې لـورولی يـې و، هغـه مـو دجهـاد او مبارزې مشرهم پاتې شو .

دغيرتمن ميرصاحب ، سياسي اوجهادي ژوند ټول له غيرت اوميړاني ، اطاعت او زغم څخـه ډک و. دافغانسـتان اسـلامي امـارت څخـه وړانـدې چـې کلـه دافغانسـتان دهرولايت لپاره داهل سنت والجماعت اتحاديې تاسيس شوي وې، ميرصـاحب دلـوګر ولايت پـه منظمـه کـې دخـدمت ممتـاز حيثيـت درلـود، داسـلامي امـارت د طلـوع، حاکميت اودامريکايانو داشغال په اوږدو کې بيـا دشـهادت تـر نيټـې پـورې، مجاهـد ميرصاحب په داسې حال کې چې بيلابيلی دندې اومهـم مسـؤليتونه يـې تـرسره کـړې

اوياورله غاړي وو اوهم يې په دغه مقدسه لارکې دتکاليفو، زخمونه ، زندانونو ډول ډول مرحلې تيـرې کـړي وي ، متعـال رب جَلَّجَلَالُهُ ، پـه ټولـو دورو اوپړاوونـو کـې سرفـرازه راويوست.

## ميراحمدگل هاشمي څوک وو :

شهيد مولوي ميراحمدگل هاشمي، دمرحوم ميرعبدالله ځوی، په ختهٔ ( سيد ) پـه د(۱۳۵۲ ) لمريز کال کې دلوگر ولايت دمرکز اړوند( دپادخواب شـانه ) کـلي کـې دې فاني دنياته سترگې وغړولې. والد محترم او نيکونه يې روحاني هستۍ تيرې شوي ،چې په عام ولس اوخواصوکې يې ځانگړی ځای اومقام درلود.

## درس اوطالبي :

دطالبی دوراوبيافراغت يې ټول له خاکساری،ادب اوالفت څخه ډک و، په داسې حال کې چې په خپل وخت کې له ممتازو اوذهينوطالبانو څخه گڼل کيده اوچـې کـوم کتابونه به يې له استادانو ويل، الله تعالی دهغودبالفعله تدريس قوه اوپوهه هم ورکـړې وه.

شهيد ميرصاحب په خپل قلم ليکل شوو سوانحواوخاطروکې راوړي، چې ړومبنی زدکړې يې له خپل مشر ورور څخه ترلاسـه کـړي، منځنـی زدکـړي يـې دپاکسـتان پـه بيلابيلو ديني مدارسو کې حاصلې کړي اودفضيلت اوفراغت دستار يـې د پښـتونخوا د اکوړه ختک په حقانيه دارالعلوم کې په سرکړ .

دالله ددين دغه نوميالی مجاهد، چې له يوې بزرگوارې روحـاني کـورنۍ سره يـې تعلق درلود، خو دخپل ټول عمر په اوږدو کې شايد چا نه وي ترې اوريـدلي اويـايې نـه وي ترينه محسوس کړي ، چـې (زه سـيد، هاشـمي اودلـوړې علمـي اوروحـاني مرتبـې څښتن يم ، يعني زما درناوی اواحترام دې وشي)

دهراستاد لاس به يې ښکلاوه، سره لدې چې استادانوبه ورته ويل چې گوره ، ته سيد يې زمونږ لاس مه ښکلوه. خو دميراحمد هاشمي خپل شرافت اوکمال و چې دژوندترپايه الله تعالی په همدغه ادب او عقيدت سيرابه وساته اودوام يې ورکړ.

دشهيد ميرصاحب يوتن مشفق استاد شيخ القران والحديث مولانامحمد اسماعيل رحماني وايي: مولوي ميراحمدگل هاشمي چې گڼ کتابونه يې له هغه لوستي،په دې سربيره چې دښه ذهانت څښتن و، کلکه مطالعه به يې کوله، وخت يې هيڅکله نه ضايع کاوو ، له کتاب، مدرسي اواستادانوسره به يې انتهايي مينه اومحبت درلود او دهغوی احترام به يې کاوو.

کله ناکله به ملگرو ورته ويل چې ميرصاحب ته خو( سيد ) هم يې يوتعويذ راته وکړه اويامو سر دم کړه ، هغه به تبسم وکړ چې هرسه مې زده اوپخې اجازي لرم اودالله تعالی په فضل اثر هم کوي، ولې په دې ميدان کې ډير خلک شته، هغوی بس دي ، ځکه داکارلويه جانداري غواړي اوتقاضاوي ورسره زياتيږي ، مثلا له خلکو به توقع کوي چې ستااحترام دي وکړي اولاسونه دې چپ کړي اوماته لدغه کاره سخته حيا راځي !! .

**دميرصاحب جهادي اوسياسي اړخ :**

مرحوم ميرصاحب دطالبۍ په مهال چې په درس ويلوسربيره يې له جهاد اوعملي مبارزي سره خاصه علاقه درلوده، ددرسونو دکلنيو رخصتيودرى مياشتې به يې له نورو ملگروسره دروسانواودهغوی دگوډاگيانوپه خلاف په جهادکې تيرولي، داهل سنت والجماعت په ولايتي اتحاديه کې يې مهم غړيتوب درلود، دنوموړي منظمې له لارې به دمسلمانانوترمنځ داصلاح، وحدت اودمنکراتو دمخنيوي لپاره چټکي هلې ځلې کولې.

کله چې په ۱۹۹۴ م کال کې دافغانستان دنجات په هيله اوپه هيوادکې ديوه اسلامي نظام دنفاذ په خاطر دعاليقدراميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد ترمشرۍ

لاندې دطالبانواسلامي تحريک پيل شو، جناب ميرصاحب ديوه مخلص سپاهي اوغـړي په توګه د جهاد ډګر ته راودانګل .

دشـهيد ميرصـاحب دسـنګر يـو نيـږدې ملګـرى، مولـوي نذيراحمـد اخنـدزاده، دطالبـانو دتحريـک دپيـل شـيبي اودميرصـاحب اخـلاص داسـې پـه ګوتـه کـوي : غالباًدپنجشنبې ورځ دتحريک دطلوع تازه شپې ورځې وي، مازديګرمهـال ميرصـاحب زموږمدرسي ته راغى دغه وخت موږد پيښور ورسـک روډشـيردادګړى پـه دارالعلـوم ضياالاسلام کى ديره وو.

دمدرسى انګړته له ننوتوسره سم يې ماتـه وويـل دمدرسـې ټـول مشرـان طالبـان جومات ته راغونډکړه، ډيرمهم اوپـه زړه پـورې خبرمـې راوړي پخپلـه يـې پـه اوداسـه شروع وکړه کله چې طالبان جومات ته راغونډشول هغوى ته دميرصـاحب دخـبرومهم ټکى درى ؤ

اول : دميډياتبصرواودخبريالانوپه راپورنوپسي سرمه ګرځوى نننى ميډيا دغـرب دلوډ سپکرحيثيت لري، زماخبره واورى په يقين درته ويلاى سم چې پـه کنـدهار کـې دطالبانو کوم حرکت پيل شوى،داخلک په ريښتياواقعي طالبـان دي، مـوږيې پـه هکلـه مکمـل معلومـات وکـړل داددينـي مدرسوشـاګردان دي، هيـواد لـه تجزيـې ژغـوري ،دافغانستان حال ډيرخراب دى خپل منځي جګړو افغانستان نـور لولپـه کـړ، اسلامي شرائع اواحکام د توهين لانـدې دي دخلکوسراومـال پـه خطرکـى دى، نولازمـه ده چـه څومره ژروي ملاوې وتړى جهادته ولاړسئ.

دوهم : دهرولايت طالبان دې د ځان لپاره يونظامي مسؤل وټاکي اوسرله سبادې ددغه مسؤل ترمشرى لاندي افغانستان ته حرکت وکړى.

دريم: له کوموملګروسره چې دکرايې پيسې نه وي هغوى دې يوځه معطلي وکړي له يوشميرخواخوږومسلمانانوځخه دى دجهادپه نوم چنده وکړي بيادې ولاړسي.

داسلام اوجهاد دلارې دغه اتل،دهيواد په بيلابيلو جبهواوړومبيو جهادي کرښو کې دخپلولسګونو فداکارو ملګروسره مخامخ دمعرکې ميدان ته دانګل اوپه اکثروړومبۍ مهمو کرښوکې چې دښمن به ورته ډير تدابير نيولی وو، ميرصاحب به يې په ساتنه او په دښمن په فاتحانه بريدونو کې کليدي رول لوباوو .

دبيلګې په توګه دکابل دفتحې تاريخي جګړه يادوو چې دشهيد ملابورجان رح ترمشرۍ لاندې يې دپکتيا دځينوسيمو له تصفيي څخه پيل، دمشرقي ترفتحې اوبيادکابل ترڅنډو پورې وغځيده، په دغو ټولوفتوحاتوکې ميرصاحب لويي ستړياوي ګاللې اودميړانې حيرانونکي داستانونه لري، تردې چې دملابورجان دشهادت په ورځ، ميرصاحب هم په مخامخ توده جګړه کې کلک زخمي شو.

دغه ډول ميرصاحب دتخاردبنګي په ړومبۍ کرښه کې، دلغمان په دولت شاه، دلوګر په پل قندهاري،دکاپيسا په تګاب، نجراب اواله ساى ولسواليو کې، دشمالي په ګلدره، شکردره، چاريکارو، پل متک اودبګرام دوه لارې په ړومبيو جګړييزو کرښوکې ،دغه راز د باميانوپه حاجي ګګ اودننګرهار اوکونړ په بيلابيلو برخوکې داسلامي امارت ديوزړور جهادي مشر په توګه حاضر و او جهادي حماسې يې د تاريخ يادګار کړې.

## د امريکايي يرغل په مهال

شهيدمولوي ميراحمدګل هاشمي، په خپله يوه مرکه کې دصليبي يرغل په وړاندې دخپل جهاد، مبارزې پيل اوڅرنګوالي په دې الفاظو روښانوي : کله چې اسلامي امارت په کال ۱۳۸۰ لمريزکې دصليبي يرغل له امله له ښارونو څخه دهيواد لرې پرتو اوقبايلي سيموته عقب نشيني وکړه، نوملګري سره تيت اوپراګنده شول، ترهغو چې ملګري بيرته سره منظم کيدل اورابطه ټينګيده،نو يو څو مياشتې يې واخيستې، له لنډې وقفې ورسته موپه عملي جهاد پيل وکړ اودلوګر ولايت په ټولوساحو کې سره لدې چې حالات زيات پيچلې او حساس وو خو دملګرو همت اودعام ولس اخلاص وو په يرغلګرو خال خال بريدونه پيل شول.

مجاهدينوپه لوګر کې په داسې شرایطو کې په مکار نړیوال دښمن بریدونه پیل کړل، چې دهغوی شیطاني میډیاپه مسلسل ډول داتبلیغات کول چې په امریکایي اوخارجي وسایطو اوټانګونو یو شی هم کار نکوي، بلکې خنثی کوي یي. همدارنګه داتبلیغات هم په درز روان وو چې څوک امریکایي اډو ته ورنیږدي شي اودبرید هڅه وکړي، هغوی یې په څو کلومتري کې ویني اوهم له هواځخه B ۵۲ امریکایي الوتکي دځمکي په سر یو یادوه اینچه څیز تشخیصولی او ترهدف لاندې نیولی شي،خو باور وکړي چې مونږ ته دغه غلیمانه تبلیغات یو یو دروغ ثابت شول .

د لوګر ولایت یو تن پیژندل شوی مجاهد چې اوس د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د غزني ولایت جهادي مسؤل دی مولوي محمد قاسم صمیم وایي:په کال ۱۳۸۰ هـ ش کې چې د صلیبیانو د یرغل شپږ میاشتې وتلې وې،میرصاحب په لوګر کې زموږ کور ته راغی چې د څرخ ولسوالۍ احمدي صاحب هم ورسره و،میرصاحب راته وویل چې باید د صلیبي یرغلګرو په خلاف جهاد پیل کړو،ما ورته وویل چې لږ انتظار به وکړو تر څو وضعیت روښانه شي. خو میرصاحب وویل چې انتظار کول ګناه ده،جهاد فرض عین دی او باید د خپل وس مطابق جهادي ترتیب جوړ کړو.هماغه و چې د احمدي صاحب او د څرخ ولسوالۍ د شهید مولوي محمد صاحب په همکارۍ مو یو میل راکټ او دوه کلاشینکوف پیدا کړل،په لومړي ځل مو د څرخ ولسوالۍ په عمومي سرک د شپې په یوه بجه ددښمن ګزمې ته کمین ونیو،کله چې د دښمن د ګزمې موټر راغلل،میرصاحب د تکبیر له غږ سره د راکټ فیر ورباندې وکړ چې د یرغلګرو و جیپ موټر مکمل تخریب شو. له دې وروسته مو په برکي برک او د مرکز پل عالم په مربوطاتو کې هم د انفجاراتو او هاوان بریدونو عملیات ترسره کړل چې په دې توګه دمیرصاحب په هڅو په لوګر ولایت کې جهادي بهیر راژوندی شو .

د جهاد دپیل د لومړنیو ځینو عملیاتو په اړه میرصاحب په خپلې یوې مرکې کې ویلي : د۱۳۸۱کال دثور په میاشت کې مو دلوګر دتنګي واغجان په سیمه کې په ړومبي ځل دخارجیانو په کتار یوه کارنده بمي چاودنه ترسره کړه چې څو عرادي موټرېې له

منځه ولاړل اوګڼ اشغالګر پکې مړه اوټپیان شول. هغه بم مجاهدینوپه خپله جوړ اوریموټ یې ما د( کارتلس ) ټلیفون نه برابرکړ . ماهلته ملګرو ته وویل چې وموليدل دامریکا شاخ لرونکي درواغ، څنګه دطالب بم اوریموټ پرې خوله خبنه کړه اودهغوی ټول تدابیر یې بې معنا وګرځول. دغه راز یوه شپه زه سره له څوتنو ملګرو د لوګر دپادخواب شانه اوآبچکان په دښته کې دامریکایانوقوي کمپاین ته نیږدي دتوغندي توغولو لپاره ورغلو. دشپې یوه بجه وه، مونږ په توغندي لګیاوو چې امریکایي څرخکه زمونږ په سر تیره شوه په کمپاین یې دوري وکړي . ماته شهیدخان محمد اوشهید طالب وویل چې میرصاحب څرخکي ولیدلواوبیرته راباندي راګرځي. ماورته وویل چې څرخکه په کمپاین ګرځي اوخپله ګزمه کوي ورخطاکیږئ مه ، هماغسي وشول څرخکي څو دوري په کمپاین وکړي اوبیا دګردیزپه طرف ولاړه، بیا موځوتوغندي په کمپاین ور وتوغول اودروند زیان یې ورواړاوه .

میرصاحب و یلي: په همغه ساعت کې مې ملګرو ته وویل، چې دالله تعالی په فضل سره دامریکایانو بل دروغ هم راته ثابت شو اووموولیدل چې دکمپاین په څو سوه متري کې یې هم مونږ تشخیص نشو کړ لای.

میرصاحب لیکلي: بیا مونږ اومجاهدین ټول له یوې نه بلې ورځې ته ډاډه کیدلو اومورال مو اوچتیده، ترڅو په هرځای کې پریکنده عملیات او ګوزارونو په دښمن شروع شول .

**مسؤلیتونه :**

په دې سربیره چې شهید میرصاحب دلوګر دطالبانو اومجاهدینو یونومیالی مشر اوسوونه سربکف مجاهدین یی لرل، دامارت په لیکو کې یې ددې پروا نه ساتله چې لوړ ه څوکۍ ورته ورکړل شوي، که ټیټه. داطاعت اوخدمت جذبه یې په رګونو کې همیشه په غورځنګووه، کله چې دطالبانو اسلامي تحریک لویی پکتیا ته ورسید، دسیدکرم ولسوالی چې یوه ناامنه سیمه وه اوان دپکتیا مرکز ګردیز ته به ترې امنیتي ګواښونه متوجه کیدل، نومیرصاحب سره له ملګرو هلته ولیږل شو اودمشرانو له لوري

په دې نیت چې میرصاحب ګڼ اووفاداره ملګري لري اوخپله هغه نظامي تجربه اوزړورتیا لري نو دسیدکرم ولسوالی دامنیه قومندان په توګه وټاکل شو. یوه ملګري ترینه پوښتنه وکړه چې میرصاحب په لسګونو تکړه مجاهدین اوملګري لري اولوړ نوم اوحیثیت دې دی، ته ایله دسیدکرم ولسوالی امنیه قومنداني قبلوي، باید مشرانودرته دپکتیا ولایت درکړي وای. میرصاحب ورته په خندا کې وویل چې مشرانو به لازمه بللي وي اوهمدومره استعداداو وس به زمونږ ورته ښکاره شوي وي، بله خبره داچې تحریک زمونږ خپل کور دی او داټول منصبونه که لوي دي او که واړه ټول زمونږ دي!! په همدې ډول داسلامي امارت دواکمني په مهال چې اتل شهید مولوی خوشحال ملنګ دکاپیساوالي اوشهیدمولوي محمدشریف سعیددولایت مرستیال و، میرصاحب په نظامي دندې سربیره دولایت مستوفیت دنده هم په مخ وړله ،داراز دغزني دفرقي معاونیت اودننګرهار منتظره قطعي کې دخو سوو ملګرو په مشرۍ سربیره دچپرهارولسوال په توګه هم په خورا صداقت خدمتونونه اوجهادونه ترسره کړي .

له صلیبی یرغل ورسته مرحوم میرصاحب، دپنځو کلونو لپاره دلوګر دوالي په توګه دنده اوجهادي مسؤلیت لاره اوپه ډېره ځیرکتیا او زړورتیا یې په دغه موده کې هلته دجهاد رهبري ترسره کړه . دهغه ترڅنګ یې دنظامي عمومي کمیسون غړیتوب هم درلود. یوڅه موده دموسساتواو شرکتونو د چارو دعمومي کمیسون مشرهم پاتي شو . له هغه وروسته یې دوه ځله دننګرهار ولایت دوالي په توګه یې په خورا متانت او اخلاص سره دنده ترسره کړه. د ننګرهار د والي په حیث د لومړي ځل وظیفې په مهال میرصاحب ونیول شو او څو کاله یې سخت زندان تیر کړ له راخلاصیدو وروسته ددوهم ځل لپاره دننګرهار والي شو چې دشهادت مرتبه هم په داسې حال کې چې دننګرهار والي و ورته ورسیده.

## د میرصاحب د میړانې په زړه پورې واقعه

مولوي محمد قاسم صاحب چې د میرصاحب د طالبۍ او د جهاددوخت نږدې ملګری پاته شوی دی وایي،چې د طالب العلمۍ په وخت کې ما له میرصاحب سره

يوځای د پيښور په بوره سيمه کې په ضياء المـدارس مدرسـه کې لـه شـيخ الحـديث محمدنعيم اخندزاده صاحب سره درسونه ويل،د مدرسې له څنګ سره يو هوار ميـدان و، په دې سيمه کې دننګرهارولايت يو ملک يا قومي مشر هم اوسـيده يـوه شـپه يـې د زوی واده و او د سرود محفل ته يـې سـازنده او رقاصې راوسـتې وې، طالبـانو د شـپې کتابونه کتل خو د ساز اواز دومره جګ و چې موږ ترينه کتاب نه شوای لوستلای .

په دې وخت ميرصاحب راغی ما او نورو طالبـانو تـه يـې وويـل چـې دا بـه ډيـره کمزوري وي چې زموږ په څنګ کې دلته د ساز او ناروا اعمالو مجلس جوړ وي او مـوږ ورته هيڅ نه وايو ، راځئ چې په دې محفـل بريـد وکـړو او دغـه بـدکاره خلـک لـه دې سيمې وشړو .

ماورته وويل چې دا به څنګه امکان ولري ځکه دې خلکو د خپـل سرود د مجلـس امنيت نيولی او موږ تش لاس يو، ميرصاحب وويل چـې دمدرسـې پـه انګـړ کـې پخـې خښتې پرتې دي دا به راسره واخلو او حمله به پرې وکړو .

وروسته ميرصاحب ګڼ شمير طالبان رايوځای کړل ،د حملې ترتيب يي جوړ کـړ او دشپې په يوه بجه يي د ساز په هغه محفل حمله وکړه چې امنيت يي مسلحو کسـانو ساتلی و،دالله تعالی په نصرت ميرصاحب په خپل مخلصانه کار کې کامياب شو او هغه د ناروا اعمالو مجلس يي تارومار او عاملين يي له سيمې تيښتې ته مجبور کړ ل چـې د دنوموړي د ميړانې او جرآتمندانه کردار يوه جالبه خاطره وه .

## دميرصاحب زغم اواستقامت :

ميرصاحب يواځې په عادي حالاتوکې دلوړې حوصلې ، تدبير اوزغم کـمال اولـوړ نوم نه درلود، بلکې له هرې سختۍ اومشکل حالت سره به هم چې مـخ شـو، الله تعـالی يې حوصله، صبر اواستقامت پرځای ساته اوپه دريځ اوموقف کـې بـه يـې تزلـزل اوبـې ځايه تغير نه محسوسيده، هميشه به يي ملګـرو تـه دلـوړ مـورال خـبري کـولې ، دډار اووهم کيسي يې هيڅکله په خوله نه راتلې .

دامریکایانودیرغل ړومبی شپي ورځې وي ، یعني تقریبادری که څلور میاشتي به تیرې شوي وي ، اکثره ملګري سره نادرکه اویوپه بل خبرنه وو، دغلیم تبلیغات هم اوج ته رسیدلي وو ، زه ( قلموال ) هم په کور کې غلی اوسیدم اوډېر نه ښکاره کیدلم اوباور وکړی یو ډول ذهني تکلیف راته لویدلی و چې دابه څه کیږي. یومازدیګر یوتن مجاهد زمونږ کورته راغی چې میرصاحب راغلی اوماښام دلته راځي، مونږ ددې انتظار کاوه چې میرصاحب به په کومه لار راځي داسې نه چې څوک يې و ويني. ماښام چې کله تیاره شوه میرصاحب زمونږ دکور مخامخ دغونډۍ په سر راواوښت، اوپیاده راروان وو، په لیدویې که له یوې خوا له خوشالۍ نه په جامو کې نه ځایدم، خو له بلې خوا سخت تشویش راسره وو، چې تعقیب شوی نه وي،ځکه امریکایي چورلکې هم مسلسلې ګرځیدي. ماورته وویل دغونډۍ شاته خو په یوکلومتري کې دامریکایانو کمپاین پروت دی، څنګه راتیرشوې؟ په خنداشو چې همداسې په څنګ يې راغلو، مطلب مو داو چې لږ يې اندازه هم راته معلومه شي ، ترڅو دشپې له پلوه پرې کله ناکله توغندي وتوغوو. بیا میرصاحب دسقوط دستومانه شپو ورځولوی داستان بیان کړ، ورسره يې دمشرانو ځینو ملګرو دارتباط ذکروکړ، همدغه ډول يې دعملي جهاد عزم ښکاره کړ اودخپل راتګ موخه يې همدغه وبلله، بیا ترینه ما څو پوښتني وکړې چې میرصاحب څنګه ممکنه ده چې په دغسي حالاتوکې چې څوک هغه دچا خبره ، (پر ) نشي۔ وهلی وطن ټول امریکایانو او دهغوی جاسوسانو نیولی،دامریکایانو امکانات وګوره اوتش لاسي مجاهدین!!!؟

پیاوړي اوجوهرشناس میرصاحب زمادمزاج برابردډاډ داسې یوڅو کیسي۔ راته وکړې چې زما په رګونو کې نوې وینه پیداکړه اوزما ذهن يې دیته اماده کړ چې بیرته په عملي مبارزه پیل وکړو، دمیرصاحب دهغه مجلس خلاصه ټکي داوو ( زمونږ اوستاسي داسې یوه داعیه ده، چې ملت يې راسره تسلیموي، ولس اوامت ته مودغیرت امتحان ورکړ، صرف یو وهم او رعب ددښمن پروت دی اوهغه په دې لیري کیږي چې

مجاهدین یوځو عملیات ترسره کړي اودامریکایانو پلیدي ویني تویی شي، بیا الله تعالی مهربان دی ، کارونه سمیږي )

زما په فکر له همدې شپي وروسته، میرصاحب سره له نورو ملګرو په لوګر کې دامریکایانو په لوی کمپاین ( خدر ) باندي بریدونه پیل کړل هره شپه به یې پرې دتوغندیووارونه کول ،همدې پیل دمجاهدینو اوعام مخلص ولس په ذهن کې داخبره اوروحیه واچوله ، چې دامریکایانو مقابله کیدلای شي .

داچې میرصاحب دوه ځله زنداني شوی وو، یوځل په خوست کي دامریکایانو په لاس ، بل ځل په پاکستان کې ، په پاکستان کې یې چې نیږدي دوه کاله دزندان سخت تکلیفونه تیرکړل. دمیرصاحب د زندان یوملګري ،( موسی فرهاد ) وایی ( میرصاب هلته ډېر ځوریدلی وو کله چې اول ځل نیول شوی وو بیا یی ډېر سخت ځای ته اچولی وو ، ده په هغه ځای کې هم له کړاوه ډکه څه موده تیره کړی وه ، چې وزن یی تقریباً له شاوخوا ۱۰۰ کیلو څخه ٦۰ کیلوته را ټیټ شوی و، بیا یی کله چې له هغه سخته ځایه موږ ته راووست، د وجود لخوا ډېر سخت ناتوانه سوی و، کومو ملګرو چې هغه پخوا لیدلی و او اوس یی ولیدی هیڅ یی نه پیژانده او تصور یی نه کاوو چې دا هغه میرصاب دی، خو په خبرو ، ټوکو او حوصله کې همغه سړی و، هیڅ ډول تکلیف یې نه محسوساوه . هر یوه ته به یی ډېره تسلی ورکوله ، چې کله به دزندان یو مشر۔ اویابل افسرراغی ، نو ده به هغوته ډېرسپین حقایق ویل ، خو بی نزاکتي او یا په بد اخلاقه لهجه خبرو کولو نه به یې هم خپله ځان ساته او هم به یی ملګرو ته ویل چې داسې حرکت به نه کوو ، چې دوی ته موږ سپک خلک ښکاره شو او یا وارخطا ورته ښکاره شو، دوی ته به خبره په نزاکت او درنه لهجه کوو او څرګند حقایق به ورته وایو ، ترڅو چې دوی بی نزاکتي کړي نه وي.

دفرهاد په وینا، خلاصه داچې شهید میرصاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ معقول ،هوښیار او ښه تقوا داره سړی و . عبادت به یی ډېر زیات کاوه . په ډېر لږ وخت کې یی تر شل، پنځه

ويشت پارو پورې قرانکريم چې له زندان څخه ووت حفظ کړی و، الله تعالی دي ټول تکليفونه او قرباني ورته قبولي وګرځوي .

**شهادت :**

داسلام دلارې دلوی مجاهد اوداسلامي امارت دنوميالی مشر، شهيد مولوي ميراحمدګل هاشمي جهادي کارنامواوراتلونکو اتلوليزو پلانونو چې داسلام اوافغانستان ددښمنانو په سترګوکې اغزي جوړ کړي وو اوتحمل يې نشو کولای ،دهغوی په کرغيړنو لاسونود ۱۴۳٦ هجري قمري کال دشعبان المعظم مياشتي په ۲۴ نيټه دجمعي په مبارکه ورځ دهجرت په ديارکې په يوه بزدلانه حمله کې دشهادت لوړې اوسترې درجې ته ورسيد. انالله وانااليه راجعون

دشهيد ميرصاحب جنازه په خپل ابايي ټاټوبي لوګر کې په داسې حال کې چې په زرګونو مسلمانانوپکې په ډېراخلاص اوعقيدت برخه اخيستي وه ادا اوبيا دپادخواب شانه دکلي دجامع جومات ( مزار ) په انګړ کې دنومورې سيمي دلوي ولی الله (ميرسيدمحمد ولي ) رحمه الله خواته دفن کړل شو.

سپيڅلي اروا دې ښاده ، جهادي کارنامي دي ځلانده اودلاري مشعلونه وي ، امين.



# د مرحوم مولوي سید محمد حقاني ژوند ته کتنه

لیکنه: قاري سعید

د ۱۴۳۷ هجري قمري کال د دریمې میاشتې په ۲۲ نیټه چې د ۲۰۱٦ میلادي کال د جنورۍ له دوهمې سره برابره وه د اسلامي امارت یو وتلی او منلی شخص مولوي سید محمد حقاني د اجل داعي ته لبیک ووایه. مولوي سید محمد حقاني د حاجي ملا لعل محمد اخند زوی په قوم پښتون /اڅکزی په ۱۹۷۲ میلادي کال د کندهار ولایت د ډنډ ولسوالۍ مربوط ښار ته نږدې سیمه محله جات کې د اڅکزو په کلاچه کې په یوه متدین او علمي خاندان کې دنیا ته سترګې وغړولې.

نوموړی چې د خپل عالم پلار مشر زوی و له کوچنیوالي یې په دیني زده کړو پیل وکړ. په کور کې له ابتدایي تعلیماتو وروسته یې په ډېر کشر عمر د سیمې له یوه تکړه عالم مولوي لال محمد اخند څخه چې د مور لخوا دده نیکه هم کیده زده کړه پیل کړه،او لومړني کتابو نه یي ولوستل.

د کمونیستانو له انقلاب وروسته نوموړي په علم پسې له سفر وړاندې په کندهار ښار کې په بیلابیلو مساجدو کې له علماء کرامو څخه دیني زده کړې وکړې لکه د کندهار ښار د لرګو د ګنج په سیمه کې احمدیه مدرسه،د شرکت میوې په سیمه کې حمیدالله جان اخندازده، ثاني مولوي عبید الله جان صاحب او مولوي عبدالعلي صاحب څخه یي څه موده دیني زده کړې حاصلې کړې او بیا دعلم په تلاش له هیواده ووت او دپاکستان په ستر ښار کراچي کې یي د ددیني علومو تحصیل پیل کړ.

## له علم سره کمساري مینه

د حقاني صاحب د خپلې ژبې اقرار دی چې د تعلم او طالبۍ په مهال مې له کتاب او سبق پرته په بل هیڅ شي ځان نه دی مصروف کړی. د نوموړي نږدې قریبان

او د طالبۍ ملګري هم همدا خبره کـوي چـې نومـوړی د تعلـم پـه مهـال يـو جـدي او خواريکښ طالب و چې حتی د مازديګر او ماښام تر منځ يي هم ډېر ځله مطالعه کوله.

حقاني صاحب په کراچۍ کې له څه مهال درس ويلو وروسته د بلوچستان کويټې ښار ته لاړ اود شالدرې په مشهوره مدرسه مظهرالعلوم کې يي داخله واخيسته پـه دې مدرسه کې له دوه کاله تعلم وروسته يي د کويټې په يوه بله مشهوره مدرسه الجامعـة الاسلامية الاشرفية کې زده کړې پيل کړې چې د فراغت تر مهاله يـي ۷ کالـه پرلپسـې په دې مدرسه کې زده کړو ته دوام ورکړ.

د مرحوم حقاني صاحب ماما ملا محمد حسين آخند وايي چې حقانی صاحب لـه سبق سره نادره مينه درلوده، کور يي په کندهار کې وه چې کويټې تـه نـږدې دی، خـو ده په علم پسې له کال زياته مسافري کوله . ۱۳ مياشتې بعد به کور ته ستنېده، او چې کله به کورته لاړ نو هلته يي هم ټوله مشغولا له تعلم او تعليم سره وه.

د ۱۹۹۴ ميلادي کال په اکتوبر کې هغـه مهـال چـې د حقـاني صـاحب پـه اصـلي ټاټوبي کندهار کې د طالبانو د تحريک په نـوم يـوه نـوي خوځښـت سر راپورتـه کـړی و.حقاني صاحب د کويټې په اشرفيه مدرسه کې د صحاح سته وو د وروستيو احـاديثو سمع کوله او د تعلم له پړاوه فراغت ته يي ځان جوړاوو.

د ۱۹۹۴ مـيلادي کـال د نـومبر پـه دريمـه نيټـه چـې د ۱۳۷۳ لمريـز د عقـرب لـه ديارلسمې سره سمون خوري، هغه ورځ چـې حقـانی صـاحب لـه دينـي علومـو د فراغـت دستار په سر کاوو او په دې وياړ لوی مراسم رابلـل شـوي و، پـه کنـدهار کـې طالبـانو د پنجوايي،ډنډ او بولدک له نيولو وروسته د کندهار ښار په خوا سوقيات پيل کـړي و چـې دوه ورځې وروسته دنومبرپه پنځمه يي دغه ښار له جګړه ماروقومندانانو څخه ونيو.

مولوي سيد محمد حقانی صاحب د احاديثو اجازت نامه لـه وتـلي او مشرـ عـالم شيخ ابوعبدالله نورحبيب سواتي صاحب څخه ترلاسه کړه او د لوی عالم شيخ الحديث عبدالبصير صاحب په ګډون مشهورو علماء کرامو يي په سر د فضيلت پګړۍ وتړله.

**دری ورځې دمه**

د حقاني صاحب ماما ملا محمد حسين وايي: د حقاني صاحب له فراغت وروسته چې کله مو غوښتل کندهار ښار ته ستانه شو نو چې بولدک ته راغلو لار بنده وه ځکه په کندهار ښار طالبانو جنګ شروع کړی و،څه ځنډ وروسته چې طالبانو ښار ونيو کور ته ستانه شوو، حقاني صاحب دری ورځې په کور وکړې او په څلورمه ورځ بيا له کوره لاړ. دا ځل يي د طالبانو په تحريک کې خدمت پيل کړ چې بيا تر هغه وخته چې په همدې اسلامي خوځښت کې د خدمت په مهال يي خپل روح باري تعالی ته وسپاره نومړی د اسلامي امارت په چوکاټ کې په خدمت بوخت پاته شو.

ملا محمد حسين اخند وايي:د حقانی صاحب د والدې شريفې هميشنی ارمان همدا و چې له خپل مشر، صالح او شريف زوی حقاني صاحب سره په ګډ ژوند مې تنده نه شوه ماته، له ډېر کوچنيوالي راهيسې په علم پسې مسافر شو او چې له علم نه فارغ شو نو دری ورځې بعد يي د طالبانو په تحريک کې خدمت او جهاد پيل کړ ډېر وخت به له کوره بهر و تر څو په همدې لاره کې حق ته وصل شو.

**په اسلامي امارت کې خدمتونه او مسؤليتونه**

لکه وړاندې چې وويل شول مولوي سيد محمد حقاني صاحب د طالبانو په لاس د کندهار ښار له نيولو وروسته له مقدمو کسانو څخه و چې د طالبانو په اسلامي تحريک کې يي خدمت پيل کړ،نومړي خپله وظيفه د کندهار د اطلاعاتو او کلتور له رياست څخه پيل کړه،د کندهار د اطلاعات و کلتور رياست چې په تنظيمي دوران کې د جګړه مارو مرکز او فرهنګي محيط يي د چرسو بوی او د سګريټو پاتې شونو په سر اخيستی و، د سيد محمد حقاني صاحب په شمول د تحريک د فرهنګي ځوانانو په مټ يو ځل بيا د علم او فرهنګ په مرکز بدل شو.

طالبانو چې د عقرب مياشتې په نيمايي کې کندهار ښار ته داخل شوي و لږ وخت وروسته يعني د همدې کال په جدي مياشت کې يي نه يوازې د کندهار مشهوره

ورځپانه طلوع افغان له چاپه را وایسته بلکې راډیو یې هم فعاله او ورپسې یي د خلافت او کندهار مجلو د چاپ لړۍ هم پیل کړه.د طلوع افغان ورځپاڼې د هماغه کال په لومړنیو ګڼو کې د مرحوم حقاني صاحب څو لیکنې هم خوندي دي .

مرحوم حقاني صاحب وروسته د کندهار ولایت د اطلاعاتو او کلتور ریاست مرستیال او څه موده بعد ددې ریاست رئیس وټاکل شو. چې د خپل مسؤلیت په وخت کې یې د پام وړ فرهنګي خدمات انجام کړل.

د طالبانو په لاس د کابل له فتحې وروسته نوموړی د بهرنیو چارو د وزارت اداري مرستیال تعین شو، خو لږ موده بعد د اسلامي امارت د چارو د ادارې د لوی ریاست د رئیس په حیث وټاکل شو.

څرنګه چې له طالبانو وړاندې په پلازمینه کابل او ولایاتو کې حکومتي اداري سیستم بشپړ فلج و د طالبانو له سترو کارنامو یوه هم د اداراتو له سره فعالول و، چې په دې برخه کې د جناب حقاني صاحب خدمتونه د یادونې وړ دي .

مرحوم حقاني صاحب په دې اړه په خپل یوه یاداشت کې لیکلي : کله چې د مشرقي ولایاتو د فتحو لړۍ پیل شوه، دملا نورالدین ترابي په مشرۍ ځانګړی کمیسیون وټاکل شو ترڅو د مفتوحه سیمو ادارات فعال کړي دوی هر ولایت ته په ورتګ سره د هغه ولایت اداري تشکیل ټاکه او اداري نظام یی فعالاوو، دبیلګې په توګه ننګرهار ته په ورتګ سره شهید مولوي احسان الله احسان د والي په حیث وټاکل شو، دغسې نور رئیسان هم وټاکل شول، څو ورځې وروسته چې کله مجاهدینو کابل ونیو، نوپه کابل کې دچارو د کنترول لپاره لومړی د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا شپږ کسیزه عالی رتبه شوری وټاکل شوه ، ورپسې یې په کابل کې دحکومتي اداراتو د عاجلانه فعالیت لپاره د کندهار ولایت ټول رئیسان په کابل کې دخپلو اړوندو وزارتونو د سرپرستو وزیرانو په حیث وټاکل، په دې توګه د کابل له فتحې سره هم مهال حکومتي ادارات بې له کوم ځنډ او خنډ څخه فعال شول او خپل اصلاحي او انکشافي چارو ته یي دوام ورکړ .

نوموړی د چارو د اداري د لوی رياست د کار په اړه ليکي: د حکـومتي دود سره سم د اسلامي امارت په واکمنۍ کې هـم د چـارو دادارې رياسـت د حکـومتي چـارود کنترول او بررسۍ د مرکز په حيث فعاليت کاوو.د ټولو وزارتونو، رياستونو او ولايـاتو عرايض،پيشنهادات او راپورونه له همدې لارې رياست الوزراء او داميرالمؤمنين دفتر ته رسيدل. دغه راز د مشرتابه فرامين، هدايات او احکام هم د چارو دادارې د رياست لخوا ټولو وزارتونو او اړوندو مراجعو ته رسول کيدل.

څرنگه چې د چارو دادارې رئيس د کابيني غړيتوب درلود او دوزيرانـو د شـورى د منشي مسؤليت يي هم درلود، همدا کار د حکومتي چارو په هماهنگـۍ او شـفافيت کې نور هم مرستندوی واقع شوی و، داسلامي امارت د وزيرانو شـورا هـره چهارشـنبه غونډه درلوده، تر غونډې وړاندې د ځانگړي پلاوي لخوا د غونډې اجنډا ترتيب کيدله، چې مجلس به وربانديې ترسره کيده،د غونډې فيصلې چې کله په پښتو او کلـه پـه دري ليکل کيدلې،د چارو دادارې د رياست لخـوا ټولـو اړونـدو مراجعـو تـه د اجـراء لپـاره استول کيدلې.

حقاني صاحب دچارو د اداري د رياست له دندې وروسـته پـه اسـلام ابـادکې د افغانستان د سفير په حيث تعين شو خو څه کم يو کال وروسته بيرته د چارو د ادارې د رئيس په حيث وټاکل شو، نوموړی چې پـه اداري امـورو کـې يـي د پـاموړ اسـتعداد درلود په افغانستان د امريکايانو د يرغل تر مهاله په همدې مهمه دنده پاته شـو، چـې ورسره يي د اسلامي امارت د وزيرانو د شورى د منشي په حيث هم دنده اجراء کوله.

په افغانستان له يرغل نه وروسته چې کلـه پلازمينـه او د هيـواد لـوی ښـارونه د يرغلگرو لخوا اشغال شول او مجاهدينو اطرافي سـيمو تـه خپـل تشـکيلات نقـل او پـه مسلح جهاد يي لاس پورې کړ، مرحوم حقاني صاحب هم دنورو مجاهدينو په څنگ کې دجهادي بهير په بېلا بېلو شعبوکې له هيڅ راز خدمت نه مخ نـه اړاوه چـي بلاخـره پـه ۲۰۰۷ م کال يې د اسلامي امارت د فرهنگي کميسيون د مرستيال په حيث دنـده پيـل کړه.

په دې مرحله کې نوموړي په پوره اخلاص،جدیت او تدبر سره د کفري یرغل په وړاندې فرهنګي او نشراتي جهاد ته خپل ژوند وقف کړ او د فرهنګي کمیسیون د مشر جناب متقي صاحب تر څنګ يې د یوه مخلص، فداکار او پُرکاره ملګري په حیث د غرب د تبلیغاتي توپان د دفع کولو او په وړاندې یې د اغیزناکې جهادي نشراتي مبارزې د سنګرونوپه ودانولو پیل وکړ.

په افغانستان امریکایي یرغل لکه څنګه چې په یوځي لحاظ یو پراخ ایتلاف تر شا درلود، تبلیغاتي بُعد يي هم همدومره پراخ او په مقابل کې یې د مجاهدینو نشراتي فعالیت هم د حجم او مؤثریت له اړخه دومره دقیق او اغیزناک و چې حتی دښمن یې په څواکمنۍ اعتراف وکړ او د مجاهدینو رسنیز فعالیت يي سریع او مؤثر وباله. چې د نورو ګڼو قلمي مجاهدینو ترڅنګ ددې ویاړمن مطبوعاتي سنګر یو تکړه او نه ستړی کیدونکی غازي مرحوم حقاني صاحب و چې له الله تعالی څخه ورته د ټولو خدمتونو د قبولیت خواست کوو.

## مرحوم حقاني صاحب د ملګرو په خاطرو کې

د حقاني صاحب د ډیر وخت ملګری مولوي امیر خان متقي صاحب وايي: حقاني صاحب یوښه څیرک دیني عالم وو ، جهاد او اسلامي امارت سره یې دزړه له تله مینه اوخلوص درلود. داداري کار په زړه پوري وړتیا یې لرله، له ملګرو سره یې وفا اومینه ریښتیني وه، په عملي کارونو کې یې ښه ابتکار درلود اودعام ولس په درد به دردمن اوپه خوښیو به یې خوشحاله وو.

د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد: حقاني صاحب دحق ویلو، حق دید، حق اوریدلو، حق منلو او حق اوسیدلو یو دنګ منار وو، کله به یې چې یقین وو چې دا لاره حقه ده، د هیڅ شي په بدل کې یې هم هغه مسیر نه پریښود، د منازعاتو او مشاجرو په اړه د فیصلې پرمهال به یې حق ته کتل، دغوصې او خفګان له امله له حق څخه نشو تیریدای، د عمر تر پایه په حق پاتې شو او له حق سره ملګری دحق په لاره له حق سره وصل شو.

د اسلامي امارت ویاند قاري محمد یوسف احمدي: مرحوم حقاني صاحب به باربار راته ویل چي دکار له ملګرو سره چي مو څومره کوښښ کیږي نور هم په صمیمیت کي پاتې شئ ځکه لیري والی هغه څه دي چي ستاسو پر کارونو مستقیماً بد تأثیر پرې باسي او دی به دملګرو تر منځ په دوستانه فضا ډیر زیات خوشحالیده ډیر له شهرت او خودنمایي نه لرې خدای ته نیژدې یو مخلص انسان و.

لیکوال او شنونکی مولوي عبدالرحیم ثاقب: مرحوم حقاني صاحب سره له دې چې ټول وخت یې د یوه ښه اداري کار پوه او تجربه لرونکي دیپلومات په توګه په مسؤلیت کې تیر شوی و خو بیایي هم هیڅ کله خپل ځان پرخپلو ملګرو باندې لوړ نه ګاڼه ؛ بلکې کوښښ یې کاوه چې د خپلو کاري ملګرو له تجربو او کاري پوهي څخه استفاده وکړي.

دهیواد نامتولیکوال ملا عتیق الله عزیزي: هرځل چې زه ورسره مخ شوی یم داخلاقو اودیانت د دغه هسک منار له خولي اوژبي څخه به داسې توصیې او مجرب نکات لورول کیدل چې باور وکړئ زما لپاره به هغه ډیر قیمتي ثابتیدل اودخدمت دسرعت باعث به ګرځیدل ، هیڅکله ما نه وو ترې اوریدلي چې داکار اوکارنامه ما کړي بلکې هرڅه به یې دملګرو دخدمت اوهڅو محصول ګڼل .

د مرحوم حقاني صاحب ورونه دده د کورني ژوند په اړه وایي: مرحوم حقاني صاحب په شخصي ژوند کې هم عجیب عادات درلودل،له چا سره یې په خپګان او حسد کې هیڅکله سیالي نه کوله، ډیر ځله داسې شوي چې یو څوک به ترې خپه و او حسد به یې ورسره کاوو مګر دی به خپله کور ته ورغی، که به هغه ځان ترې پټ کړ نو د کور غړو ته به یي وویل چې ورشئ پلانی راولئ له هغه سره مې کار دی په دې طریقه یې هرڅوک دې ته مجبورول چې ښه دوستي ورسره وپالي.

خپلو ورونو ته یې همیشه دا توصیه وه چې صله رحمي او خپلوي به له هیچا سره نه قطع کوئ، که څوک هرڅه درسره کوي خو تاسو به یوازې د یوه دیني اصل په حیث

صله رحمي او خپلوي ورسره پالئ.د شهيدانود كورنيو او يتيمانو يي ډير خيال ساته، تر خپله وسه يي كومك ورسره كاوو.

ما (ددې كرښو ليكوال) هم له حقاني صاحب سره اوه كاله نږدې ملگرتيا درلودلې ده چې نوموړی مې هميشه د شخصيت په لحاظ د يوه مستعد انسان په حيث درک كړی دی. د حقاني صاحب يو ستر خوی شرافت او لوړه اخلاقي رويه وه،نوموړی داداري سلسله مراتب له اړخه زموږ مشر و، مگرد ځو كلنې ملگرتيا په ترڅ كې مې له نوموړي هيڅكله داسې قول،فعل يا چلند حس نه كړ چې ځان د نوموړي په نسبت حقير يا تر امر لاندې حس كړم.

نوموړي په اداري ماحول كې له كاركوونكو سره په افقي تعامل باور درلود، تجربو ثابته كړې چې په اداري ماحول كې د عمودي تعامل په نسبت افقي چلند په مراتبو ښه اثر لري،په افقي چلند كې آمر خپلو ترلاس لاندې كسانو ته د مأمورينو نه بلكې د ملگرو په نظر گوري، فرمان يي د أمر نه بلكې د التماس په لهجه وي او د ملگرتيا يو ماحول يي جوړ كړی وي، په اصل كې دا چلند د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طريقه ده،چې خپل تر لاس لاندې كسان يي اصحاب يعني ملگري بلل،له هغوی سره تعامل يي بشپړ طبعي او د لوړو ديني انساني اخلاقو او صميميت څخه مالامال و.

د مرحوم حقاني صاحب بل صفت چې له امله يي نوموړی په هر چا خوږ لگېده،خوشرويي،هميشنۍ موسكا او مينه ناک چلند و،هيڅكله يي غوسه او سخت گيري نه كوله، د ترخو تجربو د زغم ، له پامه غورځولو او هيرولو چل يي زده و.

نوموړي د شرافت او اخلاقو كرښو ته هميشنی تعهد درلود، هيڅكله په ټيټو او كم ارزښته موضوعاتو نه غږېده، هيڅكله مې د ضدبازۍ،سيالۍ،انتقام،قومپالنې، منطقه پرستۍ، تاوېلي ماوېلي او دغسې نور مبتذل او بي ارزښته بحثونه حتی په ډيرو خصوصي مجالسو كې هم ترې وانه وريدل.د گيلې، شكايت او غيبت عادت يي نه درلود او تر ډيره حده يي په اشخاصو بحث نه كاوو بلكې په موضوعاتو به غږېده.

## وفات

حقاني صاحب چې د خپلو جهادي وظايفو په مهال په سفر بوخت و د ۱۴۳۷ هـ ق کال د ربيع الاول په ۲۲ مه نيټه د شنبې په ورځ يي د ورپيښې ناروغۍ له امله خپل روح حقيقي بادار او ملک الارواح ته وسپاره. انا لله و انا اليه راجعون

د مرحوم مولوي سيد محمد حقاني صاحب تر شا پنځه کشران ورونه او اته زامن پاته شول، چې لله الحمد په ټولو کې دده اثار ښکاره او زامن يي په ديني زده کړو بوخت دي.

د حقاني صاحب د وفات خبر په رسنيو او ټولنيزو شبکو کې په کمساري بڼه بدرګه او ډېرو خلکو ورباندې د حسرت او تسليت ليکنې وکړې، د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا هم د نوموړي په وفات رسمي تعزيتي بيان نشر شو چې په يوه برخه کې يي راغلي: د افغانستان د اسلامي امارت مشرتابه، د اسلامي امارت رهبري شورى او فرهنګي کميسيون د اسلامي امارت د ټولو منسوبينو په نمايندګۍ د نوموړي د وفات له امله د مرحوم کورنۍ ته د تعزيت او تسليت مراتب وړاندي کوي.

متعال څښتن دې د جناب حقاني صاحب خدمتونه په خپل دربار کې قبول کړي، الله تعالى دې ورته په دنيوي عباداتو او د اسلامي نظام لپاره په زغملو ستړياوو کامل کامل اجرونه ورکړي او الله تعالى دې يي کورنۍ ته صبرجميل او نعم البدل ورنصيب کړي. آمين



## د شهید مولوي محمد عالم کلیم ژوند او کارنامو ته کتنه

ليکنه: قاري سعيد

د ۲۰۱٦ میلادي کال د جنورۍ په شپږمه نیټه د افغانستان اسلامي امارت د خپلو نظامي جهادي کدرونو له منځه یو خورا غښتلی او کارنامه ساز مجاهد له لاسه ورکړ.

هو کې، مولوي محمـد عـالم کلـیم هغـه مجاهـد و چـې لکـه څرنگـه یـي چـې د مجاهدینو تر منځ د یوه ویاړلي او مخلص مجاهد په حیث شهرت درلود همداسې یـي په کفارو او د حق په دښمنانو کې هم زړونه خوړین کړي و، دا چې مولوي محمد عالم څوک و؟ څرنگه ژوند یي وکړ؟ او د اسلامي نظام په لاره کې یي کوم جهادي خدمتونـه وکړل ؟ په راتلونکو کرښو کې یي لوستلی شئ.

### شهيد مولوي محمد عالم کلیم

مولوي محمد عالم کلـیم د ۱۳۴۳ هــ ش کـال پـه پسرـلي کـې د زابـل ولایـت د میزاني ولسوالۍ په لنډۍ نومې سیمه کې د کوچیانو په یوه کاله کې دنیا تـه راغـی. د پلار نوم یي محمد اصغر او د پښتنو د اندړو له قبیلې سره یي تعلق درلود.

محمد عالم کلیم په کم عمر کې ددیني زده کړو حصول تـه مـلا وتړلـه. لـومړۍ زده کړې یي په تانده ځوانۍ کې د پاکستان د بلوچستان پـه پښـین سـیمه کـې تـرسره کړې،وروسته د دیني تعلیماتو لپاره قبايلي سـيمو تـه لاړ هلتـه پـه شـمالي وزیرسـتان میرانشاه کې د وتلي جهادي مشر مولوي جلال الدین حقاني صاحب پـه مدرسـه منبـع العلوم کې شامل او دیني زده کړو ته یي ادامه ورکړه.

څرنگه چې د مولوي جلال الدین حقاني مدرسـه پـه تعلیمـي خـدمت سربیـره د جهادي فکر مدرسه هم وه، مولوي محمد عالم کلیم په همدې مدرسه کې په جهـادي

فکـر وروزل شـو او وروسـته یـي د مولـوي جـلال الـدین حقـاني تـر مشرـۍ لانـدې دافغانستان په جنوب ختیځ خوست اوپکتیا کې عملا په جهاد کـې برخـه واخیسـته او لومړنی جهادي سفر یي له همدې ځایه پیل کړ.

نوموړی په خوست کې له څه مودې جهاد وروسته زابل ته راغی او په خپله سیمه کې یي د زابل د میزان په ولسوالۍ کې د آمـر مـلا ظریـف تـر قومانـده لانـدې د سرو لښکرو او کمونیستي رژیم پر ضد جهاد ته ادامه ورکړه.

مولوي محمد عالم کلیم لـه جهـاد سره سره خپـل ددینـي زده کـړو سلسـله هـم تعقیبوله،د بلوچستان په لورلایي، کویټه اونورو مختلفو سیمو کې یي له دیني مدارسـو دیني تعلیم ترلاسه کړ. نوموړي د کمونیستي نظام د سقوط تر وخته همیشه جهـاد تـه هم تلو، خو دکورنۍ جګړې او تنظیم شاهۍ په دوران کې یي ټولـه توجـه یـوازې دینـي زده کړو ته راوګرځوله.

نوموړي خپله ددیني زده کړو سلسله د اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال پای تـه ورسوله او د پاکستان په مردان کې یي له مشهور عالم شیخ الحـدیث مولـوي حمـدالله جان داجوی صاحب څخه د احادیثو او فراغت سند ترلاسه کړ.

## د طالبانو په اسلامي تحریک کې شمولیت او خدمتونه

مولوي محمد عالم کلیم هغه وخت د طالبانو له تحریک سره ملګری شو،چې دې تحریک په کندهار کې نوی ظهور کـړی و او لا د کنـدهار ښـار واک یـي نـه و ترلاسـه کړی. نوموړي د زابل ولایت د دایچوپان ولسوالۍ د یوه ډلګۍ مشر مولوي عبدالخالق تر مشرۍ لاندې په دې اسلامي تحریک کې خدمت پیل کـړ، پـه ګڼـو جګـړو کـې یـي برخه واخیسته، د کابل له فتحې وړاندې د وردګو ولایت په میـدان سـیمه کـې زخمـي شو خو الله تعالی ورته شفاء ورکړه. د کابل له فتحې وروسته یي هم په پـروان، کاپیسـا او د افغانستان په شمالي ولایاتو کـې پـه ډیـری جنګونـو کـې د یـوه مخلـص او مطیـع مجاهد په حیث برخه واخیسته.

په ۱۹۹۷ میلادي کال کې چې کله د طالبانو یو لوی لښکر د سالنګ تونل له لارې د افغانستان شمال ته واوښت دغه مهال مولوي محمد عالم د جبل السراج په سیمه کې د شورای نظار لخوا ونیول شو او څو میاشتې ورسره بندي پاته شو.

مولوي محمد عالم چې د شورای نظار له کوم قومندان سره بندي و د هغه ورور له اسلامي امارت سره بندي و. دغه قومندان مولوي محمد عالم ته وویل چې که ته زما ورور راخلاص کړې نو زه به هم تا ازاد کړم،مولوي محمد عالم له یوه دریمګړي سره یوځای کابل ته راځي او د جهادي خط قومندان ته وایي چې دی په مشروط ډول له دښمن څخه راغلی دی او وعده یي ورسره کړې چې د پلاني قومندان ورور به د ځان په مقابل کې خلاصوي،نو که ستاسو خوښه وي هغه د قومندان ورور ازاد کړی او که مو خوښه نه وي نو زه به بیرته دښمن ته ورشم.

دغه مهال په لومړیو کې دقومندان دورور په خلاصولو موافقه ونه شوه نو ځکه مولوي محمد عالم بیرته دښمن ته د ورتلو اراده وکړه، خو له روانیدو وروسته یي د مجاهدینو مشرانو پریکړه وکړه،د شورای نظار دقومندان ورور یي ازاد کړ او مولوي محمد عالم له نیمې لارې بیرته راستون شو. چې دغه دښمن ته بیرته د ورستنیدلو او حتی له دښمن سره وعده پالل د نوموړي یوه کمساري کارنامه وه او ددې قرآني أمر نغد امتثال و چې الله تعالی په وعده د وفا په اړه فرمایي: و أوفوا بالعهد ان العهد کان مسؤلا.۳۴ سورة الاسراء . ترجمه: او په عهد وفا وکړئ د عهد په اړه په یقین سره پوښتنه کیدونکې ده.

## د امریکا په خلاف جهاد

له کابل څخه د طالبانو له وتلو او امریکا له حاکمیت وروسته مولوی محمد عالم له هغو لومړنیو مجاهدینو څخه و چې له څو تنو نورو مجاهدینو سره په ګډه یي په زابل ولایت کې جهاد پیل کړ.د زابل ولایت په شاجوی ولسوالۍ کې نوموړی له مقدمو مجاهدینو شمیرل کیږي.

د مولوي محمد عالم نږدې ملګرى مولوي محمد انور وايي: هغه د پيل وخت ډېر د غربت او تش لاسی وخت و. د مولوي صاحب او نورو طالبانوکورونه حکومت تلاشي کړل او وسلې يي ترې يووړې. حتی يو ميل سلاح هم نه پيدا کيدله. مولوي محمد عالم زه د سيمې يوه قومندان ته ورولېږلم چې يوه ميل سلاح راکړي،هغه راته وويل چې ټول امارت رنګ شو اوس په يوه کلاشينکوف نه راټينګيږي. ما دا خبره مولوي محمد عالم ته وکړه هغه قسم ياد کړ چې که ټول مجاهدين تسليم شي هم ارام به نه کينم او که په تش لاس هم وي جهاد ته به ادامه ورکړم.

مولوي عبدالحليم منصور چې هغه مهال لومړنی ډلګی مشر و وايي: په پيل کې د مولوي صاحب د ملګرو له جملې موږ دری کسان يعنې مولوي محمد عالم،شهيداسدالله جمشيد او زه و چې مخفي جهادي کارونه مو پيل کړل. لومړی مو يوازې په شاجوی کې فعاليت کاوو وروسته دايچوپان،خاکران او ارغنداب ته مو هم فعاليت پراخ کړ.نومړی وايي له مولوي محمد عالم صاحب سره په ګډه مو ۵۴ ميله وسله توزيع کړه او ځوانان مو جهاد ته تيار کړل چې وروسته ددې ټولې ډلګی مشر- مولوي محمد عالم وټاکل شو او تشکيلات يي خورا پراخ شول.

عبدالحليم منصور د هماغو لومړيو سختو شپو انځور داسې راته وړاندې کړ: هغه سخت وخت و چا له ډاره مجاهد ته شپه نه شوی ورکولی،موږ به د بازار له نانوايي ډيرې ډوډی واخيستې، له ځان سره به مو غرو ته يووړې هلته به مو يوه هفته وربانديې ګوزاره کوله. د يخ او ګرمی ټولې شپې به مو په تورو غرو کې تر آسمان لاندې کولې،حتی کله به چې ډير يخ و نو په ريګونو کې به مو د قبر غوندې ځايونه راته ژور کړل او ريګ به موپه ځان واړاوو تر څو د شپې له سخت يخ نه وربانديې ځان وساتو،له ډير يخ څخه دځينو ملګرو رنګونو داسې تور اوښتي وو چې شناخته خلکو نه پيژندل حتی له لوږې او تندې ځيني ملګري بي حسه کيدل.

له همداسې امتحاني شيبو څخه مولوي محمد عالم صاحب د يرغلګر کفر په خلاف جهاد پيل کړ،خو له نومړي سره د ټولو مجاهدينو په خير الهي نصرت ملګری

و. ډېر زر يي ملګري اضافه شول، الله تعالی غنائم په لاس ورکړل،د کار ساحه يي پراخه شوه، دزابل په مختلفو ولسواليو سربيره يي په غزني او کندهار ولاياتو کې هم جهـادي خدمت پيل کړ، تردې چې په وروستيو کـې يـي د خپلـې مربـوط ډلګـۍ د مجاهـدينو شمير تر زرو مسلحو مجاهدينو ورسيد.

د جهاد په لومړيو کلونو کې د مولوي محمد عالم لـه مشـهورو جهـادي بريـدونو څخه يو د هغه ايټالوي چارواکي وژل و چې غوښتل يي له کندهاره کابـل تـه پـه مـوټر سايکل لاړ شي چې د شاجوی ولسوالۍ د بازرګان په سـيمه کـې دنومـوړي پـه مشرۍ مجاهدينو له منځه يووړ،چې دې بريد هغه وخت په رسنيو کې يو ځل بيا د مجاهدينو د موجوديت خبرونه تاوده کړل.

ورپسې د نوموړي په مشرۍ مجاهدينو د ارغنداب امنيه قومنـدان عبدالمحمـد سره له ملګرو د سياګز بند په سيمه کې په يوه کمين کې له منځه يووړل او ورپسې په لويه لاره د تازي په سيمه کې له دښمن سره ټوله ورځ سخته جګړه وشوه او په دې ډول جهادي عملياتو علني شکل غوره کړ.

د جهاد له علني کيدو وروسته د لومړنيو کلونو هغـه لـوی عمليـات چـې مولـوي محمدعالم صاحب له نورو مجاهدينو سره په کې برخوال و، د ارغنداب د بـاغ پوسـته له منځه وړل،د خاکران ولسوالي د مرکز نيـول،د ارغنـداب د ولسـوالۍ مقـام او ګنـې پوستې نيول،له امريکايانو سره په ارغنداب کـې سـخت جنـګ چـې پـه لـومړي ځـل د امريکايانو تر لسو پورې مړي پاته او څلور ټانګونه لـه منځـه لاړل او لـه غـزني څخـه د راغلې قوې په شا تمبول چې د جاويد په نوم هزاره قومندان يي د خرني په سيمه کې د مولوي محمدعالم لخوا په موټر کې سپور په راکټ وويشتل شو اووژل شو.

په يادو عملياتو سربيره مولـوي محمـد عـالم نـور هـم ګـڼ عمليـات او جهـادي کارنامې سرته رسولې چې د ټولو يادول ددې ليکنې تـر حوصلې لـوی کـار دی،خـو پـه مجموع کې ويلی شو چې نومـوړی د زابـل ولايـت پـه سطحه يـو لـه سـترو او پُرکـاره مجاهدينو څخه و چې ډېر وخت يي په سنګرو کې تيريدو. په تيرو څوارلسو کلونو کې

دنوموړي د زر کسیزې ډلگۍ ۲۰۳ تنه مجاهدین له یرغلگرو سره په سختو جگړو کې شهیدان شوي،مولوي محمد عالم صاحب په امریکا ضد جهادکې درې ځله ټپي شوی دی،نوموړي د امارت په تشکیلاتو کې د زابل د ارغنداب، شهرصفا،شلمزو، نوبهار، شینکۍ،میزاني او چوپان ولسوالیو نظامي مسؤلیتونه کړي همدارنگه د زابل د ولایتي کمیسیون غړی او څه موده یي رئیس هم پاته شوی دی.

## د شهیدمولوي محمد عالم کلیم د شخصیت په اړه

مولوي محمد عالم کلیم په ټوله معنی یو رښتینی،فداکار او سرسپارلی مجاهد او د الله تعالی ددین خادم و. نوموړی یو ورزیده او مدرس عالم هم و د خپل کور له خوا سره یي دوه مدرسې یوه د هلکانو او بله د نجونو تاسیس کړې، چې سلگونه ماشومان او لویان په کې زده کړې کوي،په دې سربیره د نوموړي اصلي مشغله د الله په لاره کې مسلح جهاد و.

نوموړی لکه څرنگه چې د بهرنیو کافرو یرغلگرو سرسخته دښمن و د هغوی دداخلي گوډاگیانواو جاسوسانو په خلاف یي هم جدي موقف درلود. ملا احمدالله وثیق وایي: مولوي صاحب به په دې آیت ډیر استدلال کاوو چې د رسول الله ﷺ د اصحابو صفت دا و چې اشداء علی الکفار رحماء بینهم. له همدې امله خو نوموړي د کفارو او د هغوی د ملگرو په خلاف له ډیر جدیت څخه کار اخیست او د نوموړی د جدیت له امله د زابل به ډیرو سیمو کې ددښمن پلویان خصوصا جاسوسان له منځه لاړل اوځیني یي له سیمې تیښتې ته اړل شول.

وثیق صاحب وایي چې د بگرام په زندان کې د تحقیق په وخت یي یوه ورځ ټول تحقیق د مولوي محمد عالم صاحب په اړه راڅخه کاوو، چې دا څرنگه سړی دی؟ چیرې اوسي؟ څه ډول ملگري او امکانات ورسره دي او څرنگه عملیات کوي؟

د شهید مولوي صاحب یو نږدې ملګری یحیی وایي چې د مولوي صاحب همیشنی معمول د قرانکریم تلاوت و چې که به یي لس دقیقې فرصت پیدا کړ هم قرانکریم به یي راواخیست او تلاوت به یي کاوو.

د جنید په نوم مجاهد وایي چې د ډیر تلاوت له امله به ډیرځله په خوب کې هم د نومړي په ژبه د قرانکریم آیتونه تلاوت کیدل چې په خپله یي ترې اوریدلي دي،په تلاوت سربیره دتهجد لمونځ هم دده داسې معمول چې په هرڅومره سخت حالت کې یي هم نه قضاء کاوو.

د شهید مولوي محمد عالم صاحب مرستیال او د ډیر وخت ملګری نقیب الله مقیم د نومړي د شخصیت په اړه وایي: په مولوي صاحب کې د یوه ښه مؤمن او معیاري مجاهد ټول صفات موجود و خو څلور صفات یي داسې تر نورو ښکاره او تر لمر روښانه و چې حتی دښمن یي هم شاید سترګې ورباندې پټې نه کړي.

مولوي صاحب انتهایي غیرتي و او الله تعالی ورته لوی زړه او د جګړې په ډګر کې د ثبات توفیق ورنصیب کړی و.بله داچې ښه تقوا یي درلوده زما ورسره د ملګرتیا دوولس کاله وشول ډیرې شپې مو یوځای کړې خو زما نه یادیږي چې کومه شپه یي تهجد پرې ایښی وي.دریم داچې د خپلو امیرانو په اطاعت کې خورا جدي و،په هیڅ وجه یي دشرعي امیر له اطاعت څخه غاړه نه غړوله او څلورم داچې تواضع یي درلوده، له کبر او شهرت څخه یي نفرت کیده دا یي زړه غوښتل چې د خدای ددین خدمت وکړي اونوم یي پټ پاته شي. نمایش او ځان مطرح کول یي خوښ نه و.

د فاروق په نوم مجاهد وایي چې د زخمیتوب په شپو کې مولوي صاحب له ماسره یوځای په موټرسایکل ګرځیده، یوه شپه چې د پسرلي لومړۍ باراني شپې وې او سخت یخ و د شاجوی د کرتو په سیمه کې زما او مولوي صاحب په غرو کې شپه وه، نیمه شپه مې کړپ کړوپ تر غوږ شو زه وارخطا شوم چې هسې نه امریکایان راغلي وي. خو چې کتل مې مولوي صاحب چې زخمي هم و په باران او یخه هوا کې پاڅیدلی د غره په سړو اوبو یي اودس کړی او د تهجد په لمانځه ولاړ دی.

د نوموړي د ملګرو په وینا د مولوي صاحب بل صفت دا و چې د جماعت لمـونځ یي هیڅکله نه پریښود،حتی که دوه کسان به هم و، نوموړي به ملګرو ته ویـل چـې یـو طالب او یو امي مجاهد په موټرسایکل سره ملګري کیږئ او د جماعت لمونځ هیڅکلـه مه پریږدئ.

## شهادت

مولوي محمد عالم کلیم رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې بیابیا ددښمن له چاپو او بریـدونو څخـه الله تعالی ورته نجات ورکړ په پای کې داجیر دښمن په یوه ناځوانمردانـه او بزدلانـه بریـد کې د ۲۰۱٦ میلادي کال د جنورۍ میاشتې پـه شـپږمه نیټـه د پاکسـتان د بلوچسـتان ایالت په کچلاغ سیمه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

چې په جناره کې یي لسګونه زره مهاجرینو، مجاهـدینو او عـامو مؤمنـانو ګـډون درلود.

روح دي یي ښاد او یاد دیي یې تل وي.

رحمه الله تعالی



## د شهید ملا عبدالسلام بریالي ژوند او کارنامو ته کتنه

**لیکنه : قاري سعید**

د ۱۳۹۵ هجري شمسي کال د حوت د میاشتې په اتمه نېټه داسلامي امارت یو لوړ رتبه او مهم جهادي مشر او د کندز ولایت والي ملا عبدالسلام بریالی د امریکایي بې پیلوټه الوتکې په برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسېد.

ملا عبدالسلام ددې زمانې یو له سترو جهادي شخصیتونو څخه و چې د خپل عمر ډېره برخه یې لومړی د فساد پر خلاف او وروسته د امریکایي یرغل په خلاف په جهاد کې صرف کړې وه. د نوموړي شهادت په پراخه کچه غبرگونونه درلودل، په دې سربیره چې اسلامي امارت یې د شهادت په مناسبت ځانگړې اعلامیه صادره کړه، په ټولنیزو رسنیو کې ډېرې مقالې او تعزیتي لیکنې یې په اړه نشر شوې او په ټول کندز سربیره یې په مختلفو سیمو کې فاتحې واخیستل شوې. دښمن د نوموړي د شهادت په اړه په لوړه کچه اظهارات وکړل،چې په دې لړ کې اشرف غني د حوت په نهمه د سرتیرو د ورځې نمانځنغونډې ته په وینا کې د نوموړي یادونه وکړه او هغه یې د طالبانو یو مهم مشر وباله او ورپسې د امریکایي یرغلگرو مشر جنرال نیکولسن هم په دې اړه اظهارات وکړل او د ملا عبدالسلام شهادت یې خپله یوه لویه لاسته راوړنه وبلله.

په راتلونکو کرښو کې د جهاد او مبارزې د لارې د دې نه ستړي کیدونکي او اتل غازي په کارنامو باندې رڼا اچوو او د شهید ملا عبدالسلام اخند د شخصیت په اړه ناویلې خاطرې درته وړاندې کوو.

**شهید ملا عبدالسلام بریالی:** ملا عبدالسلام د محمد سرور زوی په ۱۳۵۵ هجري شمسي کال کې د کندز ولایت د دشت ارچي ولسوالۍ په سرفراز تېپه کلي کې په یوه غریبه او متدینه کورنۍ کې دنیا ته راغی.نوموړی لا د عمر په لومړیو کلونو کې

و چې په افغانستان د شوروي ښکيلاک لخوا يرغل وشو او پـه هيـواد کـې د جنـګ اور ولګېد. د ملا عبدالسلام اخند کورنۍ هم د نورو مليونونو افغانانو په شان د هجرت لار ونيوله،د هيواد له شمال کندز څخه بيا په جنوب کـې د پاکسـتان تـر سرحـد پـورې د هجـرت د سـختو پړاوونـو لـه وهلـو وروسـته د دوی کـورنۍ د بلوچسـتان د ځنګـل پيرعليزي په سيمه کې د مهاجرينو په يوه ميشت غالي کې ځای پر ځای شوه.

ملا عبدالسلام اخند همدلته د هجرت په ماحول کې را ستر شو، ابتدايي عصرـي او ورپسې ديني زده کړې يې وکړې او د يوه ممتاز طالب په حيث يـې د علـم سـفر تـه ملا وتړله. خو لا يې د علم په حصول ارمان نه و ختلی چې په افغانستان کې د فسـاد او ګډوډۍ پر ضد د طالبانو اسلامي تحريک پاڅون وکړ. ملا عبدالسلام اخند خپلـې زده کړې په نيمايي پرېښودې او په تانده ځواني کې چې ايله يې پر مخ د ږيرې آثـار ښـکاره شوي و د طالبانو له اسلامي تحريک سره وصل شو.

## د طالبانوپه اسلامي تحريک کې د فرد په حيث

مولوي محمد رحيم وايي: هغـه وخـت چـې طالبـانو کنـدهار او د هلمنـد مرکـز لښکرګاه نيولې وه خـو د هلمنـد د شـمالي ولسـواليو موسـی کـلا او کجکـې لپـاره يـې تشکيلات کول.په هماغه وخت کې مې په لـومړي ځـل مـلا عبدالسـلام وليـد چـې پـه کندهار کې له طالبانو سره په تشکيل کـې و او بيـا د هلمنـد موسـی کـلا تـه لاړل.مـلا عبدالسلام چې دا يـې د ځـواني لـومړي کلونـه وو د جهـاد ډېـر مينـه وال و. نومـوړي داسلامي تحريک په جهادي تشکيلاتو کې د مولوي عبدالعلي صاحب په ډلګـۍ کـې و چې د هلمند له تصفيې وروسته ميدان ښار، له هغه ځايه، دلوګر عينک ته لاړ، ورپسـې يې څه موده د کابل جنوب ته د ريشخورو په سيمه کې پـه جهـادي ليکـو کـې وظيفـه اجراء کړه او بيا د ميدان ښار د کوه قرغ په علاقه کې تر هغه وخته په جهادي خدمت بوخت و چې کابل د اسلامي امارت د مجاهدينو په لاس فتحه شو.

د کابل له فتحې وروسته د دوی ډلګۍ لومړۍ د خيرخـانې کوتـل تـه نـږدې پـه شپاړسمه فرقه کـې ځـای پـر ځـای وه وروسـته د د شـمالي خطونـو تـه لاړل چـې مـلا

عبدالسلام هم ورسره هميشه د قره باغ او کلکان په دفاعي خطونـو کې و. د شـمالي د دوهم ځلي فتحې وروسته چې کله جبل السراج او ګلبهار ونيول شول او د طالبانو خـط د پنجشير په خوله دالان سنګ سيمه کې و، ملا عبدالسلام اخند هم همدلتـه جهـادي وظيفه سرته رسوله چې همدلته په يوه سخته غرنۍ سيمه کې د جګرې په مهال ټپي او د علاج لپاره له سيمې انتقال شو.

له صحت يابي وروسته نوموړی يو ځل بيا د شمالي خط ته راغی او بيا چې کله د شمالي صفحاتو د عمومي فتحې په لړ کې د سمنګانو ولايت ونيول شو نوموړی له خپلو ملګرو سره سمنګان ته لاړ، د امريکا تر يرغل اتـه مياشـتې وړانـدې لـه سـمنګان څخـه دوی پلخمري ته تبديل شول او بيا تر پايه همدلته و چې د جهادي نوبت تيرولـو لپـاره به د تخار جنګي خطونو ته هم تلو.په پلخمري کې د وظيفې په مهال يـې څـه وخـت د آمر کشف په حيث هم وظيفه ترسره کړه. ملا عبدالسلام اخند بيـا تـر هغـه وختـه پـه شمال کې و چې امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ.

## د کندز محاصره او د شبرغان زندان

ملا عبدالسلام اخند هم د زرګونو نورو مجاهدينو سره د امريکايي يرغل په مهال په کندز کې محاصره شو، هغـه وخـت چـې دوی لـه هـرې خـوا کلابنـد و او لـه پاسـه ورباندې ظالمانه بمبار شروع و سخته امتحاني مرحلـه وه، د نومـوړي ځينـو ملګـرو د شخصي رابطو له لارې له محاصرې د ځان ايستلو کوښښ وکـړ او ده تـه هـم همداسـې وويل شول. مګر ده به ويل زه څرنګه دا دومره د ډيـر وخـت ملګـري او نابلـده مهـاجر مجاهدين همداسې يوازې پريږدم او د خپل ژوند بچ کولو هڅه وکړم. سره له دې چـې کندز دده اصلي وطن و او په ډيره اسـانۍ يـې کـولای شـوای خپـل ځـان ددوسـتم لـه کانتينرو او زندان څخه بچ کړي، مګر ملا عبدالسلام په هماغو امتحـاني شـيبو کـې د خپلو ملګرو سره وفا وپالـله او يوازې يې هماغه لاره غوره کړه چې مجاهـدينو وربانـدې عمومي سلا او توافق کړی و.

ملا عبدالسلام د زرگونو مجاهدينو سره يوځای د يوه توافق لـه مخـې د مـزار پـه خوا روان شو، مگر غدار دوستم له دوی سره غدر وکـړ، هغـوی تـه د لارې ورکولـو پـه ځای يې دوی په کانتينرونو کې واچول چې په دې کـې زرگونـو مجاهـدين شـهيدان او ملا عبدالسلام په داسې حال کې چې د کانتينر ډيری ملگري يې شهيدان شوي و په بې هوښه حالت کې له کانتينر څخه ژوندی را وايستل شو.

وروسته نوموړي اته مياشتې په شبرغان کې ددوستم په هغـه زنـدان کـې تېـرې کړې چې د وحشت او ظلم له اړخه يو مثالي محبس بلل کيده،ملا محمد رحـيم اخنـد چې دغه وخت يې د نوموړي په راخلاصولو کې ډيرې هڅې کړې دي، وايې چې بـالاخره مو ملا عبدالسلام اخند دپيسو په مقابل کې ددوستم له زندان څخه راخوشی کړو مگر کله چې له زندان څخه راووت ماته يې لومړی خبره دا وه چې ته خو دلته يـو څـه بلـد شوی يې او د بنديانو د راخلاصولو درک در معلـوميږي، دلتـه ډيـر بيچـاره مجاهـدين بنديان دي زما مشوره دا ده چې ته همدلته پاته شه، زه ځم اوپـه هـره طريقـه چـې وي پيسې درته پيدا کوم او راليږم تر څو دا نور مجاهدين هم راخلاص شي.

## د امريکايانو په خلاف د جهاد بيا پيل

د شبرغان له محبس څخه له راخلاصيدو وروسته نوموړی د افغانستان جنوب ته لاړ،هلته يې څه موده په خپله پخوانۍ ډلگۍ کې فعاليـت وکـړ او وروسـته د اسـلامي امارت په تشکيل کې مستقله ډلگۍ ورته منظوره کړای شوه او خپله ملا عبدالسلام يې دمشر په حيث وټاکل شو.

په دې مرحله کې چې دکندهار په سپين بولدک، معـروف او نـورو سـيمو کـې د شهيد حافظ عبدالرحيم صاحب لخوا جهادي عمليات پيل شوي وو، ملا عبدالسلام هم ورسره جهادي عملياتو ته تلو، نوموړي په معروف، ارغسان او زابل سيمو کې په لومړنيو جهادي عملياتو کې شرکت وکړ او کله چـې مجاهـدينو د کندهارپـه پنجـوايي او ژړۍ کې عمليات پيل کړل هم نوموړی څو ځله پاشمول ته لاړ او په جهادي بريدونو کې يـې برخه واخيسته.ملا عبدالسلام اخند چې د جهاد سخت شوق او جذبه يـې درلـوده او د

کفري يرغل په مقابل کې مسلح جهاد يې خپله فريضه بلله،چې هر ځای به جهادي عمليات ګرم و ځان به يې ور رساوه په دې لړ کې نوموړي د شهيد قاري فيض محمد سجاد، شهيد ملا شهزاده اخند او ګڼو نورو جهادي قومندانانو سره د هيواد په جنوبي ولاياتو کې په عملياتو کې شرکت وکړ.

د ۲۰۰۴ ميلادي کال په وروستيو کې ملا عبدالسلام آخند د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د کندز ولايت د مرستيال په حيث وټاکل شو،نوموړی له يوه بل ملګري شهيد ملاجانان اخند سره کندزته لاړ، دا وخت په کندز کې د جهادي عملياتوکوم څرک نه و.دوی په علي اباد کې د ملاغازي کور ته ورغلل هغه ورسره ملګری شو او په پيل کې يې په کندز کې د مساجدو له امامانو سره ليدل کتل پيل کړل او خلک يې جهاد ته دعوت کړل. لږ موده وروسته ملا عبدالسلام د کندز ولايت د جهادي مسؤل په حيث تعين شو.

د ملا عبدالسلام ترمشرۍ لاندې په کندز کې لومړی خفيه جهادي کاروانه پيل شول،وروسته کرار کرار جهادي کاروانه علني شول او د۲۰۰٦ ميلادي کال تر پايه پورې د کندز ټولو ولسواليو ته جهادي عمليات پراخ شوي وو،له دې وروسته په کندز کې پرلپسې جهادي وضعيت په کمي او کيف لحاظ دښه کيدو په حال کې و، اګر که ۲۰۰۷ م او ۲۰۰۸ م کلونه هم په کندز کې دجهادي برياوو له اړخه بي ساري وو ، خو په ۲۰۰۹ کال کې جهاد دورځنيو عملياتو له اړخه خورا مهم پيشرفت وکړ ، په دې کال کې يوازې دهغو راپورونو له مخې چې رسما نشر شوي دي مجاهدينو په کندز کې ۱۹٦ بيلابيل عمليات سرته ورسول ، چې په کورنيو سرتيرو سربيره يې بهرنيو جرمني عسکرو ته هم درنه مرګ ژوبله له ځان سره درلوده. په دې کال له مهمو بريدونو څخه دالمان په چانسلره ( انګيلا مرکل ) او دفاع وزير باندې دمجاهدينو بريد و کله چې هغوی کندز ته دخپلو سرتيرو دليدو لپاره راغلي وو په دې بريد کې دغه دوه الماني مشران بچ شول خو الماني سرتيرو ته يې په ځاني زيان سربيره دښمن ته منفي رواني پايلې هم درلودلې .

د ۲۰۰۹ م کال په پسرلي کې هغه مهال چې جرمني یرغلگرو عسکرو په چهاردره کې عملیات پیل کړي وو او ملا عبدالسلام اخند د مجاهدینو مشري په غاړه درلوده له الاماره ویب پاڼې سره په یوه مرکه کې یې د هغه مهال جهادي وضعیت داسې انځور کړی((په چاردره کې ۱۱ گروپونه لرو چې په هرگروپ کې له ۱۵بیا تر۲۰مجاهدین شته، دټولومجاهدینوشمېر له ۲۰۰ اوړي . داخو زمونږ هغه مجاهدین دي چې هروخت ددښمن مقابلې ته آماده وي نور دعام اولس په منځ کې مونږ بیخي ډېر ملاتړي لروچې دضرورت په وخت کې ورباندې غږکولای شو. څوورځې وړاندې جرمني ځواکونه د لاسپوڅو پولیسو او اردو په گډون چې نږدې ۱۰۰ ټانگونه اوپوځي وسایط ورسره وو،د عملیاتوپه موخه دچاردرې ولسوالۍ ته راغلل. دلته یوه لویه دښته ده په دې کې یې واړول مجاهدینوددې لپاره چې کلیوته یې دداخلېدومخه یې ونیسي۔ له وړاندې یې ورته کمینونه اوریموت کنترول ماینونه اماده کړي وو. جرمني یرغلگر لومړی دعین المجر سیمې ته راداخل شول چې مجاهدینو ورباندې برید وکړ په څوساعته جگړه کې ۳جرمني ټانگونه په راکټو ولگېدل اواوریې واخیست اوزیات شمېر سپاره سرتیري یې ووژل شول. په همدغه ورځ دوی دباسوسوپه خوا هم پیاده سرتیري رامارش کړل چې کلي ته دداخلېدو په وخت په نږدې باغچوکې دمجاهدینوپه کمین کې ولوېدل. زمونږ ملگري کیسه کوي چې ۸ تنه جرمنیان یې ولیدل چې په لومړي برید کې دمرمیوخوراک شول. ددې ورځې په پای کې ددوی ټانگونودسجانیوپه خوامخه وکړه هلته هم مجاهدین ورته اماده وو دلته په جگړه او د ماینونوپه انفجارونوکې ددوی ۴ټانگونه له منځه لاړل اودسر دروندزیان هم ورواوښت.

د عملیاتوپه دوهمه ورځ د چاردرې د سرک بالا په خوا دوی حرکت وکړ دلته دمیرشیخ په سیمه کې ددوی یوټانگ په ماین وخوت چې سپاره سرتیري یې ووژل شول. له دې پېښې شېبه وروسته دقریه فتاح په سیمه کې دوی دمجاهدینوله کمین سر ه مخامخ شول چې په سخته جگړه کې ددښمن ۲ټانگونه وویشتل شول بیاپه میرشیخ کې ددوی بل ټانگ هم له منځه لاړ لنډه داچې په دې ۲ورځوکې دوی په پله

پسې توگه دمجاهدينوتر بريدونولاندې وو چې په يادو ټولوپېښو کې ورتـه دسر  درونـد زيان واوښت د دوی د مړو او ټپيانو د انتقال لپاره په بيابياځرخکې راغلې په پـای کـې دوی اړشول چې دعملياتوپای اعلان کړي اوبېرته دکندز دښارپه خوادخپلوقرارگاووپـه خواوتښتېدل )

د همدې کال په وروستيو کې ملا عبدالسلام اخند پاکستان ته د سـفر پـه مهـال پـه اکـوړه خټـک کـې د پاکسـتان د اسـتخباراتي اداري لخـوا ونيـول شـول او بيـا پـه پيښور،کراچي او اسلام اباد کې څه کم څلورکاله بندي و. د زندان دا مرحله د نومـوړي لپاره د صبر، مصيبت گاللو او رياضت يـو طلايـي مرحلـه وه، نومـوړي بـه ويـل چـې د پاکستان په زندان کې يې صحيح البخاري،صحيح المسلم، سـنن ترمـذی، تفسـير ابـن کثير او د البداية و النهايه په شمول گڼ نور کتابونه ټکي په ټکي مطالعه کړي دي. ملا عبدالسلام اخند که څه هم دينـي سـبقونه يـې لـږ ويـلي و مگـر د پراخـې مطـالعې او ذهانت له امله د ډير ښه علم څښتن و.

## په کندزکې د مسؤليت دوهمه مرحله

ملا عبدالسلام اخند چې کله له زندان څخه را خلاص شو لومړی لنډه موده د بلخ ولايت والي او د يوه معسکر د مسؤل په حيث مقرر شو مگر وروسته يو ځل بيا د کندز ولايت د والي په حيث وټاکل شو.

کندز دا مهال د حکومتي عسکرو او په خاص ډول اربکيـانو تـر تسـلط لانـدې و. مجاهدينو په اکثرو سيمو کې مخفي شتون درلود، په کليو او ټولو اطـرافي سـيمو کـې اربکيانو او ځايي ټوپکي مليشو پوستې جوړې کړې وې. ملا عبدالسلام اخند پـه کنـدز ولايت کې ددوهم مسؤليت له پيل سره سم د اربکيانو د ټغر ټولول دخپل مهـم هـدف په حيث وټاکل، نوموړي يو ځل بيا اولس په اعتماد کې واخيسـت،اولس چـې اربکيـانو ورباندې ډير ظلمونه کړي وو يو ځل بيا يي مجاهدينو تـه غيـږ خلاصـه کـړه او پـه دې توگه له کندز څخه د اربکيانو د جارو کولو لړۍ پيل شوه. په چهـاردره، دشـت ارچـي، گورتيپه، امام صاحب او نورو سيمو کې مجاهدينو په مسلسلو عمليـاتو کـې داربکيـانو

سلگونه پوستې له منځه یووړې او ددښمن ددغې شیطاني طرحې تغر یې ټول کړ، د یوه کال په موده کې د کندز نظامي وضعیت یو ځل بیا هغه حال ته راغی چې د ملا عبدالسلام اخند د نیول کیدو په وخت کې و، اطرافي کلي او د ښار مضافات د اربکیانو له شتون څخه تصفیه شول.

په دې مرحله کې د دښمن ملیشې نه یوازې د وسلې په زور له سیمې وشړل شوې بلکې ډیری یې د دعوت له لارې تسلیم هم شوې.له ملیشو د سیمو له ازادولو وروسته د ملا عبدالسلام اخند په ابتکار په ټولو تر لاس لاندې سیمو کې یوه معیاري امارتي اداره رامنځته شوه، د دیني او عصري زدکړو مراکز فعال شول، محاکم او حکومتي مراجع د اولس د ستونزو په حلولو بوخت شول،د مجاهدینو د تربیې لپاره ځانگړي معسکرات پرانیستل شول تر دې چې د بیارغونې اود هیواد د ابادۍ کاروانه هم پیل شول. کندز چې د قومي تنوع له امله ورته کوچنی افغانستان ویل کیږي ملا عبدالسلام اخند په کې داسې په درایت سره خپل مسؤلیت ترسره کړ چې د ټولو قومونو او قشرونو په منځ کې یې زیات محبوبیت وموند او نوموړي ته یې د یوه عادل حاکم په حیث ډیر احترام درلود.

په کندز ولایت کې د ملا عبدالسلام اخند د مسؤلیت په دوهمه مرحله کې ډیر فتوحات هم وشول چې په دې لړ کې دوه ځلې د چهاردرې مرکز،دوه ځله د قعله زال ولسوالۍ مرکز،یو یو ځل خان اباد، دشت ارچي او د امام ولسوالۍ مراکز او دوه ځله د کندز مرکزي ښار دمجاهدینو په لاس فتحه شو.

## دکندز فاتح

د ۲۰۱۵ میلادي کال د سبتمبر د میاشتې په وروستیو کې هغه مهال چې د اسلامي امارت د مؤسس امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ د وفات د خبر له اعلان او د نوي امیر شهید ملا اخترمحمد منصور د ټاکل کیدو لړ وخت وتلی و. مجاهدین په غیرنورمال حالت کې و. له یوې خوا د مرحوم ملاصاحب د وفات غم او له بلې خوا د ځینو اختلافاتو او نارضایتونو راپورته کیدلو د مجاهدینو اذهان مغشوش

كړي وو. په همدې مهال ملا عبدالسلام اخند د کندز د مرکزي ښار د نيولو لپاره عزم وکړ.

د نوموړي يو نږدې ملګری ملا حمزه وايي: ملا عبدالسلام آخند په هغه خاص وخت کې د کندز ښار له نيولو څخه خاص اغراض درلودل، هغه دا چې مجاهدين به له مايوسۍ را ووځي او د فتحې په خوښيو به يې روحيات لوړ شي، د اختلافاتو خبرې به پرېږدي او د فتحې بحثونه به پيل شي،ددښمن تبليغاتي رُخ به بدل شي،د کندز په محبس کې پراته زندانيان به را ازاد شي، دښمن ته به دا وښودل شي چې ولايتي مرکزونه هم د ولسواليو د مراکزو په شان نيول کيدای شي او دا به ددښمن د عسکرو مورال وځپي، دښمن به مجبور شي چې له اطرافو خپل عسکر ټول او توجه په ولايتي مراکزو را ټوله کړي.

نوموړي څو ځله نظامي کميسيون ته خپل پلان وړاندې کړ، چې وروسته د اسلامي امارت د زعيم ملا اختر محمد منصور صاحب په تأييد دکندز د فتحې پلان نهايي شو. خبره يې په ډېره رازدارۍ وساتله تردې چې په ټاکلې نيټه يې د کندز په مرکز له څو خواوو بريد وکړ.

ملا همايون وايي چې ملا عبدالسلام اخند د عملياتو د پيل په شپه تر سهاره په نوافلو او دعاء ګانو بوخت و، کله چې عمليات پيل شوه نوموړي له خپل ځانګړي مرکز څخه د دوو تيليفونونو او يوې لويې مخابرې له لارې مجاهدينو ته د قومندې ورکولو کار پيل کړ، چې د عملياتو د پيل له وخته بيا د فتحې تر شيبې مسلسل له ټولو مجاهدينو سره په تماس کې و شيبه په شيبه يې قومنده ورکوله چې د نوموړې همدې ژوندۍ قومندې مجاهدينو ته خورا ډېره روحيه ورکوله او ټول کارونه له پلان سره سم مخته تلل.

کله چې د مخابرې له لارې خبر راغی چې مجاهدين د ښار زړه ته ورسيدل او د کندز محبس يې مات کړ، ملا عبدالسلام اخند بې اختياره الله تعالی ته په سجده پريوت چې تر ۷ يا ۸ دقيقو د شکر په سجده پروت و . وروسته يې بيا له مجاهدينو

سره د مخابرې او ټيلفونونو له لارې رابطې ته دوام ورکړ، نوموړي وروسته د مخابرې کار بل ملګري ته پريښود او خپله د کندز ښار داخل ته لاړ چې بياتر پنځلس ورځو پورې چې مجاهدين په کندز ښار کې و او په جګړه بوخت و نوموړی له مجاهدينو سره په ښار او يا هم اطرافو کې و.

ملا عبدالسلام اخند او ملګري يې تر هغه وخته دکندز په ښار کې ميشت او واکمن پاته شول تر څو چې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د کندز د تخليې اعلاميه صادره شوه تر څو عامه وګړي له بمباريو خوندي شي.

د کندز په فتحه کې مجاهدينو ته بې شميره غنائم په لاس ورغلل،ډول ډول وسلې او مختلف النوع لوکس اونوي موټرونه. سره له دې چې عادي مجاهدين لا د لوکسو موټرونو خاوندان شول خو ملا عبدالسلام اخند دهيڅ ښه موټر هوس ونکړ، ملا همايون وايي ملا عبدالسلام آخند له فتحې وروسته هم په خپل هماغه زاړه ډاتسن موټر کې ګرځيده چې ډير زوړ و او د مخې ښيښه يې هم ماته وه.

د کندز لومړۍ فتحې په نړيواله کچه په رسنيو کې پراخ انعکاس وموند. مجاهدينو ته يې نوې روحيه ورکړه او ددښمن روحيه او اعتبار يې تر وروستۍ کچې وځاپه. دښمن چې د کندز دې فتحې سخت سراسيمه کړی و په راتلونکې کال يې په کندز کې د پراخو عملياتو اعلان وکړ، ددښمن سلګونه ټانګونه د دشت ارچي ولسوالۍ ته لاړل تر څو دا ولسوالي له مجاهدينو ونيسي.

خو د ملا عبدالسلام اخند په مشرۍ د کندز مجاهدينو دا ځل له دښمن سره داسې تاکتيک وکړ چې دښمن هم ورته حيران شو، هغه دا چې کله چې دښمن په دشت ارچي کې په پراخو عملياتو بوخت او ټول قوت يې هلته نقل کړی و، ملا عبدالسلام اخند په ډيره بيړه څوارلس سوه مجاهدين برابر اود کندز په ښار يې حمله وکړه، د کندز د ښار دوهم ځل فتحې نه يوازې په دشت ارچي کې ددښمن عمليات ناکام کړل بلکې په ټول ولايت کې يې ددښمن تهاجمي روحيه وځپله او بيا دښمن دعملياتو جرأت ونکړای شو.

## شهادت

دښمن ډیر کوښښ کاوو چې د اسلام دغه ویاړلی غازي له منځه یوسي له همدې امله یې څو ځله د ملا عبدالسلام اخند د وژلو هڅه وکړه او هم یې څو ځله په دروغو د هغه د شهادت اوازه ګډه کړه.په نوموړي یوځل په ګورتیپه سیمه کې د امریکایي ډرون الوتکې لخوا دوه بریدونه وشول خو الله تعالی نجات ورکړ. نوموړي به همیشه د شهادت سوال کوو او حتی په مطبوعاتي مرکو کې به یې هم ویل چې شهادت یې له ارمانونو څخه دی او دده په شهادت به اسلام او جهاد ته هیڅ نقصان ونه رسیږي.

د نوموړي یو ملګری موسی فرهاد وایي: په ۲۰۱۲م کې مو یو وخت له راډیو نه په ګډه خبرونه اوریدل وروسته یو راډیویي بحث پر دې خبره پیل شو چې امریکایان له افغانستانه وځي ، له څه اوریدلو وروسته ملاسلام اخند راډیو بنده کړه ماته یې وویل : الله تعالی دې د دې کافرانو ظالمانو مخ پرته کړي ، خدای دي پخپل طاقت سره ټوټه ټوټه او زموږ وطن دي الله ج ځنې خلاص کړي . او بل دې الله تعالی ماته د دوي په لاس شهادت نصیب کړي. دا زما یو خاص ارمان دی.

د ملا عبدالسلام اخند ددې خاص ارمان د پوره کیدو لپاره الله تعالی د ۱۳۹۵ هجري شمسي کال د حوت د میاشتې اتمه نیټه ټاکلې وه. نوموړی ددې ورځې په سهار په چهاردره کې و،وروسته دشت ارچي ته لاړ تر څو د خپلې مور ملاقات وکړي، غرمه یې له خپلې مور سره مجلس وکړ او بیا خپل کلي ته نږدې د امیرملوک په کلي کې د یوه مجاهد کور ته لاړ ، نوموړي په دې ورځ له مجاهدینو سره مشورتي مجلس هم درلود، په همدې کور کې ماسپښین څه باندې درې بجې ورباندې د ډرون الوتکې دری میزایل وتوغول شول چې یو په موټر او دوه په کور ولګیدل،او ملا عبدالسلام اخند ځای په ځای د خپلو دریو نورو ملګرو سره د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

انا لله و انا الیه راجعون.

د نوموړي جنازه په همدې ماښام خاورو ته وسپارل شوه. او فاتحې يې څو ورځې وروسته په ټول کندز او ګڼو نورو سيمو کې واخيستل شوه.ملا عبدالسلام شهيد شو او دوه ماشومانې د يتيمو اولادونو په حيث ترې پاته شوې.

د اسلامي امارت لخوا د نوموړي د شهادت په اړه په خپره شوې اعلاميه کې راغلي: دکندز فاتح شهيد ملا عبدالسلام اخند شهادت خپل تر ټولو لوی آرمان باله، د ده په شهادت سره به نه تنها داچې د اسلامي امارت صف کمزوری نشي، بلکې سلګونه نور ځوانان به د قربانۍ او په اسلام د سرښندنې ميدان ته را ودانګي، الحاج ملا عبدالسلام اخند په خپله مدبرانه مشرۍ کې زرګونه داسې مجاهدين روزلي وو چې ان شاءالله هريو به د ده لاره تعقيبوي او د دښمن په وړاندې به لکه هغه د يوه قوي سپر په توګه له خپل دين، هيواد او آزادۍ څخه دفاع کوي.

## خاطرې او يادونه

د ملا عبدالسلام اخند نږدې ملګري دده د خاصيتونو او اخلاقو په اړه داسې وايي:

ملا عبدالسلام په دې سربيره چې له تصوف سره يې تعلق درلود او د پيرسباق صاحب مريد و تلاوت او اذکار يې هميشه کول، اذکار الصباح و المساء او مسنونې دعاءګانې يې ياد وې او هميشه يې په خوله وې، بريتونه به يې په مسنونه طريقه هميشه کوچني کول، يو ملګری يې وايي: ما ورته وويل چې د مجاهدبريتونه بايد غټ وي. ده ځواب راکړ چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بريتونه کوچني کول او له هغه لوی مجاهد نه و او نه به پيدا شي.

همدغه ملګری کيسه کوي چې ملا عبدالسلام اخند به په هر څه کې تيامن کاوو او زه به ډير ورته متوجه وم، حتی تردې چې ساعت يې هم په ښي لاس په لاس کاوو، ما ورته وويل چې د ساعت قانون دادی چې بايد په چپ لاس وي. ده وويل دا په کوم کتاب کې راغلي ته يې راوښيه. ما ورته وويل چې په ښي لاس کارول يې نو په کوم

کتاب کې راغلي؟ ملا عبدالسلام راته دغه وخت هغه حدیث ذکر کړ چې الله تعالی ښې والی یا تیامن خوښوي حتی په څپلۍ پښو کولو او سر ږمنځولو کې.

نظم او نظافت ملا عبدالسلام اخند ته ډیر خوند ورکاوه، په کندز کې د معسکر مسؤل وایي چې کله به معسکر ته راغی نو چې په کوم اطاق کې به یې شپه وه نیمه شپه به چې تهجد ته پورته شوی و له هغه وروسته به یې د اطاق په نظم او جارو کولو شروع کړې وه،دغه راز به چې د مجاهدینو هر مرکز ته ورغی نو به یې مجاهدینو ته وویل راځئ نن د نظافت اشر دی او بیا به په خپله لګیا و جارو کول، کاسې او لوښې مینځل او نور د صفایي کارونه به یې په خورا شوق کول.

د ولس په خلګو یې خورا ډیره مهرباني درلوده حتی داسې شوي چې یوه ولسي-کس یې موټر ور وهلی او ډیر پرې ګرم شوی مګر ده ورته تشه ګیله او خبره هم نه وي کړې، یو ځل د مجاهدینو یوه ولسوال، معاون یې او د ولسوالۍ دکمیسیون مشر-یو ولسي سپین ږیری وهلی و، ملا عبدالسلام چې کله خبر شو، دغه دریواړه مسؤلین یې بندیان کړل، او بیا چې کله دپوښتنو په مهال هغوی ورته اقرار وکړ چې موږ دا سپین ږیری وهلی، ملا عبدالسلام بي اختیاره په ژړا شو، تردې چې لویې لویې چیغې یې وهلې او په ژړا کې یې همدا ویل چې :اې الله تعالی که څوک زما دمسؤلیت په ساحه کې داسې کارونه کوي، زه ترې بیزاره یم، زه یې دغه کارونه نه تائیدوم، زه دغسې ظلم نه خوښوم. اې الله تعالی ما د دوی په ګناه مه ور شریکوې.

یو وخت ددشت ارچي په ولسوالۍ کې اربکیانو د سیمې د تخریب لپاره د نهرکهنې اوبه را خوشي کړې خو دغه اوبه د ترکمنو په یوه کلي ورغلې او تر ۷۰ پورې کورونه یې ونړول او ډیر خلک د کورونو پریښودلو ته اړ شول.دغه خلک لاړل په کندز او کابل کې یې حکومت ته ډیر خواستونه وکړل چې اوبه ترې واړوي مګر هیچا یې غږ وانه ورید وروسته دوی ملا عبدالسلام اخند ته راغلل. هغه په ملیونونو افغانۍ مصرف کړې دوه لوی اسکواټورونو یې راوستل او پنځه کیلومتره اوږد نوی نهر یې ویوست تر څو اوبه له دې اولسي سیمې په بله خوا لاړې شي.

د جګړې په میدان کې خورا غیرتي او د مطمئن مزاج څښتن و. په هیڅ وخت کې نه دي لیدل شوي چې چا یې وارخطايي یا د جنګ په وخت په غږ کې بدلون حس کړی و، حتی که کله به مجاهدینو شکست خوړلی و او پر شا به روان و هم د ده وضعیت به عادي و. په جنګ کې به یې په خپله شرکت کاوه او جهادي مینه یې په مزاج کې ګډه وه هیڅکله یې د بهانې له امله له جنګ څخه ځان نه څنګ ته کاوو بلکې تعرض ته به یې اولویت ورکاوو.

له بیت المال سره ډېر محتاط و او د دنیا شوق یې نه درلود سره له دې چې ډېر وخت یې د کندز ولایت د مسؤل په حیث وظیفه اجراء کړه اما په دې موده کې یې نه کوم مال او جایداد پیدا کړ او نه یې هم اقتصادي وضعه بدله شوه. یو طالب وایي چې تیر کال په لوی اختر کې یو چا ملا عبدالسلام اخند ته د قربانۍ لپاره پسه ورکړی و چې په کور کې یې حلال کړي، دی وایي زه د ملا عبدالسلام اخند له ورور سره د پسه په حلالولو بوخت وم خو ورور یې راته وویل چې زما په ټول عمر نه یادیږي چې په موږ دې قرباني فرض شوي وي، ځکه هستي مو دومره نه ده چې د اختر قرباني راباندې فرض شي.

ملا عبدالسلام اخند اسلامي امارت ته سخت وفادار و او اسلامي امارت یې په اوس وخت کې د ترټولو معتبر حقاني صف په حیث پیژاند.کله چې ملا شهید ملا ختر محمد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د اسلامي امارت د زعیم په حیث وټاکل شو نوموړی له لومړنیو کسانو و چې په ډېره عجله یې له اسلامي امارت سره بیعت وکړ.بیا چې کله ځینې خلکو له اسلامي امارت څخه بغاوت وکړ. نو ده به خپلو ملګرو ته همیشه دا توصیه کوله. چې انسان له خپل انجام اوعاقبت څخه خبر نه وي کله چا ته انحراف مقدر وي، خو که خدای مکړه زه کوم وخت هم له اسلامي امارت څخه منحرف کیدلم ګورئ چې تاسو مې اتباع ونکړئ،که زه له امارت سره وم او که نه وم خو له اوسه لا وایم چې همدا حقاني صف دی او هیڅکله له دې کاروان څخه ځان مه جلا کوئ.

(رحمهم الله تعالی و رضي عنهم)